# مور



«رومان»

لیکوال: ماکسیم گورکي

# د کتاب ځانګړني

د کتاب نوم: «**مور**»

لیکوال: **ماکسیم ګورکي**

په پښتو ژباړه: **د پروګرس نشراتي مؤسسه**

د سبک محرر: **حاجي محمد نوازدي**

لومړی چاپ: **۱۹۷۹م کال**

بیا خپرېدل: **۲۰۲۳ م کال**

## ماکسیم گورکي

د دې کتاب د لیکوال اصلي نوم آلکسـي ماکسیموویچ پیشـــکوف « **Alexixi Maximovitch Piechkv**» دی، چې په ۱۸٦۸ میلادي کال کې د روســیې په نیژني نواگراد ښــار کې زیږېدلی وو. یوولس کلن وو، چې پلار یې مړ ســو او بوډۍ نیا یې پالنه پر غاړه واخیسـتله، خو یو کال وروسـته له هغې څخه هم جلا سـو او د کار په موخه یې بیلابېلو ښـارونو ته سـفرونه وکړل. د تزاري روسـیې په گڼو ښــارونو کې د کـار او اوســېدني پر مهال یې د ژوند ډېري لوړي – ژوري ولیدې او هماغه خواریو او زحمتونو راتلونکي ته وروزئ. گورکي، د روسیې د مختلفو ښــارونو پـه دوکانونو، بندرونو، تجارت خانو او کارخانو کې له لوښـــو پرېوللو څخه نیولې تر آشـپزۍ، صفاکارۍ او کارگرۍ پوري ډول – ډول سخت او شاقه کارونه کړي وه. په ۱۹ کلنۍ کې یې هغه مهال، چې په یوې نانوایۍ کې کار کاوه؛ د نانوایۍ د خاوند په کتابخانه کې یې د کتابونو لوسـت او مطالعه پیل کړه او هماغه یې د زده کړو پیل وو. په شـــل کلنۍ کې گرجســـتان ته ولاړی او هلته یې د انقلابي ســـازمانونو سره اړیکي پیدا ســـوې. کله چې گورکي انقلابي ملگرو ته خپل د ژوند کیســـې کولې؛ هغو دې ته وهڅاوه، چې په ژوند کې ور بـانـدي راغلي کړاوونه او لوړي – ژوري ولیکي او خپرې یې کړي. دا د هماغه کـار (لیکوالۍ) پیل وو، چې وروســـته یې گورکي ته په نړیوالو ادبیاتو کې لوی شخصیت ور نصیب کوئ.

ماکسـیم گورکي په ۲۴ کلنۍ کي خپل لومړنی لنډ داسـتان د گورکي (په روسي ژبه کي [گورکي] د تریخ په معنا دئ) په مسـتعار نامه خپور کړ. دا داستان د ده د ژوند د کیسې، د طبقاتي ژوندانه اصلي ماهیت او پر تزاري حکومت باندي له نقـدونو څخه جوړ وو. د ده لومړنی داســتان، چي د تخیلي کیســو پر ځای، د ژوندانه د اصــلي واقعیتونو او د هغو د بدلون لپاره د خلگو د پاروني لپاره لیکل سوی وو؛ اول د انقلابیانو په کړیو او وروسته د عامو خلگو په منځ کي خپور سو او ډېر ښــه وارزول ســو. گورکي، د خپل ژوند د کیســو لیکلو ته دوام ور کړ او هماغه وو، چي په لنډه موده کي په روســیه کي وپېژندل سو او د روسیې د نورو لیکوالانو او فرهنگیانو سره یې هم اړیکي پیدا ســوې. دا چي د گورکي لیکني تزاري حکومت ته گواښمني وې، نو ځکه یې تر څو پلا بندي کولو وروسته، له روسیې څخه تبعید کړ.

ده، اوولس کاله په فرانسه، امریکا او ایټالیا کي تېر کړل، خو د تبعید پر مهال یې هم د روسیې په دننه او بهر کي، د روسي انقلابیانو له (بلشویک) اړخ سره خپلي اړیکي ټینگي ســاتلې. په ۱۹۱۵ میلادي کال کي تزاري حکومت ده ته بخښــنه وکړه او بیرتــه یې خپــل هیواد تــه وغوښــتی، خو گورکي نــه ومنــل. د اکتوبر د انقلاب پر مهـال، گورکي د بلشــویکـانو ترخنـگ وو. گورکي، د انقلاب تر بریالیتوب وروســته د انقلاب د نهایي اهدافو او ټولنیزو بنسـټونو د پیاوړي کولو لپاره د شوروي اتحاد د روښانفکرانو او لیکوالانو په منځ کي زیات سیاسي کار وکړ او د دوی له منځ څخه یې ډېر کسـان د بلشـویکانو تر څنگ متشکل کړل. په ۱۹۲۱ میلادي کال کي، گورکي د خپلي ناروغۍ د درملني لپاره ایټالیا ته ولاړ او تر ۱۹۳۲ میلادي کـال پوري یې د شــوروي اتحـاد او ایټالیا تر منځ تگ او راتگ درلودی. په ۱۹۳۲ میلادي کال کي، گورکي د شوروي اتحاد د لیکوالانو

د اتحادیې مشـــــر وټاکل سـو، په سیاسي مسـایلو کي به یې هم کله – ناکله د شوروي دولت مشرتابه ته مشورې ور کولې او خپل نظر یې څرګنداوه.

د ګورکي ژوند که له یوې خوا څخه د روسـیې او نړیوال کارګري غورځنګ په سـیاسي او انقلابي برخـه کي د ده د تلپاتي کړنو او خدمتونو له اړخه ډېر مهم دئ؛ له بلي خوا په روسي او نړیوالو ادبیاتو کي په نړیواله کچه منل سـوی ادبي شـخصـیت او آثار لري، چي له خپل ځانګړي شهرت او جذابیت څخه برخمن دي.

ماکسـیم ګورکي، د (سوسیالیستي ریالیزم) د ادبي مکتب د پلار په توګه پېژندل کېږي، ځکه د ده په لیکنو کي ریالیزم د انقلابي او سـوسـیالیسـتي نظریاتو له ترکیب سره یو ځای راغلی دئ.

ماکسیم ګورکي په دې باور وو، چي ادبیات باید یوازي د ښکلاوو تر څرګندولو پوري محدود نه سي، بلکي په بشري ژوندانه کي د لویو بدلونونو د راتللو لامل هم سي. ادبیات باید خلګو ته انرژي ور کړي، هغوی تشـکل او د لویو کارونو تر سره کولو ته وهڅوي. ادبیات باید د طبقاتي ټولنو تاوتریخوالی ښـکاره کړي او له هغو څخه د وتلو لاره هم وښیي. د ګورکي د ډېرو آثارو منځپانګه د ادبیاتو پـه اړه، د ده لـه همـدې نظر څخـه سرچینـه اخلي او مطـابقـت ور سره لري. د سـوسـیالیسـتي ریالیزم په مکتب کي تر ګورکي وروسـته ډېرو نورو لیکوالانو او ادیبانو هم کار کړی دئ او هغه یې غني کړی دئ.

د ماکسـیم ګورکي زوی د اکتوبر د انقلاب د دښـمنانو له خوا په ۱۹۳۴ میلادي کال کي ترور سـو. تر هغې دردونکي پېښـي دوه کاله وروسته، خپله ګورکي په ۱۹۳۶ میلادي کال کي د شـوروي اتحاد د کمونسټ ګوند د داخلي دښمنانو او

تروتسکیستي باندونو له خوا په یوه توطیه کي -چي د هغه په ترخ کي، د استخدام سویو ډاکټرانو لخوا یې زهرجن درمل بدن ته ترزیق سول - ووژل سو او د وروستي مخي ښې مراسم یې په مسکو کي، په پرتمین ډول ترسره سول.

په ادبیاتو کي د ماکسیم ګورکي د وندي او نوښتونو په اړه ډېر تخصصي بحثونه سته، خو هغه څه چي د ګورکي شخصیت ته لا زیات عزت او درنښت ور کوي، د ګورکي سیاسي او انقلابي ژوند دئ. ګورکي، خپله لیکوالي، د خپل ژوندانه ټولي شیبې او انرژي په بشري ټولنه کي د بې عدالتۍ او استثمار د له منځه وړلو لپاره مبارزې ته ځانګړې کړي وې او په دې لار کي یې ډېر کړاوونه هم ګاللي ول. د ګورکي آثار ساده لیکل سوي او نه یوازي د عمومي انقلابیانو، بلکي د عامو خلګو د مطالعې او سیاسي او انقلابي هضم وړ هم دي. دا آثار د شور، شوق، پاڅون، میني، ارادې، عقل او واقعیتونو توري دي، چي له نېکه مرغه د نوم ورکو ملګرو په هڅه، د ګورکي یو ډېر ارزښتناک ادبي او انقلابي اثر (د [مور] نومی رومان) په روانه پښتو ژبه، د فرهنګي او سیاسي اختناق او استبداد په سختو شرایطو کي ستاسو تر لاسونو در رسېدلی دی. د ګورکي ځیني نور مشهور او د نړیوال شهرت څخه برخمن د انقلابي محتوا درلودونکي آثار د (درې ملګري، بېکاره سړی، د ډوډۍ په لټه، د ماشومتوب وختونه، د لمر زامن، زما پوهنتونونه) تر سرلیکونو لاندي هم سته، چي موږ په ټینګه هیله من یو، یوه ورځ یې دا نوري ملغلري هم د پښتنو سیاسي او انقلابي شعور لا زیات سینګار کړي.

**یما سیرت**

# سریزه

د هر ولس د ادبیاتو په تاریخ کې داسې کتابونه شته، چې د هغې د ودې او پرمختګ په بدلېدونکو پړاوونو پورې اړه لري؛ یو د داسې کتابونو له جملې څخه زموږ روسانو لپاره د ماکسیم ګورکي د «مور» رومان دی. دا کتاب په خپله مؤلف د داستان په نوم یاد کړی دی. زموږ په اوسني وخت کې نوموړی اثر د رومان په نوم یاد شوی دی، ځکه چې رومان له نکلي سبکونو څخه تر ټولو مهم او ارزښت لرونکی ډول دی.

د مور رومان په ۱۹۰۷ ع. کال په روسیه کې خپور شوی دی. د دې رومان د مؤلف عمر په دې وخت کې د ځلوېښتو کالو په شاوخوا کې و، چې د ادبیاتو او اجتماعي فعالیتونو پنځلس کلنه ستره لار یې وهلې وه. د ګورکي د «رسالو او کیسو» لومړنۍ مجموعه چې په ۱۸۹۸ کال کې خپره شوه، ډېر لوستونکي ځان ته ورخپل کړل. یو کال وروسته د ماکسیم ګورکي داستان چې د «فوما ګوردیف» په نامه یادېږي، خپور او د لیون تولستوی د «واسکریسیني» (پاڅون) رومان په څېر، چې په عین وخت کې چاپ شوي وو، ډېر په زړه پورې واقع شو. تر هغه وروسته کله چې د ګورکي بل داستان د «تروئي» (درې تنه) په نامه خپور او د هغه ډراماتیک فعالیت پیل شو، نو د لیکوال شهرت د خپل هېواد د حدودو څخه د باندې ووت او په ریښتیا سره یې نړۍوال شهرت پیدا کړ.

د هغه پخوانی خلاقیت، کوم چې د ده د نه ډارېدونکي ریالیستي واقعیت بینۍ، د ادبي هنرمند د پاره د دې ډول سختې بیوګرافۍ د لوی شهرت او د «د زړه ورتیا د جنون» ستایلو سره یو ځای کوي، حتی په هماغه وخت کې یې لا د

سـترو هنري كشـفياتو لپاره ريښـې ځغلولي وې. مګر ګوركي لا تر دې وخته پورې سـوسـياليستي شعور نه درلود او نه يې د پرولتاريا تاريخي رسالت درک کړی و. د هغه په نظر لا كارګره طبقه يوازې د اسـتمار كيدونكي، سـتم ځپلي او ربړيدونكي طبقې په څېر تمثيليده، نه د يوه غښتلي ځواک په شان، كوم چې نه يوازې د ځان، بلكې د غلامۍ څخه د ټولو زيار ايسـتونكو خلكو د خلاصـون استعداد لري. د دې لپاره چې د ګوركي په شـعور كې بدلون منځ ته راشي، يوه ټكـان تـه ضرورت و چې دا ټكـان هم پـه هېواد كې هغـه ځواكمن انقلابي پرمختـګ وګرځيـد، كوم چې د پيړۍ پـه سر كې منځ ته راغلئ او نامتو ليكوال ورته د الهام بخښـونكي «د بوريويسـتنيک سـندره» پنامه شـعر پوسـېله ځواب وركړ. كلـه چې ګوركي د ژونـد په لاره كې، له و.ای. لينين سره معرفي شـو، نو هغه يې ملګری، ښوونكی او پېشوا وګرځيد.

ګوركي لينينزم تـه پـه خـاصـه توګـه، د يوه ادبي هنرمنـد پـه څېر چې د هومانيزم سـتونزو ډېر ژور انديښـمن کړی و، راغی. ګوركي په ۱۹۰۱ كال كې د لومړي ځل لپاره په خپله ډارمه كې چې د «ميسـچانی» په نوم يادېږي، يو كارګر شخصيت چې (نيل) نوميده د يوه پرولتاري انقلابي په څېر چې تر سوسياليستي شـعور پورې رسـيدلی و، مجسم کړ. په خپله بله ډرامه كې چې د «نا دنې» پنامه يادېږي، د حقيقي او جعلي هومانيزم سـتونزه يې لا پسې په پراخه او ژوره پيمانه څېړلې دی. په دې ډرامه كې يې د لوكا نومي مبلغ «تسـليت كوونكی» موعظې چې ټوله فلسـفه يې په افوريزم (په څه شي چې عقيده لرې، هماغه وجود لري) بـانـدې ولاړه وه، رسـوا کړي. ګوركي د دغـه ډول غير فعـال او د ژونـد سره

پخلاکوونکي هومـانیزم پـه مقابل کې د انقلابي مبارزې هومانیزم طرح کړ، کوم چې پـه مېړاني سره د ژوند د ټولو حقایقو د پېژندلو او لیدلو بلنه ورکوي، تر څو چې ژونـد او پخپلـه انســان ته تغیر ورکړي او هغه د داخل او خارج څخه آزاد کړي. په ملیونو خلک د «نا دنې» د ډرامې الهام بخښونکي ویناوې لکه: «انسان-دا دی حقیقت»، «انسـان- دا له ویاړه ډکه کلمه ده!»، «هر څه- په انسان کې دي، هر څه- د انسان لپاره دي» په ټولو ژبو باندې تکراروي.

د انقلابي هیومانیزم پروبلم د گورکي د «مور» په رومان کې چې په ۱۹۰۷ کال کې لیکل شـوی و، هم څېړل شـویدی. دا په اطمینان سره ویلای شـو چې تقریباً د نړۍ د ادبیاتو په ټول تاریخ کې هېڅ کوم بل بدیعي اثر د گورکي د دې کتاب په څېر ډېر زیات لوستونکي نه درلودل او نه یې داسې د ملیونو انسانانو پر برخلیک باندې ډېره ستره او مستقیمه اغېزه کړي وه.

گورکي، د نوي شلمې پېړۍ په اساسي مضمون سمدستي پوه شو. د نړۍ د تاریخ په ډگر کې کارگر انســان د بشــپړو حقوقو درلودونکي فعالې څېرې په شان، د اصلي قهرمان په توگه را اوچت شو. ماکسیم گورکي د نوي پېړۍ د دغه نوي قهرمان په ادبیاتو کې د هغه نامتو سندرغاړی او بدیعي بیوگراف وگرځید او د هغه نمایندهگي یې وکړه. د پېړۍ نوي قهرمان خپل بشپړ بدیعي څرگندوالی د «مور» په رومان کې ترلاسه کړ.

څرگنـده خبره ده، چې د دې رومـان د مضــمون پـه بنســټ کې واقعي تاریخي پېښې لکه د سرموفو د کارگرانو د مۍ په لومړۍ ورځ مظاهره او د هغې محاکمې جریان چې د نومړي مظاهرې د ټکوني وروسته د هغې په ترتیبونکو

بانـدې د حاکمه طبقاتو د ادارې لخوا دوام درلود، پرتې دي. پدې هکله پخپله ګورکي وروسته هم يادونه کړې ده، چې: «د کارګرانو په باره کې د کتاب ليکلو مفکوره ماته د سرموفو د مظاهرې څخه وروسـته د نيژني نوو ګورود په ښار کې پيـدا شـــوه. په همدې وخت کې مې د ضروري موادو په راټولولو او د راز- راز يادداښتونو په ليکلو پيل وکړ.» پدې اساس، د ګورکي اثر د يوه تاريخي سند په څېر خاص اهميت لري. ليکن، هغه پېښــې چې د نوموړي رومان په بنســټ کې پرتې دي، د نامتو ليکوال له خوا په کافي اندازه اصـلاح شـوي او بديعي بڼهٔ يې غوره کړيـده. د دې کتاب د قهرمانانو اصـــلي تاريخي بڼې (چې هغوی حقيقتاً موجود وه او د هغو پېښـو په بنســټ کې چې د رومان پياوړو قهرمانانو ته پېښــې شوي، د سرموفو د کارګر يعنې پيتر زالوموف او د هغه د مور د ژوند جلا حادثې پرتې دي) د ستر ليکوال د قلم تر څوکې لاندې يې نوی ژوند ترلاسه کړ او نوي قهرمانان او نوي شرايط منځ ته راغلل. په نتيجه کې داسې اثر وليکل شو، چې د روسيې د کارګرې طبقې د ژوند او د هغوی د مبارزې منظره يې د ۱۹۰۵ع کال انقلاب په بنسټونو کې پراخه او هر اړخيزه وښودله.

د روســيې تګلاره انقلاب ته، لکه څرنګه چې ګورکي هم په خپل کتاب کې ورته اشــاره کړيده، ډېره پيچلي او د ســتونزو ډکه وه. مګر دا يوازينۍ حقه لاره وه، دا لار ځلانـدې آينـدې تـه د ورتـګ لار وه. د «مور» رومـان هم دې ځلاندې آيندې ته د رسـيدو لپاره د ټولو خلکو د مبارزې لارښـود کارګره طبقه ګڼلې ده. دا د هغې کـارګرې طبقې پـه بـاره کې کتـاب دی چې د خپلو ســترو ارمـانونو د سرته رســولو لپاره يې اقدام کړی دی. دا د کارګرې طبقې لپاره هغه

کتاب و، چې په هغه کې يې خپل ځان ټولو ارزښتونو سره او همدارنګه د خپلې سـياسي او ايـډيـالوژيکي ودي نيمګړتيـاوي وليـدلې. لنډه دا چې دا کتاب د کارګرې طبقې او د روسيې د ټولو خلکو لپاره بيخي اړين و.

و.ای. لېنين د ګورکي سره پـه خپلـه مرکـه کې د «مور» رومـان پـه هکلـه داسـې وويـل: «... دا کتـاب يو ډېر اړين کتـاب دی، ډېرو کارګرانو په انقلابي غورځنګ کې په غير شـعوري او تصـادفي توګه برخه اخيسـتله، اوس هغوی د «مور» رومان په لوستلو سره ډېري ګټې ترلاسه کوي... ډېر ښه د موقع او پر خپل وخت کتاب دی».

يو وخت ليون تولستوی ويلي وه، چې د بديعې اثر يووالی په دې کې نه دی، چې پـه هغـه کې د رول لوبوونکو خبرو او د وضـعې يووالی موجود وي، بلکـه پخپلـه د ليکوال د اخلاقي دريځ پـه يووالي پورې هم اړه لري. د ګورکي اخلاقي دريځ د «مور» پـه رومـان کې د هغـه د پيـاوړي اتلي، يعنې د نيلوفنـا په خبره کې ښـکاره څرګند دی. د همدې قهرمانې-سـاده کارګرې ښـځې- په وياړ نوموړی کتاب د «مور» په نامه ياد شو. نيلوفنا د رومان په لومړي سر کې د نورو کارګرو ميندو څخه چې شـمېر يې سـل ګونو ته رسـيدۀ او د هغې په څېر په فابريکو او کارخانو کې د انسـاني ځواک څخه وتلي کارو د لاسـه او په کورو کې د مسـتۍ په حالت کې د يو بل وهلو او ټکولو، جنګ او جدل د لاسـه له ځانه بيزاره شـوي وې، په هيڅ شـان نده جلا شـوې. مګر کله چې د هغې زوی، پاول ولاسـوف د کارګري محلې د عادي ژوند طرز څخه مخ اړوي او انقلابي کيږي، نيلوفنـا هم پاڅيږي او د خپل زوی سره اوږه په اوږه د مبارزې ملا تړي.

په دې رومان کې د نیلوفنا ژوند، انقلاب ته د یوه کارگر انسـان د ورتگ لار ده. د نیلوفنا مهربان او د عدالت نه ډک زړه، د هغې پاک وجدان، د ښېگڼو او ژوند په باره کې د هغې تصـور چې ښـیگڼه څه شی ده او څرنگه باید ژوند وشي، دا ټول د گورکي پـه دې کتـاب کې د اخلاقي موازینو پیاوړی معیار وگرځید. موږ لوستونکي هم په دې رومان کې د هغې په سترگو سره لیدلی ماحول وینو او هغه ټول پیښې شـوي واقعات د مور له نظره څیړلای شو. د پاول ولاسوف ملگرو هم نیلوفنـا تـه د مور په کلمه خطاب کاوۀ. د گورکي د دې کتاب خاص مفهوم هم پـه همدې کې نغښـتی دی. څکه چې د پاول ولاســوف انقلابي ملگرو چې د نیلوفنـا تر شـــاوخوا راټول شـــوي وو، د همـدې مور پـه نســبت خپلـه معنوي وروړگلوي احساسوي او په هغوی کې د نړی د ټولو خلکو ترمنځ د وروړگلوۍ مفکوره یوازې د همـدې نیلوفنـا له لارې د احســاس وړ گرځیدلي ده. آندري ناخودکه چې د پاول ولاســوف نژدې ملگری دی، وایي: «موږ ټول د یوې مور بچیـان یو کومـه چې د ځمکې پر مخ د ټولو هېوادو د کـارگرو خلکو ترمنځ د وروړگلوۍ نـه مـاتیدونکې مفکوره ده». په دې هکله بزگر ربین، چې دی هم د ستومانه ژوند څخه د پوره آزادۍ ترلاسـه کولو لپاره گډې مبارزې ته کش کړل شـوی و، ښـه پوهېږي او وایي: « د انسـانانو تر منځ د دوسـتۍ اړیکو ټینگول یو سـتر کار دی. کله چې سړی پوه شي چې د ځمکې په مخ په ملیونو انسانان هم هغه څه غواړي چې موږ یې غواړو- سمدستي زړه نرم او مهربان کیږي».

د «مور» پـه رومـان کې انقلابي مبارزه په ځانگړې توگه نده یاد شـــوې، بلکې ښـــيي چې د مبـارزې پـه بهیر او د هغې په پاکوونکي لمبه کې څرنگه یو

انســـان او د خلکو پرګنې دننني بدلون مومي- د هغوی پخواني مړۀ معنويات تر اغېزې لانـدې راځي او د دوهم ځـل لپـاره پـه روحي لحاظ را ژوندي کيږي او انقلابي بڼه غوره کوي.

يوازې هغه وخت چې د «مور» اتلي د مبارزې لپاره ملا وتړله او د انقلابي مبارزې ډګر ته ور داخله شوه، نو دا حق يې ځانته ورکړ چې په لوړ آواز ووايي: «را ژوندی شـــوی انقلابي روح به و نه وژل شي!.. د وينو لوی ســـمندر نشيـــ کولای چې حقيقت محوه کړي...»

دا هم تصـادفي نه وه، چې ماکسـيم ګورکي د داسـې کتاب لکه د «مور» رومان ليکوال وګرځيد، ځکه چې يوازې يو مبارز کولای شي د مبارزينو په باره کې موثق کتـاب وليکي. يوازې هغـه ليکوال چې لـه ځوانۍ پدې پوهيدلی وي «چې انســـان لـه خپـل مـاحول سره د مبـارزې او مقـاومت په نتيجه کې منځ ته راځي»، وکړای شول د هغو انسانانو چټکه معنوي وده، چې د خپل نوي ژوند د جوړولو په لاره کې يې مبارزه پيل کړې وه، ترسيم کړي.

د شوروي اتحاد د کمونيستې ګوند د مرکزي کميټې په پريکړه ليک کې «په روسـيه کې د ۱۹۰۵ – ۱۹۰۷ کلونو د انقلاب د اويايمې کاليزې په مناسبت» داسې ويل کيږي: «شوروي خلک د انقلاب د قهرمانانو له وياړه ډکې کارنامې د تـل لپـاره لوړي ســـاتي. په روســـيه کې د لومړي خلقي انقلاب تاريخ د خلاقو الهامونو پای ته نه رسيدونکې منبع او د انقلابي مبارزينو د راتلونکو نسلونو لپاره د سياسي مبارزې ښوونځی دی».

په روســیه کې د لومړي انقلاب په هکله د «مور» رومان هغه کتاب دی چې پــه باندینیو هېوادونو کې په ۳۸ ژبو، ۲۸٦ ځلې چاپ شــوی دی. نوموړی کتاب په شـوروي اتحاد کې ۱۹۷ ځله چې د چاپ عمومي تیراژ یې ٦ ملیونو او ۳۵٤ زرو نســخو ته رســیږي، خپور شــویدی. د ګورکي د «مور» رومان د ټولو هېوادنو د کارګرانو لپاره زړه راښکوونکی کتاب ګرځېدلی دی.

**پروفیسور بورسوف**

«۱»

هره ورځ به چې د کارگرانو د ټاټوبي د پاســـه په کرغېړنه او له دوده ډکه هوا کې د فـابریکې تولې خپلـه لړزیـدونکې نـاره وهلـه، غمځپلیو خلکو چې عضـلاتو به یې سترېیا او ستوماني لا د لاسه نه وه ورکړې، د تولې په اورېدو سره په بیړه د وړو سپېرو او خړو کورونو څخه وتل او لکه ډارېدلي گونگټي (یو ډول حشــــره [ل.ل]) په کوڅو کې به یې ځغستل. هغوی به په توره تیاره او سړه هوا کې د فابریکې د ډبرینو هســکو پنجرو په لور روان شــول؛ فابریکه به په داســې حال کې چې د ختهو او چکړو څخه ډکې لارې به یې د خپلو بې شمېرو تورو او غوړو کړکیو په واسـطه چې له ورایه د مربع شـکلو سـترگو په شـان ښکاریدلې، روښـــانـه کړي وې، پـه ډاډه زړه او بې پروایی سره د دوی راتگ ته منتظره وه. ختهو به د دوی تر پښو لاندې شړپ شړوپ کاوۀ او له خوبه ډکو ډډو آوازونو او سـختو کنځاوو به یوه ناآرامه فضا جوړه کړي وه او بلې خوا ته به د خلکو مخې تـه بـل ډول آوازونـه- د ماشــینونو کړنگ او کړونگ او د بخار غرومبهار پورته کېدل. د فابریکې تک تور او جگ دود کشونه د کارگرانو د ټاټوبي د پاسه هوا کې د پنډو تیرانو په څېر ښکاریدل.

ماښام د لمر پرېواته په وخت کې کله به چې د لمر سرو وړانگو د کورونو په هندارو کې پلوشې کولې، فابریکې به د خپلې ډبرینې خېټې څخه ډلې - ډلې انسانان لکه د اوسپنخړي په شان بهر ته ایستل. کارگران چې له دوده څخه تک تور وو، بیا به په کوڅو کې خپاره شــول، په داســې حال کې چې د ماشــینونو د

گریس غوړ او چټل بویونه شــاوخوا ته ورڅخه تلل او د لوړې له لاســه به یې غـاښــونـه ځلیـدل. اوس نو د هغوی پـه آوازونو کې جوش او خروښ او حتی خوشــحـالي احســاســیږي، ځکه چې د نن ورځې لپاره یې دروند کار پای ته ورسیده او په کور کې ورته د ماښام ډوډۍ او استراحت په تمه دي.

د دوی د یوې ورځې ژوند د فابریکې له خوا غصـب شو، له متونو څخه یې ټول ځواک د فابریکې ماشـینونو د خپلې اړتیا په اندازه وزبېښـۀ. یوه ورځ به په بلې پسې بې له دې څخه چې د دوی په ژوند کې نښه پریږدي، تېره شوه، هر انســان په حقیقت کې بې له دې چې ځیر شي، د خپل گور و خوا ته یو بل قدم نژدې کېدۀ، مگر هر یو د هماغه راتلونکي نژدې وخت یو څو شـیبو اســتراحت او له دوده ډکې میخانې خوشالۍ ته کتل، نو ځکه به خوښ وو.

د رخصـتیو په ورځو کې به د گهیځ تر لسو بجو پورې ویـده وو. وروسته به د پاخه عمر خاوندانو او متاهلو اشـخاصـو خپلې پاکې جامې واغوسـتلې او د مذهبي مراسمو د ترسره کولو لپاره به د کلیسا و لور ته رهي شول، او په لاره کې بـه یې ځوانـان چې د مـذهب سره بې علاقې او بې پروا وو، رټل او بد رد به یې ورته ویل. څه وخت چې به د کلیسا څخه بېرته خپلو کورونو ته راستانه شول، نو بولانی به یې وخوړلې او بیا به تر ماښامه ویده شول.

ستړیا او ستومانۍ چې له کلونو -کلونو د هغوی په وجود کې ټولې شوي وې، د هغوی اشــتهـا یې لـه منځـه وړې وه. د دې لپاره چې وکولای شي خپله اشتها راولي او خواړه وخوري، نو به یې مشروبات ډېر وڅښل، تر څو خپله معده د وډکا د توندو سوزشونو په وسیله پاروي.

د شـــپې لخوا به په لټې او تنبلۍ سره په کوڅو کې گرځېدل. هر چا چې کلوشـــې يـا باراني موزې درلودې، سره له دې چې ځمکه به وچه وه، په پښـــو کولې به يې او هغه چا چې به باراني چترۍ درلوده، سره له دې چې به سور لمر هم و، له ځانه سره يې گرځوله.

کوم وخت چې به يو د بل سره مخامخ شـول، د فابريکې او ماشـينونو په هکله به يې خبرې اترې کولې او کارفرمايانو ته به يې ښـکنځلې او پوچ ويل. د هغوی ټولې ويناوې او فکرونه يوازې د هغو شـيانو په باره کې وو، کومو چې به د کـار سره اړه درلوده. پـه يونواخته خواشـــينو ورځو کې به د هغوی د بې توانه فکرونو څخه ځينې جلا - جلا بڅرکي چې هغه هم ضـعيفې وې، څرگنديدلې. کله به چې کورو ته راستانه شول، نو له خپلو ښځو سره به يې جگړې او شخړې کولې او تـل به يې بېرحمانه په لغتو او ســوکانو وهلې. ځوانان به په ميخانو کې ناسـت وو او يا به يې د يو او بل په کور کې د شپې ميله جوړه او هارمونيه به يې غږوله، بې وزنه او قبيحې غزلې به يې ويلې، ډول ډول نڅاوې به يې کولې او په خپـل منځ کې به يې يو بل ته پوچې ويناوې او بدرد ويل او د مرگ تر بريده به يې مشــــروبات څښل. څرنگه چې دوی د کار کولو څخه وروسته ډېر ستومانه کېدل، نو د مشــــروباتو په څښـلو سره به ډېر ژر مست او نشه شول او د ټولو په سـينو کې به بې موجبه يو ډول ناروغۍ ته ورته پارونه پيدا شـول چې غوښتل به يې د هرې سينې څخه د باندې ووزي. په دغه وخت کې ټولو د هر ډول امکان څخه استفاده کوله، تر څو چې خپلو غمجنو احساساتو ته انفلاق ورکړي، نو به يې يو په بل باندې د قهر او غضبه ډکې حملې کولې او وينې تويونکي جنگونه

به یې پیل کړل چې کله کله به په نتیجه کې سـخت ټپیان شـول او حتی د مرگ لامل به وگرځېدل.

د خلکو تر منځ پـه اړیکو کې تر ټولو زیـات د کینې نـه ډک پـارونکي احساس وو، چې دغه احساس په دوی کې لکه د نه لېرې کېدونکي سـتړیا او ستومانۍ په شـان چې د دوی په عضـلاتو کې یې ځای نیولی و، موجود و او ورځ په ورځ یې د هغوی په زړونو کې ځواک موند. دغه انسانان به د دې روحي ناروغۍ سره چې د پلارونو څخه ورته میراث پاتې شوي وه، دنیا ته راتلل او لکه د تور سـیوري په شـان به د دوی د قبر تر څنډې پورې ورسره ملگري وه او د ژوند په بهیر کې به یې دوی مجبورول چې د بې ځایه بیرحمیو په اثر ډېرو ناوړو او ناروا اعمالو باندې لاس پورې کړي.

ځوانان به د رخصتیو په ورځو کې د شپې لخوا ډېر ناوخته خپلو کورو ته په داسې حال کې راگرځېدل چې کالي به یې خیرې او په ختو او خاورو لړلي او سـپېره وو، صـورتونه به یې شـوکارې او په وینو رنگ او په لاره کې به یې د هغوی گذارونو یا توهینونو د لاسـه چې پرې تېر شـوي وو، د قهر او غضـب نه تک شنه او یا به په ژړا کور ته راتلل چې په دې حال کې د یوې خوا د ترحم او د بلې خوا د کرکې وړ وو، ځکـه چې بدبخته او بې ځایه مسـت وو. کله کله به میندو او پلرونو خپل زامن چې په کندو او کوڅو یا په میخانو کې بې هوښـه او نشـه پراته وو، پیدا کول او کورو ته به یې راوسـتل، بدرد به یې ورته ویل او په زامنو به یې چې صـورتونه یې د مشـروباتو له لاسه پاړېدلي او نرم شوي وو، د سوکانو باران جوړ او وهل به یې. وروسته لدې به یې څه نا څه په احتیاط سره په بسـتره کې واچول او بیـدهٔ بـه یې کړل، تر څو چې گهیځ وختي، کلـه چې د

فابریکې توله خپل غمجن آواز لکه د تور بهیر په شان هوا ته پورته کوي، دوی د کار لپاره له درانهٔ خوبه راویښ کړي.

سره لدې چې میندو او پلارونو خپل زامن همېشه رټل او ډېر سخت یې وهل، مگر د سپین ږیرو لپاره د ځوانانو دائمي نشه کول او جنگونه کول کاملاً یوه طبیعي پدیده ښکاره کېدله، ځکه چې پلرونو یې هم کله چې ځوانان وو، شراب څښل او جنگونه به یې کول او د میندو او پلارونو له لاسه یې په همدې ډول وهنه او ټکونه لیدله. د دوی ژوند همېشه په همدې حال و، هغه لکه د ختې او د لای د رود په څېر د کلونو - کلونو په موده کې یوه نامعلوم لور ته چې هېڅوک پرې نه پوهېده، په سړه سینه حرکت کاوهٔ. توله ژوند په پخوانیو سختو کړو وړو او عاداتو پورې اړه درلوده او هره ورځ به د عین شي په باره کې چې تکراریدونکي و، فکر کېدهٔ. هېڅ یوه دا هیله نه درلوده چې کله د دا ډول ژوند د بدلون په هکله هڅه وکړي.

په ځینو وختو کې به د کارگرانو محلې ته بعضې نور بېگانه کسان له کوم ځایه څخه راتلل. په لومړي سر کې به ټولو دوی ته ډېره توجه کوله، دا ځکه چې دوی نوي راغلي وو، مگر ډېر ژر به هغه لومړني احساسات ساړه شول، نورو به ورسره عادت ونیو او هغه بیگانتوب او جلاوالی چې حس کېدهٔ، د مودې په تېرېدو سره به لېرې شو. د دوی د کیسو څخه دا څرگندیده، چې په هر ځای کې د کارگرانو ژوند یو شانته دی. که چېرې دا په همدې شکل وي، نو خبره په څه کې ده؟

د دوی څخه ځینو بعضې وخت داسې خبرې کولې چې په دې محله کې نوي وې او چا نه وې اوریدلي. کارگرانو د دې خلکو دا رنگ عجیبو او

غریبو خبرو تـه، بې لـه دې چې پرې باور وکړي، په ځیر سره غوږ نیوئ او هېڅ چا به ورسره بحث نه کاوۀ. دغو ویناوو په ځینو کارګرانو کې ویدۀ احساسات را ویښول؛ په یوه ډله کې یې پټه اندېښنه او په ځینو نورو کې یې د یوه نامعلوم شي په هکله یو ډول د امید رڼا پیدا کوله او هغوی به د دې لپاره چې خپلې دغه پیدا شوي اندېښنې او احساسات له ځانه لېرې کړي، د زیاتو مشروباتو په څښلو بسنه کوله.

کـه چېرې به یې د کوم پردي سـړي په ویناوو یا کړو - وړو کې یو غیر معمولي شی ولیـد، نو تر ډېرې مودې پورې بـه یې هغـه له یاده نه ووت او د دا ډول سړي سره به یې د خپلې غریزې نه وتلي رویه او ډډه کوله. دوی په ریښتیا سره هم له دا ډول خلکو څخه ډاریدل چې ګوندې د دوی په ژوند کې داســې کوم شی داخـل نکړي چې پـه هغه سره د دوی د ژوند یو نواخته منظم حرکت، سره لـه دې چې د کړاوونو ډک، خو آرام دی، وپـاشــل شي. څرنګـه چې د کارګرانو د محلې خلکو له فشـاره ډک تریخ ژوند سره عادت نیولی و او د ښـه ژونـد پـه لور یې د هېڅ ډول بدلون تمه نه لرل، نو ځکه په دې فکر کې وو چې ګوندې هر ډول بدلون که راشي، په دوی باندې به نور هم د استثمار جغ دروند کړي.

د کارګرانو د محلې اوسیدونکي به د هغو خلکو څخه چې دوی ته به یې نوي او د حیرانتیا وړ خبرې کولې، غلي او ګوښه ګرځیدل او هغوی به یې ځانته نه پرېښودل. په دې وخت کې به دغه خلک د دوی د سترګو څخه پناه شول او کوم بل لور ته به لاړل او یا هغه څوک چې به په فابریکه کې پاتې شول او نه به

يې شــول کولای چې د دې محلې کارگرانو په گډه ټولنه کې داخل شي، نو به يې خپل ژوند د نورو څخه گوښه په سر تېراوۀ.

يو سړي به چې دا ډول ژوند پنځوس کاله وگالۀ، نو همدلته به مړ هم شو.

«۲»

ميخـائيـل ولاســوف چې يو ســوهـان کار و، هم پدې ډول ژوند کاوۀ. ولاسوف توندخويه او د وړو سترگو خاوند و چې د ببرو وروځو لاندې به يې په شــکمن انداز تيز تيز کتل. هغه په فابريکه کې تر ټولو ښــه ســوهان کار و او د کـارگرانو په محله کې يوازينی پهلوان و، مگر دا چې د آمرينو سره يې تونده او ســتغـه رويـه درلوده، نو ځکـه بـه يې د کـار اجوره کمه په لاس راوړله. د هرې رخصتۍ په ورځو کې به يې حتماً يو څوک رانيوۀ او په مرگ به يې واهۀ، همدا سبب و چې ټول ور ځنې ډارېدل او هېچا ورسره لېوالتيا نه درلوده. نورو هم څو - څو وارې قصـد وکړ، چې دی يوه ورځ ښــه ووهي، مگر بريالي نه شــول. کله چې به ولاسـوف پوه شـو چې يو څوک په هغه حمله کوي، نو به يې په چټکۍ سره ډبره، تخته يا يوه ټوټه اوسپنه په لاس کې ونيوله او پښې به يې پراخې کړې او پټه خوله به د دښمن حملې ته کلک ودريد. د ده ببره توره ږيره چې د سترگو څخه يې تر غاړې پورې مخ پکې پټ و او د ويښــتانو ډک لاســونه، ټول يې په لړزه او ويره راوستل. په خاصه توگه د ده د سترگو څخه ډېر ډارېدل، ځکه چې چا ته به يې خپلې تنگې او تيرې سـترگې ور واړولې، د پولادي برمې په شان به يې سورى کاوۀ. هر څوک چې د ده سره مخامخ کېدۀ او تېرو سترگو ته يې ورته

کتـل، دا يې احســـاســـولـه چې پـه مقـابـل کې يې کوم ډارونکې څواک او نـه ډاريدونکي توره بلا ولاړه او چمتو ده، چي بې اندازې يې ووهي.

- پســت فطرتو، ځئ، ورک شئ!- ده به په ډېر قهر او غضب سره ويل. له وينبــتانو ډک صــورت کې به يې ژيړ غټ غابنــونو ځليدل او خلک به ورځنې خواره واره شول او ده ته به يې پټې ښکنځلې کولې.

- اې، پســت فطرتو!- ژر به يې د هغوی تر شا بيا وويل او تېرې سترگې به يې چې د بريښــنا په شان ځليدلې، په تمسخرآميز شکل ورته را واړولې. وروسته به يې په گوابنــونکي ډول سر اوچت کړ او په هغوی پســې به روان شو او غږ به يې پرې وکړ:

- ښه! اوس نو څوک له تاسو څخه مرگ غواړي؟

ښکاره ده چې هېچا مرگ نه غوښت.

ولاسوف په عمومي ډول لږې خبرې کولې او د «پست فطرت» کلمه يې تکيه کلام و. د خپلو آمرينو او پوليســانو سره به يې په همدې تکيه کلام خبرې کولې او هم بـه يې خپلې ښــځې تـه د خطـاب پر وخـت کې همـدا تکيه کلام کاراوه.

- اې، پست فطرتې، ته نه وينې چې زما پتلون څيرې شوی دی!

کله چې د ده زوی پاول څوارلس کلنی ته ورســيد، يوه ورځ ولاســوف وغوښــتل چې خپل زوی له وينبــتانو کش کړي، مگر پاول دا وارې يوه درانه څټک ته لاس اوږد کړ او په ټينگه يې پلار ته وويل:

- لاس رانه وړې چې...

پلار د خپل زوی خوا ته چې نری اندام او دنګه ونه یې درلوده، لکه سیوری چې د چنار په ونه ورشي، ورغی او پوښتنه یې ځنې وکړه: څه شی؟

پاول په داسې حال کې چې څټک یې په لاس کې ورته ښوراوۀ، وویل:- بس دی! پس له دې نوره موقع نه درکوم چې ما سره دا ډول رویه وکړې...

پلار خپل زوی ته وکتل او له ویښتانو ډک لاسونه یې تر شا ونیول او په پوزخند سره یې وویل:

ښه ده...

بیا یې ژور سوړ اسویلی وکړ او ورته یې زیاته کړه:

- آه، ته پست فطرته....

تر لږ ځنډ وروسته یې خپلې ښځې ته وویل:

- ته نور له مانه پیسې مه غواړه، پس له دې به تاته پاول خوراک او پوښاک درکوي...

ښځې یې جرئت وکړ او پوښتنه یې ځنې وکړه: - ته به بیا خپلې ټولې پیسې په مشروباتو ورکوې؟

- پست فطرتې! دا په تا پورې اړه نلري! که زه وغواړم ښایي چې ځان ته یوه معشوقه پیدا کړم...

هغه معشوقه پیدا نه کړه، مګر د همدې شیبې څخه تقریباً تر دوو کالو، د ژوند تر وروستنۍ ورځې پورې یې زوی ته مخ نه راوۀ او نه یې خبرې ورسره وکړې.

ولاسوف یو سپی هم درلود چې د ده په شان له وجوده غټ او ببر و. سپی به هر سهار د فابریکې تر دروازې پورې ورسره تلئ او تر مازدیګره پورې

به هلته پروت و. د رخصتیو په ورځو کې به دی همېشه د شرابو په پلورنځیو کې داسې تریو تندی او پټه خوله گرځیده چې تا به ویل، د چا په لټه کې دی او په خپلو شکمنو سترگو به یې د کتونکو او لارویو پر زړونو ټکه اچوله. سپي به اوږده او ببره لکۍ ځوړنده نیولې وه او په ده پسې به ټوله ورځ روان و. د شپې لخوا به دی ناوخته په نشه حالت کې کور ته راستون شو او د شپې د ډوډۍ په خوړولو به یې پیل وکړ او سپي ته به یې هم له خپلې کاسې څخه ډوډۍ ورکوله. ولاسوف خپل سپي ته نه قهر کاوۀ او نه یې هم واهۀ، مگر هېڅکله یې د مینې او نوازش لاس هم نه و پر تېر کړی. د شپې د ډوډۍ خوړلو څخه وروسته کله چې به یې ښځې ونکړای شوای په وخت سره د میز له سره لوښي غونډ کړي، په خپله به یې د میز له سره ټول لوښي ځمکې ته ښکته وغورځول او د ودکا بوتل به یې په خپل مخ کې کېښود او دیوال ته به یې ځنگ وواهۀ، سترگې به یې پټې او خوله به یې ښه پسې وازه کړه او په ډډ آواز به یې د غمجنو سندرو په ویلو پیل وکړ. کله چې به یې له غمه ډک او بې وزنه آوازونه په غټو برېتو کې تاو راتاو شول، له خولې څخه به یې ځگونه او د ډوډۍ خخوځکي روان وو او په غټو گوتو به یې د ږیرې او برېتونو په پاکولو شروع وکړه او بیا به یې سندرې پیل کړې. ده به دغه غزلې په یوه داسې لهجه سره ویلې، چې د لیوه هغه د ژمي انگولا ته ډېرې ورته وې؛ د ودکا تر خلاصېدو پورې به یې غزلې اوږدولې، د شرابو تر خوړلو وروسته به په څوکۍ کې ولوېد، سر به یې پر مېز کېښود او د فابریکې د تولې تر وهلو پورې به هلته ویده شو. سپی به یې هم تر څنگ پروت و.

ولاسوف د فتق په ناروغۍ (يو ډول ناروغي چې د بدن اصلي عضلات پکښي له خپله ځايه بېځايه کيږي او پاړسوب کوي. ل.ل) اخته او مړ شو. د دې ناروغۍ د پنځو ورځو په موده کې په بستره پروت و او د شديد درد څخه لټ پر لټ اوښت، په سترګو يې بانۀ کلک خواره کړي او له درده به يې غاښونه چيچل او وجود يې تک تور شو. کله کله به يې مانديني ته نارې کړې.

- ماته زهر راکړه، مسموم مې کړه...

ښځې يې ډاکټر راوست او د معاينې څخه وروسته ډاکټر پېشنهاد وکړ چې ميخائيل ولاسوف بايد عمليات شي او د دې لپاره بې له ځنډه بايد روغتون ته ورسول شي.

ولاسوف د دې خبرې په اورېدو سره ډاکټر ته مخ ور واړوۀ او په زګيروي سره يې وويل: - ځه، ورک شه، - زه پخپله مرم!.. پست فطرته!

کوم وخت چې ډاکټر د باندې لاړ، مانديته يې په داسې حال کې چې د غم اوښکې يې پر مخ روانې وې، د خپل مېړه خوا تـه ودريده او په زاريو يې ورځنې وغوښتل چې د خپلو عملياتو سره موافقه وکړي. ولاسوف خپل لاس کلک موټی کړ، پر ښځې باندې يې د سوک وار وکړ او ورته يې وويل:

- که چېرې زه جوړ شم، هرومرو به ستا ژوند تر پخوا لا در تريخ کړم.

ولاسوف سهار په هغو شيبو کې کله چې به تولي، ده ته د کار بلنه ورکوله، له ژونده سترګې پټې کړې. هغه وخت چې په تابوت کې آرام پروت و، خوله يې وازه پاتې شوي وه، مګر تندی يې تريو او وروځې يې د عصبانيت په حال کې وې. د ده په جنازه کې د ده ماينې، زوی، سپي، يو زاړه شرابي او غل دانيل ويسوفشيکوف چې د فابريکې څخه شړل شوی و او د محلې څو نورو

غریبو کسانو برخه اخیستي وه او همدوی گور ته وسپارۀ. ښځې یې ورپسې کمه ژړا کوله او مړې - مړې اوښــکې یې تویولې، مگر زوی یې، پاول هېڅ ورباندې ونه ژړل. د دې محلې خلکو چې به په کوڅه کې د ده تابوت ولید، و به دریدل او په ځانونو به یې د صلیب نښه کش کړه او یو بل ته به یې سره وویل:

- ښایي پلاگېیا د خپل مېړۀ په مړینې خوشاله وي...

ځینو به دغه خبره اصلاح کړه او وبه یې ویل:

- هغه مړ شوی ندی، بلکې د سپي په څېر مردار شوی....

کوم وخـت یې چې تـابوت په قبر کې ښـــخ کړ، نو ټول خلک کورو ته راســتانه شــول، مگر ســپی پاتې شــو او د قبر په تازه کېندل شــوو خاورو باندې کېنـاســـت او د ډېرې مودې لپـاره په قبر غلی پروت و او بویاوۀ یې. څو ورځې وروسته کوم چا همالته مړ کړ.

## «۳»

پاول ولاسوف د خپل پلار له مړینې څخه دوې اونۍ وروسته د یکشنبې، د رخصـتۍ په یوه ورځ خپل کور ته ډېر سـخت نشـه راغی. په داسـې حال کې چې کوږ ووږ په لار کې ځنگیدۀ، کوټې ته دننه شو او په څوکۍ ولوېد، د خپل پلار غوندې یې د میز سر په سوک وواهۀ او په مور باندې یې چیغه کړه:

- د شپې ډوډۍ!

مور خپل زوی ته ورنژدې شوه او د ده په څنگ کې کېناستله. هغه یې په غېږ کې ونیو او غوښـــتـل یې چې سر ورته په خپله ســـینه کېږدي او تر خوا یې

ونیســــــي. پاول په داسې حال کې چې په اوږه یې ورته لاس کېښود، خپله مور ټیله کړه او چیغه یې کړه:

- ژر شه، بیړه وکړه!..

په دې وخت کې مور بیا د زوی لاسونه پرېوهل او د غم په لهجه یې چې پکې مهرباني او الفت موجود و، وویل:

اې ناپوهه هلکه!

پاول خپله ژبه په ډېر زحمت په حرکت راوســته او په ګونګه ژبه یې مور ته وویل:

- غواړم سګرېټ وڅکوم! د پلار د تمباکو پایپ مې راکړه...

دا د پاول لومړی نشــه او شراب څښــل و. وډکا یې بدن ضــعیف کړی و، مګر هوښ یې لا په ځای و او له ځانه به یې پوښتنه کوله:

«لکه چې نشه یې؟ نشه یم؟»

د مور له ناز او نزاکت څخه شرمېدی او د هغې له غم ډکو سترګو په لیدو سره به ســخت اندېښــمن او متاثره شــو. غوښــتل یې چې وژاړي، مګر د دې غوښتنې د پټولو لپاره به یې نور هم ځان پر ټګی ښه واچاوهٔ.

مور یې په خوارو وارو او له خولو ډکو ویښــتانو باندې لاس تېراوهٔ او په کراری یې ورته وویل:

- دا کار ستا لپاره لازم نه و...

د هلـک خوا وګرځېده او په اســتفراق یې پیل وکړ.کله چې یې څو ځله ســخت قی وواهه، نو مور یې بســترې ته یووړ او لوند دســتمال یې ورته په ژېړ تندي خپور کړ. څو شــیبې وروســته هغه بیا لږ څه په هوښ راغی، مګر سر یې

ګرځیدۀ او د شـاوخوا او تر پښـو لاندې ټول شـیان پرې څرخیدل. سـږمې پرې درنې شــوې، خوله یې وچه او تریخ خوند یې حس کاوۀ. د باټوګانو لاندې یې خپلې مور ته پټ - پټ ورکتل او په سر کې یې دا خیال ګرځید:

«معلومیږي چې دا کـار زمـا لپاره له وخت نه مخکې دی، ځکه چې نور خلک خو هم شراب خوري، مګر داسې څه نه دي ور پېښ شوي، حال دا چې په ما استفراق راولي او سر مې را ګرځوي...»

په همدې وخت کې د مور نرم آواز له ورایه اوریدل کېدۀ چې ویل یې:

- که چېرته ته په شرابو خوړلو پیل وکړې، له کومه ځایه او په څه شکل به ما ته نفقه راکوې او ساتې به مې...

پاول خپلې سترګې کلکې پټې کړې او ویې ویل:

- زه خو یې یوازې نه خورم، ټول خلک شراب خوري...

مور ســوړ اســویلی وکړ. پاول حق په جانب و. مور پخپله پوهېده چې د خلکو لپاره بې له شرابو خوړلو او بې له میخانو څخه د ســېل او ســات تېریو بله چاره نشته. سره له دې یې بیا هم زوی ته وویل:

- که نور یې خوري، ته یې مه خوره! ســتا پلار دومره شراب څښــلي دي چې ســتا لپاره هم کفایت کوي. ما ستا د پلار له لاسه ډېر کړاوونه لیدلي دي. ته خو به زما سترګو ته وګورې او رحم به راباندې وکړې، څنګه زویه؟

پاول چې د مور نرمې او زړه سواندې خبرې واوریدې، په فکر کې ډوب شـو او ور یاد شـول چې په ریښتیا سره یې مور د پلار په ژوندانه خپل ټول عمر په کور کې ګوښه او بد تېر کړی او هره ورځ به د میړه سوکانو او ګذارونو ته پټه خوله په تمه ناسـته وه. څرنګه چې په وروستیو وختونو کې پاول نه غوښتل چې

د خپل پلار د بد سلوک له کبله ورسره مخامخ شي او خبرې وکړي، نو ځکه به کور ته لږ راتلۀ او د مور څخه يې هم زړه صبر شوی و. اوس چې کرار-کرار پر هوښ راتلئ، خپلې مور ته يې په ځير سره کتل.

د پاول مور د دنګې ونې خاونده وه، مګر د ژوندانه ترخو دردونو يې ملا ور کړوپه کړې وه. ټول بدن يې د دوامدارو کارونو او د مېړه د ګذارونو له لاسه ټوټه - ټوټه و، غلي او بې له شوره به يې په يوه ډډه حرکت کاوۀ چې سړي به فکر کاوۀ، دا د کوم شي سره د مخ کېدلو په سبب بېريدلي ده. د مخ کاسه يې پراخه او بادامي شکل يې درلود چې د ګونځو په وسيله پرې شوي او ټنډه ښکاريده. تورو سترګو يې لکه د دې محلې د اوسيدونکو اکثرو ښځو د سترګو په شان چې د غم او خفګان نښې او نښانې پکې وې، د مخ صورت روښانه کاوۀ. د ښي خوا په وروځه باندې يې ژور پرهار پروت و چې وروځه يې څه نه څه پاس لور ته بې ځايه کړي او داسې ښکاريده چې ګوندې د هغې د ښي اړخ غوږ د کيڼ اړخ د غوږ په نسبت لوړ دی. د همدې علت په اساس داسې معلوميده، چې دې تل په ويريدونکي ډول کوم شي ته غوږ نيولی دی. د سر په تورو او ګڼو ويښتانو کې يې ځينې سپينې زلفې چې د اندېښنو شاهدي يې ورکوله، ځليدلې. سر تر پايه يې ټول صورت نرم، عاجزه او غمځپلی معلوميده. او په باړخوګانو باندې يې مړې - مړې اوښکې توئيدلې.

پاول په غمجن آواز له مور څخه هيله وکړه: - مه ژاړه! ماته اوبه راکړه.

- زه به يخې اوبه راوړم.

مګر کله چې مور اوبه راوړې، هغه ويدۀ شوی و، څو شيبې د هغه سر ته جام په لاس ولاړه وه، لاسونه يې ريږديدل او د يخ ټوټې په کراره کراره د جام

پر خندا لګېدلې. وروسته يې جام د مېز په سر کېښود او غلي د سپېڅلو انځورونو مخ ته په سجده پرېواته او دعا يې وکړه. له کړکۍ بهر د نشه ژوند آوازونه پورته کېدل. د مني د شپې په تيارهٔ او مرطوبه هوا کې هارمونيه ږغېدله، چا په لوړ آواز سره سندرې ويلې، چا کنځاوې او قبيحې خبرې کولې، د ښځو په دردونکو آوازونو کې ستړيا او عصبانيت احساسيدهٔ.

د ولاسوف په کوچني کور کې د پخوا په نسبت ژوند په آرامه او کراره خپله لار وهله او په دې ترتيب يې د کارګرانو د محلې د هر ګوټ له ژوند څخه توپير درلود. د دوی کور د کلي په يوه څنډه جبه زار ته نژدې يوه نيغ ځوړې ته مخامخ ولاړ و. د کور دريمه برخه پخلنځي نيولې وه چې د يوه نري ديوال په واسطه ور څخه يوه وړه کوټنۍ چې پکې مور ژوند کاوهٔ، جلا شوې وه. پاتې نورې دوې برخې يې يوې مربع شکله کوټې چې دوې کړکۍ يې درلودې، نيولې وې. د دې کوټې په کونج کې د پاول چپرکټ او هغه ته څېرمه يو ميز او دوې اوږدې څوکۍ پرتې وې. په ټول کور کې يې يوازې څو څوکۍ، د کاليو صندوق چې يوه کوچنۍ هنداره د هغه پر سر نصب شوې وه، د خوب د بسترو ځای، ديوالي ساعت او د کوټې په لوړني کونج کې دوه ځوړند سپېڅلي انځورونه وه او بس.

پاول هر هغه څه چې د يو ځوان لپاره پکار وو، ځانته پيدا کړل: يوه هارمونيه، اهاردار کالر لرونکی کميس، روښانه نکټايي، کلوشې او امسا يې وپېرل او له خپلو همزولو سره يې ځان برابر کړ. د شپې ميلو ته به تلئ او هلته به يې ډول - ډول نڅاوې کولې. د رخصتيو په ورځو کې به په نشه حالت کې کور

ته راستون شو او تل به یې د وړکا له لاسه ډېره اندېښنه کوله. د سهار له خوا به یې سر درد کاوۀ او بدن به یې سوځېدۀ، مخ به یې تک ژېړ او مړاوی ښکارېدۀ.

یوه ورځ مور ورځنې پوښتنه وکړه:

- تېره شپه دې سات ښه تېر شو؟

پاول په ترېو تندي او عصبانیت ځواب ورکړ:

- زړه مې له خفګانه تک شین دی! ښه به دا وي چې د کبانو ښکار ته لاړ شم او یا ښکاري ټوپک ځانته راونیسم.

پاول بې له غیرحاضرۍ او جریمې څخه په جدي توګه کار کاوۀ او یو ډېر غلی انسان و. سترګې یې د مور په شان غټې او شین رنګه وې چې د مایوسۍ نښې او نښانې پکې لیدل کېدې. هغه ځانته نه ښکاري ټوپک رانیوئ او نه یې د کبانو په ښکار لاس پورې کړ، مګر دا یې وکړل چې د هغې کړې لارې څخه چې ټول پرې روان وو، ځان چپ کړ او کومه یوه بېګانه طریقه یې ځانته غوره کړه: د شپې مېلو او مجلسونو ته یې خپل ورتګ کم کړ او د رخصتیو په ورځو کې سره له دې چې کومې خوا ته به تللی و، مګر هوښیاره او په عادي حالت به کور ته راستنیدۀ. مور یې په ځیر سره هغه تعقیباوۀ او ویې لیدل چې د زوی غنمرنګه څېره ورځ په ورځ تېزیږي، په سترګو کې یې ټینګار او توندلاري لیدل کېده او شونډان یې ډېر سخت وچیدل. داسې ښکارېده چې د کوم شي په اړه پټه اندېښنه کوي او یا دا چې کوم شدید رنځ یې کړوي. پخوا به ورته انډیوالان کور ته راتلل او اوس چې دی په خپل کور کې کم لیدل کېدۀ، نو هغوی هم خپل تګ او راتګ ورسره پرې کړ. مور یې سره له دې چې د خپل زوی په بدلون خوشاله وه مګر کله چې پوه شوه هغه د ژوندانۀ له تور بهیر څخه ګوښه

کوم نامعلوم لور ته په ټینګار او سرکښۍ سره پناه کېدۀ، په زړه ډېره اندېښمنه او ناکراره وه. ځینې وخت به یې ورځنې پوښتنه وکړه: - ګرانه زویه، ناروغ خو به نه یې؟

هغه به ځواب ورکړ: نه مورې، زه روغ یم.

مور به سوړ اسوېلی وکړ او و به یې ویل:- ته له وجوده ډېر ډنګر شوی یې!

پاول کور ته د کتابونو په راوړلو پیل وکړ. په پټه به یې ولوستل او بیا به یې په یو ګوښه ځای کې پټ کړل. په ځینو وختو کې به یې له کتابو څخه بعضې شیان په جلا کاغذو کې ولیکل او هغه به یې هم ګوښه پټ کېښودل.

مور او زوی یو له بل سره ډېر کم لیدل او لږې خبرې به یې هم کولې. پاول چې به سبا ناری- بې له دې چې وغږېږي، وخوړ نو د کار پر لور به روان شو. د ورځې په نیمایي کې د غرمې ډوډۍ خوړلو لپاره یو ځل کور ته را ښکاره کېدۀ او د ډوډۍ خوړلو په وخت کې به یې له مور سره یو څو کلمې خبرې وکړې او بیا به تر ماښامه پورې کوم لور ته پناه شو. د شپې لخوا چې به کور ته راغی، لومړی به یې ځان پاک پرېمنځۀ او وروسته به یې د شپې ډوډۍ وخوړه او بیا به تر ناوخته پورې ناست و او خپل کتابونه به یې لوستل. د رخصتیو په ورځو کې به ګهېځ وختي له کوره څخه ووت او په نیمه شپه به واپس را رسیدۀ.

مور پرې پوهېده چې هغه ښار ته ځي او تیاتر ته هم ورځي اما هېڅوک د ښار څخه د ده د لیدلو لپاره نه راتلل. د مور په نظر داسې ښکاریده چې د وخت په تېرېدو سره یې زوی ورځ په ورځ کمې خبرې کوي او په عین وخت کې یې درک کړه چې د خبرو په وخت کې به یې داسې نوي کلمې راوړلې چې

مور به د هغې په معنا نه پوهېده او له بلې خوا هغه ستغې اصطلاح گانې چې مور ورسره عادت نیولی و، د زوی له خبرو بیخي ورکې شــوې. په رویه کې یې هم ډېر بدلون منځ ته راغی چې لا پســې نور هم د مور د اندېښــنې وړ وگرځېد. د خپـل بـدن او جامو نظافت او پاکوالي کې ته یې د پخوا په نســبت ډېره پاملرنه کوله، چسـت، چالاک او پاک گرځېدهٔ، ظاهراً به سـاده او نرم ښکارېدهٔ. په هغه کې یو نوی بـدلون ورځ پـه ورځ لا پســې پیاوړی کېده او دا حالت د مور ډېره توجه ځانته خپله کړه. د مور سره د ده په مناســباتو کې هم جوت بدلون منځ ته راغی: کله -کله به یې پخپله د کور غولی جارو کاوهٔ، د رخصتیو په ورځو کې به یې خپلـه بســتره پـه خپلـه ټولوله. لنډه دا چې په دې هڅه کې و چې د کور په کارونو کې د مور سره مرسته وکړي او د هغې لاسونه له کاره سپک کړي. دا کار او داسې رویه په دې محله کې هیچا نه کوله...

یوه ورځ پـاول تصــویر کور ته راوړ او د کوټې په دېوال یې وځړاوهٔ. په دې تصـویر کې درې سـړي ترسـیم شـوي وو، چې په مکالمه کې ډوب د کور خواتـه تـه په بیړه او چټکۍ روان وو. پاول مور ته د تصــویر په باب وویل: - دا حضـرت مسیح دی چې را ژوندی شوی او د خپلو یارانو سره د ایمانوس و لور ته روان دی!

د مور دا تصویر خوښ شو، ولې په زړه کې یې وویل:

«ته مسیح ته احترام لرې، مگر کلیسا ته نه ځې»

د دوی د کور په الماریۍ کې چې پاول ته یې یو نجار ملگري ډېر ښایسته جوړه کړې وه، ورځ په ورځ د کتابونو شـمېر زیاتېدهٔ او ورسره کوټې هم ښکلې او په زړه پورې بڼه ځانته غوره کوله.

پاول بـه خپلې مور ته معمولاً د «تاســې» په کلمه سره مخاطب کېدهٔ او ورتـه بـه يې «مورجـانې» غږ کـاوهٔ، مگر ځينې وخـت بـه يې نـاڅاپه هغې ته په مهربانه زړه داسې وويل:

- مورې، ته لطفاً زما په باره کې اندېښنه مه کوه، زه نن شپه ناوخته کور ته راځم...

مور به يې په دې کلمو ډېره خوشاله شوه، ځکه چې د زوی په خبرو کې يې جدي او سخت شيان احساسول.

سره له دې يې ورځ په ورځ اندېښنه زياتېدله، ځکه چې پدې هکله يې د زوی څخـه پوښــتنـه نه شــوه کولای او د وخت په تېرېدو سره دې ته هغه غير معمولي شـيان چې احسـاسول يې، نه څرگنديدل او د مور زړه به لا پسې ښه په ټوپونو شو. ځينې وخت به مور ته د زوی له لاسه نارضايتي پيدا شول او له ځانه سره به يې فکر وکړ:

«نور ټول وگړي لکه د يوه عادي انسـان په شـان ښـکاري، مگر زما زوی داسې دی لکه راهب... ډېر جدي دی. دا کار د ده له سن سره مناسب نه دی...»

کله کله به پدې فکر کې شوه:

«ښايي، چې پاول کومه نجلۍ ځانته پيداکړي وي؟»

ليکن د نجونو پيدا کول او د هغوی سره گرځيدل پيسې غواړي، حال دا چې پاول د خپل کار مزد تقريباً ټولې پيسې خپلې مور ته ورکولې.

په همدې ډول شـپې او ورځې، اونۍ او مياشتې يوه په بلې پسې تېرېدلې او دوه کاله عمر په داســې عجيب او چوپ ژوند کې تېر شـو چې ټول د مبهمو فکرونو، اندېښنو او وهمونو څخه چې په زياتېدو وو، ډک وو.

«۴»

یو مـازدیگر پـاول د کوټې د کړکۍ پرده راکش کړه، کوچنی څراغ یې ولګاوۀ او پر مېخ یې وځړاوۀ، په خپله څوکۍ کې کېناسـت او په مطالعه یې پیل وکړ. مور یې په دې وخت په پخلنځي کې لوښي پرېولل، وروسته په ډېره آرامۍ سره و پـاول تـه راغله. پاول خپل سر را پورته کړ او مور ته یې په اســتفهام سره وکتل.

مور یې په تلوار وویل:

- پاوله، هېڅ د حیرانتیا وړ خبره نشـته.- او په داسې حال کې چې د ډېرې ناکرارۍ په سبب یې خپلې وروځې ښورولې، ولاړه شوه. مګر د پخلنځي په منځ کې یوه شـېبه ودرېدله، ډېره پرېشـانه ښـکارېده، بیا یې خپل لاسونه پرېمنځل او بېرته د پاول و کوټې ته لاړه.

د پاول مور په ډېره آرامۍ ورځنې وپوښتل:

- زویه، غواړم پوه شم چې ته دا ټول عمر څه شی لولې؟

پاول کتاب وتاړۀ او مور ته یې وویل:

- مورجانې، دلته کېنه.

مور په ډېر ناز سره کېناستله او خپل ځان یې د یوه خورا مهم شي اورېدلو لپاره تیار کړ.

پـاول بې له دې چې مور ته وګوري، په خبرو یې پیل وکړ. په دې وخت کې د ده لهجه ډېره جدي وه او داسې یې خبرو ته دوام ورکړ:

- زه منع سوي (انقلابي ل .ل) کتابونه لولم، دا کتابونه د حکومت له خوا منع شوي دي، هېڅوک يې نـــشـــي لوستلای، ځکه دا کتابونه د کارگرو د ژوند په باره کې پوره حقايق بيانوي، دا کتابونه په ډېر چل او مخفي ډول چاپ شوي دي. کـه دوی دغـه کتـابونـه له مورِ سره ووينې، دوی به هرومرو ما بندي کړي. دوی بـه مـا په جېل کې واچوي، ځکه چې زه غواړم د دې کتابونو د مطالعې په ترڅ کې په حقايقو پوه شم. پوه شولې؟

د مور سـاه بنده شــوه، سـترگې يې د ډېري حيرانتيا له مخې ارتې - ارتې شـــوې، خپـل زوی تـه يې کتل او دی ورته پردی معلومېدٔ. د پاول آواز بالکل تغيير وموند، ډېر متين، اغېزمن او د عظمت نه ډک و. پاول په خپلو گڼو او نريو برېتو کې گوتې وهلې، د ســترگو تر کنجو يې د خونې شــاوخوا ته په ډېر دقت سره کتـل. مور د خپـل زوی د بڼې څخـه وېرېـدلـه او پر پـاول بـانـدې يې زړه سوځيد.

مور بيا وپوښتل:

- زويه، ولې ته دغه کارونه کوې؟

پاول خپل سر راپورته کړ، مور ته يې وکتل او په ډېره آرامۍ او نرمۍ سره يې مور ته وويل:

- زه ځکه دغه کتابونه لولم چې په حقيقت پوه شم.

د پـاول آواز کـه څـه هم ټيـټ و، مگر بيـا هم د تـاثير څخه ډک و او په ســترگو کې يې د ټينگار، غرور او غيرت پلوشـــې ځليدلې. مور په زړه کې پوه شـــوله چې ده خپـل ټول عمر د يوه مخفي او ډارونکي شي د حصـــول د پاره قرباني کړی دی. د پاول د مور دا عادت و چې هر څه بې له کوم دليل او منطق

 څخه قبول کړي، همدغه علت و چې د پاول و نظریو ته هم تسلیم شوه. د مور زړه لـه ډېر غم او ډار څخه نژدې و چې وچوي، نو له دې کبله يې ډېر ســـحت وژړل.

پاول په ټيټ آواز او ډېره نرمۍ او نوازش سره و خپلې مور ته وويل:

- مـه ژاړه! مورې تـه خو د دغـه ژونـد پـه باب لږ څه فکر وکړه، ته اوس څلويښـت کلنه يې، تا تراوسه څه ژوند کړی دی او څه دې ليدلي دي؟ زما پلار به درســـت عمر ته ترټلې او ځورولې، دا ځکه دی د خپل ژوند له دردونو څخه په تنگ شـوی و. د خپل ژوند د نااميدۍ او ناکامۍ غچ يې له تا نه اخيست، ده دغه کار د يوې مجهول ځواک په اثر چې په خپله ده ته هم څرگند نه وو، کاوه. ده دلته د دېرشـو کالونو لپاره مريتوب وکړ، هغه وخت فابريکې ته شامل شوی و، چې هلته يوازې دوه ورکشـــاپونه موجود و، اما اوس هلته اووه تعميرونه جوړ شوي دي.

مگر مور د ده له وينا څخه داســـې برداشـــت واخيســـت، لکه پاول چې خدای پاماني ورسره کوي.

مور په داسې حال کې زوی ته غوږ نيولی و چې ټول وجود يې ويرې او ډار نيولی وو. د ده په مهربانو ســترگو کې د مينې او الفت شـغلې بلې شـوې، په دې وخت کې پاول خپله ســـينه په ميز باندې ايښـــې وه، د مور و خوا ته ورکوږ شـــو او د خپلې مور په اوښـــکو لانده مخ ته يې د حقيقت په باب خپل لومړۍ نطق پـه ډېري مېړاني او متانت سره اداء کړ. ده دغه نطق د ځوانۍ په جوش سره د يوه داســې شاگرد په څېر اداء کاوه چې پر خپلو ټولو معلوماتو باندې يې پوره اعتماد درلود. پاول په دې نطق کې هغه شيان بيان کړل، کوم چې ده ته معلوم او

څرګند وو، ده دغه ویناوې یوازې د نطق د اداء کولو لپاره بیان کړې او یوازینۍ هیله یې دا نـه وه چې خپلې مور تـه قنـاعـت ورکړي، بلکـه پـه خپلـه هم بـایـد وربـاندې متیقین شــوی وای. کله-کله به پاول د نطق په ترڅ کې د کوم مطلوب لغت د پیدا کېدو په غرض ودرېد او مور ته به ځیر شـو، نو دا به ور معلومه شوه چې مور یې د غم او سترې ویرې په دریاب کې ډوبه شوې ده.

د دې د مهربـانۍ او شــفقت نه ډکې ســترګې په خورا عجیب ډول سره ځلیدلې او په خورا دقت سره به یې زوی ته کتل. پاول د خپلې مور په وضعیت سره ډېر غمجن شـو او د دوهم ځل لپاره یې د دې د ژوند په باب خبرې شروع کړې او د مور څخه به یې پوښتنه کوله:

- مورې! ته په خپل ټول ژوند کې څه ډول خوښي پېژنې او کوم ښه شی دې په یاد دی؟

دې چې خپـل زوی ته غوږ نیولی و، په ډېرې غمجنۍ سر وښــوراوۀ. د مور سر د داسې افکارو څخه اوس ډک و چې غم او خوښي یې دواړه سره لړلي و. دا افکـار د دې د ټېپي زړه لپـاره دارو ول. پخوا له دې هېڅا و دې ته د دې د ژونـد پـه بـاب یوه کلمـه هم پر خولـه نـه وه راوړې. د پـاول وینـا د دې هغـه احسـاسـات په ولولو راوسـتل کوم چې تقریباً مړۀ شـوي وو. د دې د ځوانۍ او خورا ډېر لېرې او تاریک ژوند هېر شـوي افکار یو ځل بیا را ژوندي شول. مور له خپلو همزولو ښــځو سره د ژوند په اړه خبرې کړي وې اما د مور او د هغې د همزولو خبرې اوږدې او دوامـدارې وې. د مور او د هغې د ملګرو خبرو مهم ټکي له ژوندانه څخه شکایت و او بس. دوی هېڅکله د ژوندانه د ستونزو علت نه بیاناوۀ. مګر اوس په همدې وخت کې چې یې زوی و مخ ته ناست دی، ټول

دغـه ســـتونزي په داســـې الفاظو سره بيانوي چې هر يو يې د دې د زړه څوکې مښـــلي. مور د دې ډول زوی په لرلو سره د يوه عجيب غرور او فخر احســـاس کـاوۀ، ځکه دا هغه زوی و چې د مور د ژوند د کوايفو څخه پوره خبر و، د دې د ژوند د تېر شوو کړاوونو په هکله خبرې ورته کوي او د دې سره خپله د زړه له کومې همدردي ښيي.

مور د خپل زوی په مطلب ښه پوه شوله. د پاول په وينا يې ټول هغه شيان چې د ښځو د ژوند په باب يې ويل، خورا ترخۀ، بالکل ثابت او حق وه. د پاول وينا هغه ويدۀ احساسات چې د ده د مور زړه يې ويلې کړی و، راپاڅول.

مور د پاول د خبرو په منځ کې ورولوېدله او ويې ويل:

- زويه، ته د کوم مقصد لپاره کار کوې؟

- زما مقصـد دا دی چې لومړی مطالعه وکړم، وروسته بيا نورو کارگرو ته ښودنه وکړم. موږ کارگران بايد اول څه زده کړو، موږ بايد هرومرو په دې پوه شو چې ولې داسې سخت ژوند تېروو، پر موږ باندې څه ډول قانون حکمفرما دی، د دې قانون هدف او مرام څه دی.

مور د خپل زوی د شـــنو ســـترگو په ليدلو سره چې پخوا ډېرې جدي او ســـنگينې وې، لېکن اوس خورا نرمې او مهربانې ځليدلې، ډېره خوشـــاله وه. په دې وخت کې که څه هم د اوښـکو سېلاب د دې پر مړاوو برخوگانو باندې بې شـــمېره شـــيلې جوړې کړي وې، خو بيا هم د دې پر شـــونډو يوه نرۍ خندا پيدا شـــوه. د پاول مور په دې وخت کې د دوو حالتونو ترمنځ وه: اول دا چې د پاول پـه څېر زوی لري او هغـه د ژونـدانه په ټولو حقايقو او رموزو باندې پوهيږي، د دې د خوشالۍ سبب کېده. اما د بلې خوا چې دې فکر کاوۀ، پاول خو يو ځوان

هلک دی، د عامو او ټولو خلکو د رایې نه مخالف دی، یوازې یې د هغو شیانو د مجادلې لپاره ملا تړلې ده، کوم چې د ټولو خلکو لپاره، د ده د مور په ګډون د ایمان او عقیدې وړ وو. د مور په زړه کې دا وګرځیده چې ده ته ووایي: «زما زړګیه! ته په یوازې سر څه کولای شې؟»

تر دې جملې وروسته د مور په زړه کې یو ډول ویره ور پیدا شوه چې مبادا زما هغه پخوانۍ مینه او محبت د پاول په حق کې د ده د دې نوي تحول او هوښیارۍ په اثر کمه نشي.

پاول چې د مور بڼه خوشاله او په شونډو کې موسکا او په سترګو کې یې مینه او محبت ولیدل نو سمدستي یې حس کړه: زه په دې بریالی شوم چې مور په پوره حقیقت پوه کړم. د غرور او ویاړ نه ډکو الفاظو د ده عقیده لا ورسره پیاوړې کړه. پاول په ډېرو ولولو سره خبرې کولې، کله به یې یو تبسم وکړ او کله به یې تندی تریو کړ، کله کله به د ده الفاظ د پوره او ډېري کرکي سره تړلي وو او مور چې به هغه واوریدل، وبه وېرېدله. د ده کلمات ډېر سخت او ټکان ورکوونکي وو، نو له دې کبله به مور سر وښوراوۀ او په نرمۍ سره به یې پوښتنه وکړه:

- پاوله زویه، آیا دا کار شونی دی؟

ده به په ډېر جدیت او ټینګه سره وویل:

- هوکې مورې، شونی دی.

ده و مور ته د هغو کسانو په باب کیسه شروع کړه کوم چې په یوه خراب او پلید چاپېریال کې ښه فکر لري، د هغو کسانو په باب چې د خلکو په منځ

کې د حقایقو تخم پاشي او د انسـانیت، شرافت او وجدان د دښـمنانو له خوا د یوه حیوان په څېر ښکار کیږي.

ده په ډېر لوړ او تاوده غږ سره وویل:

- زه دغه ډول خلک پېژنم. دوی د ځمکې د مخ تر ټولو ښه خلک دي.

دې ډول خلکو د مور پـه زړه کې وېره راپـاڅوله او غوښـتـل یې چې ورځنې پوښتنه وکړي: آیا دا شونې ده؟

مګر د پوښتنې جرئت یې پیدا نکړ او په لړزانده زړه سره یې د هغو خلکو په باب کیســو ته غوږ نیولی و، چې ټول ورته مجهول ښــکارېدل، کومو چې د دې زوی تـه دومره ډارونکي شــیـان ور زده کړي وو. پـه پای کې مور پاول ته وویل:

- سهار رانژدې شو. ښه به دا وي چې لاړ شې او لږ استراحت وکړې.

پاول قانع شو

- بلې، زه بـه اوس خوب وکړم.- په همدې وخت کې د مور و خوا ته ور ښکته شو او ورځخه یې وپوښتل:

- اوس ښه پوه شوې؟

مور په سړه سینه ځواب ورکړ:

- پوه شـومه. – په دې وخت کې یو ځل بیا د مور پر مخ باندې د اوښکو سېلاب راغی او په ناڅاپي ډول سره یې وژړل او د ژړا په منځ کې یې وویل: - دا افکار به ستا د خرابۍ سبب وګرځي.

پاول د خپل ځای څخه پورته شو او په کوټه کې یې قدم وهل پیل کړل. وروسته یې وویل:

- مورې، تـه اوس پوه شـــوې چې زه څـه کوم او پر کوم لوري مې مخه نیولې ده، مـا و تـا تـه د خپل زړه ټول حال ووایه. نو که چېرې پر تا باندې گران یم، مورې لطفاً زما مخنیوی مه کوه!..

مور په وارخطایۍ سره څرگنده کړه:

- د زړه سره! کاش په هېڅ باندې نه وای خبره!

ده د مور لاسونه ونیول او په خپلو لاسونو کې یې کلک کړل.

دې تـه د (مورې) کلمه ډېره رېږدونکې وه ځکه چې پاول په ډېر تودوالي اداء کړه او دا د لاسونو نیول هم د مور لپاره نوي او حیرانونکي وو.

مور په پرې کړي آواز سره وویل:

- زه به هېڅوخت ستا خنډ نشم، مگر ته باید ځان وساتې!

دا په خپله هم نه پوهېده چې د څه شي څخه ځان باید وساتي، نو یې په خفگان سره زیاته کړه:

- ته خورا ډېر ډنگر شوی یې...

ده ته یې بیا د مهربانۍ سترگې ور واړولې، کښته او پورته یې وکوت او په بیړه یې وویل:

- خدای دې ملگری اوســه، څنگه دې چې زړه غواړي، هماغســې کوه، مگر یوه هیله مې دا ده- چې د هر چا سره خبرې بې ډاره مه کوه، د خلکو څخه وېره پکـار ده. دوی ټولـه یو د بل څخه کرکه لري، زړونه یې د حســـد او کینې څخه ډک دي. د بل چا په غم ټول خوشـــحاله کیږي. کله چې د هغوی دا کار وغندې، درڅخه کرکجن کیږي او غواړي چې له منځه دې یوسي.

زوی پـه دروازه کې ولاړ او د مور دې غمجنې وینـا ته یې غوږ نیولی و، کله چې دې خپلې خبرې خلاصې کړې، ده په موسکا سره وویل:

- بلې، خلک بد دي، نو کله چې زه پوه شوم چې پر ځمکه حقیقت هم شته دی، اوس ټوله خلک ښه راته ایسي.

ده بیا موسکا وکړه او زیاته یې کړه:

- زه هم نـه پوهېږم چې دا بدلونونه څه ډول راغلل، کله چې وړوکی وم، له ټولو څخه وېرېدلم، چې لږ غټ شـــوم ځینې مې د رذیلو اعمالو او ځینې نور مې د نورو ساده علتونو په اساس لیدای نشول. او اوس مې فکر بل ډول دی. پر ټولو باندې مې زړه خوږېږي. زړه مې اوس ډېر نرم شـــو کله چې پوه شـــوم، د خلکو د گمراهیو له کبله ټول له دوی څخه ملامت ندي...

دی چوپ شـــو، لکـه په خپله یې چې ځانته غوږ نیولی وي او بیا یې په ټیټ آواز، په داسې حال کې چې په فکر کې ډوب تللی و، وویل:

- دا ټول تحول د حقیقت محصول دی!

پـه دې وخـت کې د مور زړه دربیـدئ او تر یوه حیرت وړونکي کتلو وروسته یې وویل:

- آه مهربانه عیســـــی! زما د زوی څومره ډارونکی او گواښـمن بدلون په برخه شو!

کله چې پاول ویده شو، مور له خپلې بسترې څخه پاځیده، دهٔ ته ورغله، که گوري پاول سـتونی سـتخ لویدلی او د ده غنمرنگه له عظمته ډک جدي مخ پر سـپین بالښت پروت دی. مور یې لوڅې پښې د شپې په کالیو کې ورته ولاړه

وه. لاسـونه يې پر خپله سـينه نيولي او شـونډې يې بې له دې چې آواز وباسي، ښوريدلې او پر مخ يې اوښکې روانې وې.

د دوی په ژوند يو ځل بيا چوپتيا مسـلطه شوه، په داسې حال کې چې په ظاهره سره لېرې، خو په زړونو کې سره نژدې وو.

«۵»

يوه ورځ د اونۍ په منځ کې رخصـتي شـوه، پاول په داسې حال کې چې له کوره بهر تلئ، مور ته وويل:

- د شنبې په ورځ ځيني ملګري زما د ليدلو لپاره له ښاره دلته راځي.

- له ښــار څخه؟- مور چې پورتنۍ جمله اداء کړه، تر هغه وروسـته يې په ژړا پيل وکړ.

پاول چې د مور ژړا وليدله، نو په عصبانيت سره يې وويل:

- مورې، څه کيسه ده؟

مورې يې په لمن اوښکې پاکې کړې او ويې ويل:

- زه نه پوهېږم.

- وېرېږې؟

مور وويل:

- هو، وېرېږم.

دی د مور خوا تـه ورغی او د پلار غونـدې يې پـه يوه تونـده لهجـه سره داسې خبرې وکړې:

- همدا ویره ده چې زموږ د مصیبت سبب ګرځېدلې ده! دوی زموږ دغه ویره او ډار لیدلی دی، چې له موږ ګټه پورته کوي او موږ ته د یوه حیوان حیثیت لا څه چې د یوه جماد په سترګه هم نه ګوري.

په دې وخت کې مور په ډېره ناارامۍ سره وژړل او ویې ویل:

- زویه، ته مه په قهر کېږه! زه به په څه ډول خپل ځان له وېرې څخه وساتم، په داسې حال کې چې زما ټول ژوند په ویره او ډار کې تېر شوی دی او د روح یوازیني خواږه مې وحشت او ډار و. ویره زما په روح کې ګډه شوې ده.

پاول په آرام او نرم آواز سره وویل:

- مورې، دا چې ما تاته ربړ او کړاو درپېښ کړی، زه خجالته یم او له تاسو ښښنه غواړم. خو څه وکړم، بل چاره نشته!

پاول چې مور تـه دغه وینا وکړه، د کور څخه ووت. د پاول مور د اونۍ پاته درې شپې په غم او ګروم سره تېرې کړې. هره شېبه به یې دا فکر کاوۀ چې دلته به څومره مضـــر او ډارونکي خلک راشي. دغه خلک هغه کسان دي چې زوی ته یې دغه نوي لار ښودلې ده..

د شـنبې په ماښــام پاول کور ته راغی، لاس او مخ یې ومینځل، کالي یې بدل کړل او بېرته د باندې لاړ، مور ته یې وویل:

- که څوک راغی، ورته ووایه چې زه به ډېر ژر بېرته راشــم. همدارنګه دا هیله کوم چې له وېرې ځان وساتې.

مور پـه مـات زړه پر یوه اوږده څوکۍ کېنـاســـته. پاول په تریو تندي ورته وکتل او یاده یې کړه:

- مورې، دا به ښه وي، چې ته نن شپه بل چېرې ولاړه شې؟

د مور په دغه خبره زړه خفه شو او ويې ويل:

- ولې بايد زه د باندې ولاړه شم؟

دغه وخت د نومبر د مياشتې اخيرې ورځې وې، ډېره واوره هم وريدلې وه او ټوله ځمکه يخ وه. د پاول مور د زوی تر بوټو لاندې د واورې غږ اوريد. په کړکۍ کې يوه توره تياره چې د يوه ظالم دښمن بڼه يې درلوده، ځرګنده شوه. مور چې هلته ناسته وه، څوکۍ يې په دواړو لاسونو ټينګه کړه او دواړه سترګې يې د کور و دروازې ته نيولې وې.

دي خيال کاوۀ ځينې ډېر بد خلک چې عجيب او غريب کالي يې اغوستي، په دې توره تياره کې د دې د کور خوا ته په ډېر احتياط سره را روان دي. لږ شيبه وروسته د يوه سړي د ګوتو شور په دې ډول واوريدل شو، لکه يو سړی چې د غلا په مطلب پسې وي.

په همدې وخت کې مور د يوه سړي شپېلک واوريد. دا غږ د تورې تيارې په منځ کې په ډېره خاموشانه ډول سره داسې اوريدل کېدۀ، چې سړي به فکر کاوۀ دا غږ کوم کس لټوي، غږ وار په وار نژدې کېدۀ. ناڅاپه دغه غږ د خونې له کړکۍ ورک شو.

لږ وروسته بيا د پښو د حرکت غږ په دهليز کې واوريدل شو، مور په داسې حال چې ټول وجود يې ريږديدۀ، په ډېره سختۍ سره وروځې پورته کړې، جګه شوه.

په همدې وخت کې د کور دروازه خلاصه شوه. اول د يوه سړي سر په يوه لويه خولۍ کې ښکاره شو، وروسته بيا يو جګ سړی په کوچنۍ دروازه کې

ښکاره شو چې ډېر ژر یې ځان بېرته د یو عادي سړي په ډول سم کړ. یوه شیبه وروسته ښی لاس پورته شو او د مور سلام او احترام یې پر ځای کړ.

مور هم بې له دې چې ده ته په خوله ځواب ورکړي، د هغه سلام د ځان په کږولو سره اداء کړ.

سړي پوښتنه وکړه:

- پاول په کور کې دی؟

میلمه خپله کورتۍ چې له یوه پوست څخه جوړه شوې وه، په کراره سره وکښله، یوه پښه یې پورته کړه، د خپلې خولۍ په واسطه یې د موزې څخه واوره لېرې کړه، هغه بله موزه یې هم په همدغه ډول پاکه کړه. کله چې موزې پاکې شوې، نو یې خولۍ د خونې یوه کونج ته وغورځوله او په داسې حال کې چې په خپلو اوږدو پښو له یوې خوا بلې خوا ته خوځېدهٔ، کوټې ته ور دننه شو. لږ څه وروسته یې یوې څوکۍ ته ځان ورساوهٔ او امتحان یې کړه چې آیا د ده د وزن اخیستلو وړتیا لري او که یا؟ کله چې یې یقین حاصل شو، په هغه څوکۍ کېناست، تر کېناستلو وروسته یې یوه اوږده ارږمۍ وکښله او د ارږمۍ په وخت کې یې لاس خولې ته ونیو. میلمه د سر ویښتان خریلي وو، ږیره یې پاکه خریلي او د برېتو سرونه یې ځوړند وو. میلمه په ډېر دقت سره دا وړوکې کوټه په خپلو لویو راوتلو سترګو مشاهده کړه. دهٔ یوه پښه پر بله واړوله، په داسې حال کې چې څوکۍ یې مخې او شا ته ښوروله، وویل:

- دا ستاسې خپل کور دی، که مو کرایي نیولی دی؟

مور چې مېلمه ته مخامخ ناسته وه، ځواب ورکړ:

- کرایه ورکوو.

مېلمه زياته کړه:

- دا کور دومره صفتي نه دی.

د پاول مور غلي وويل:

- پاول به ډېر ژر راشي، تاسې لږ په تمه شئ.

لوړ او لوی سړي په کراره ځواب ورکړ:

- هو! زه هم منتظر يم.

مور چې د مېلمـه نرمه لهجه، آرامي او د مخ پاکوالی وليد، نو لږ څه ډاډه شـوه. د سـړي هر نظر له لطافت او صـميميت څخه ډک و، د نشـاط او خوابنۍ وړانگو يې د ښــکلو ســترگو په بېخ کې نخاوې کولې. ده يوه آبي رنگه کميس اغوستی و او تور پتلون چې په موزو کې يې منډلی وو، په ځان کې درلود. مور وغوښـتل چې پوښتنه وکړي چې دی څوک دی، د کوم ځای څخه راغلی دی، د دې لـه زوی سره د څـه وخت راپدېخوا پېژني. مگر د مور نه وړاندې په خپله مېلمه په خبرو پيل وکړ او ويې پوښتل:

- نېنکو[1] دا ستاسې پر تندي- ټپ د څه شي دی؟

د ده د خبرو لهجه ډېره نرمه او خوله يې له موسـکا ډکه وه، خو مور د ده په دې پوښــتني باندي ډېره خواشــيني شــوه. مور په يوه معمولي نزاکت سره په داسې حال کې چې شونډې يې تړلي وې، وويل:

- ځوانه، دا په تا پورې څه اړه لري؟

دی د مور و خوا ته ورنژدې شو او ورته ويې ويل:

[1] اکراينيان د ډېرې مينې په اساس ښځې ته نېنکو وايي، چې د مور معنی لري. (م.).

- مورې، مه خفه کېږه! ما دا پوښتنه د دې لپاره وکړه چې زما رضايي مور هم عيناً ســتـا په څېر ټپ درلود. زما مور ته دغه ټپ د خپل مېړه څخه ورپاتې شـوی و. د هغې مېړه موچي و او دا په خپله دوبي وه. دغې ښـځې زما سـاتنه پر غاړه واخيسـته، وروسته يې دغه شرابي په کوم ځای کې پيدا کړی و. دا ښځه به تل د مېړه له لاسـه په غم کې ډوبه وه. دې سړي به دغه ښځه دومره ووهله، چې نژدې و زما سترګې له ډېرې ويرې څخه وچوي...

د پاول مور د هغه باور څخه چې د دې سـړي په اړه يې درلود، تېره شـوه او لـه دې څخـه وويرېـده، چې ښـــايي پاول زما د بې احترامۍ څخه چې د دې سـړي په اړه مې کړي ده، خفه شي. مور د خجالت په ډول موسکا وکړه او ويې ويل:

- زه په ريښـتيا سره غوسـه نه شـوم، خو تا له ما څخه ډېره ناڅاپي پوښتنه وکړه. زما خاوند هم کټ مټ دغه عادت درلود، خو خدای دې وکړي چې د ده روح اوس په قبر کې آرامه وي. ته لکه چې د تاتار له قوم څخه يې؟

دې سـړي پښـې وښورولې، يو اوږد پوزخند يې وواهۀ، څو چې غوږونه يې هم وښورېدل، وروسته يې يوه ښه بڼه ځان ته اختيار کړه او ويې ويل:

- يه، تراوسه پورې تاتار شوی نه يم.

مور د ده پر دې لنډې ټوکې پورې وخندل، ويې ويل:

- ستا خبرې يوه حقيقي روسي ته نه دي ورته.

مېلمه وخندل او په خوښۍ يې وويل:

- زمـا لهجـه تر روسي هم ښـــه ده، سره لـه دې چې زه خوخول يم او د کانيف په ښار کې اوسيدلی يم.

مور پوښتنه وکړه:

- آیا تا دلته ډېر ژوند کړی دی؟

مېلمه ځواب ورکړ:

- یو کال مې په ښــار کې تېر کړی دی، یوه میاشــت کېږي چې په دې فابریکه کې کار کوم، دلته ســتا د زوی په څېر نور خلک هم موجود دي. – په دې وخت کې دهٔ خپل برېتونه وښـورول او ویې ویل: - همدغه ښـه خلک دي چې زه د دې ځای په ژوند راضي شوی یم.

مور له مېلمه څخه خوشـــاله شـــوه او ویې غوښـــتل چې یو ځل بیا د ده احترام پر ځای کړي. دا ځکه چې ده د هغې د زوی ستاینه وکړه.

مور د مېلمه څخه وپوښــتل:- نه غواړې چې یو ګیلاس چای وڅښـــې؟ - مېلمه اوږې وښورولې او ویې ویل:

- یوازې یې وڅښـــم؟ لطفاً پـه تمه اوســـه، تر څو نور هم راشي. په دې ترتیب به تاسې د ټولو احترام په یوه پلا پر ځای کړئ...

د مېلمـه دې کلمو د مور پخوانۍ وېره ور پـه زړه کړه. هغې فکر وکړ: «کاشکې هغه نور هم د ده په څېر وي».

په دې وخت کې بیا د پښو غږ په دهلیز کې واورېدل شو، وروسته د کور ور نیم کښـه خلاص شو. مور ور ولاړه شوه، مګر په حیرانتیا سره یې ولیدل چې یوه ځوانه نجلۍ راننوتله. دا نجلۍ یوه کلیوالي نجلۍ ښـــکارېده، قد یې لوړ و، ســـاده څېره یې درلوده، د خپل سر ټول وېښـــتان یې کوڅۍ کړي وو. نجلۍ په نرمۍ وپوښتل:

- آیا زه ناوخته راغلم؟

خوخول د کور ور ته وکتل، ویې ویل:

- یه، پر خپل وخت راغلې، پلې راغلې؟

- البته او تاسې د پاول میخائلوویچ مور یاست؟ السلام علیکم، زما نوم ناتاشا دی!

مور پوښتنه ترې وکړه:

- پلرنی نوم دې څه دی؟

نجلۍ وویل:

- واسیلیفنا دی او ستاسې نوم؟

مور وویل:

- زما پلرنی نوم نیلوفنا دی او مکمل نوم مې بلاګېیا نیلوفنا دی.

- اوس موږ یو او بل سره آشنا شوو.

مور خپل تنفس بند کړ او په خندا سره یې وویل:

- هو.

خوخول د نجلۍ سره د بالاپوښ په ایستلو کې مرسته کوله او پوښتنه یې ترې وکړه:

- هوا ډېره سړه ده؟

- په دښت کې ډېر توند او سوړ باد چلیږي.

د ناتاشا آواز صاف او ځواکمن و. خوله یې کوچنۍ، شونډې نرۍ او چاغې، او باړخوګان یې سرۀ وو، په عمومي ډول داسې سره او سپینه معلومېده، لکه د ګلاب ګل. کله چې ناتاشا کالي وکښل، نو خپل بارخوګان چې د یخ

څخه ریږدیدل، په لاسو ومښل، په چټکۍ سره یوې بلې کوټې ته ننوتله، دا چې پر لارې تله، په سختۍ سره یې پندۍ پر ځمکه وهلې.

د مور په فکر کې راوګرځیدل: بې له کلوشو ګرځي!

ناتاشا وویل:

-... بهر د سړو د لاسه بالکل یخ شوي یم.

مور په تلوار وویل:

- زه به دستي سماوار تود کړم، ته یوه دقیقه صبر وکړه. – سمدستي پخلنځي ته لاړه.

مور ته دا نجلۍ دومره عادي معلومېده، لکه د ډېر وخت راهیسې چې ورسره آشنا وي. د مور په زړه کې د دې په اړه ډېره مینه او ګرانښت پیدا شو. په داسې حال کې چې په شونډو یې موسکا خواره وه، په کوټه کې یې خبرو ته غوږ نیولی و.

نجلۍ وپوښتل:

- ناخودکه د څه شي په باره کې دومره پرېشانه یې؟

خوخول په ځواب کې وویل:

- هېڅ، کوم مخصوص شی نشته. دغه کونډه ډېره مهربانه ښځه ده او زه فکر کوم چې زما مور به هم و دې ښځې ته ډېره ورته وي. زه تل د خپلې مور په اړه فکر کوم او کله -کله دا فکر را پیدا شي چې ښایي زما مور اوس هم ژوندۍ وي.

- خو تا وویل چې هغه مړه ده.

- ګرانې، هغه چې ما تاته وویل هغه زما مور نه وه، بلکې هغه زما رضـايي مور وه، خو زه اوس تاته د خپلې اصـلي مور په باره کې خبرې کوم، ښايي چې زما مور د کيئف د ښـار په کوڅو او جادو کې فقر او سـوال کوي او د سـوال په پيسو سره وډکا رانيسـي او هغه څښي. کله چې زما مور په دې توګه نشه شي، نو پوليس راشي او دا پر مخ باندې ووهي...

د دې خبرې په اوريدو سره مور سـوړ اسـوېلی وکېښ او له ځان سره يې وويل: «اې بېچاره سړيه!»

ناتاشـــا په چابک او تونډ آواز سره کوم شی ووايه. په دې وخت کې يو ځل بيا د خوخول غبرګ پورته شو.

- ناتاشـا، ته لا تراوسه پورې يوه پاکه کوچنۍ نجلۍ يې، د ژوندانه ترخې او خوږې دې نه دي ليدلي. دا به تاته څرګنده وي چې د يوه انسان پيداکول ډېر سـتونزمن کار دی، اما تر هغه لا ډېر سـتونزمن کار دا دی چې سـړی دغه ډول ناپوه موجود وپوهوي.

مور له ځان سره په حيرانتيا وويل: «څومره هوښياره يې» او ويې وغوښتل چې د مېلمه روح يو څه آرامه کړي. په همدې وخت کې د کور ور خلاص شو او نيکولای ويســوفشــيکوف چې د يوه مشـــهور غلۀ دانيلو زوی و، و انګړ ته راننوت. نيکولای د ګوښه والي په اثر په ټوله محله کې مشهور و. ده به تل خپل ځـان تريو نيولی و او تل به پټه خولۀ ګرځېدۀ او د خلکو څخه به يې ډډه کوله. نو لـه همـدې کبلـه خلکو تـل دغـه هيلـه درلوده چې دی وځوروي او ملنـډې ورباندې وکړي. مور په حيرانتيا ورڅخه پوښتنه وکړه:

- نيکولايه، څه خبره ده؟

نیکولای بې له دې چې مور ته سـلام واچوي، په داسې حال کې چې خپل ارت مخ یې په لاسو مښئ، وویل:

- پاول په کور دی؟

مور ځواب ورکړ:

- یه.

نیکولای خونې ته وکتل، وروسته هلته ورغلی او ور نڼووت، ده وویل:

- ملگرو، مازدیگر مو په خیر...

«دی هم؟» - مور په حیرانونکي توگه فکر وکړ او په ډېره حیرانتیا سره یې ولیدل چې ناتاشا ده ته لاس ورکړ او د دهٔ په لیدلو سره خوشاله شوه. په نیکولای پسې دوه نور کسان چې ښه پوره هلکان وه، کور ته راننوتل. مور دغه یو هلک چې ښـه څېره او ښـکلي ویښتان یې درلودل، پیژندهٔ. دی، د فابریکې د یوه زاړهٔ کارگر زوی و. پراخ او ښه لوړ تندی یې درلود، نوم یې فیودور و. هغه بل هلک چې ویښـتان یې په ښـه توگه سره بږمنځ کړي وو، مور نهٔ پېژندهٔ، مگر د هغه د لیدلو څخه د دې په زړه کې کومه وېره پیدا نشوه. تر ټولو وروسته پاول راغی. د ده سره هم دوه ملگري وو. دغـه دواړه مور پېژنـدل، ځکه چې هغوی په هماغه فابریکه کې کار کاوهٔ. پاول په نرمۍ سره مور ته وویل:

- سماوار تود دی؟- او د مور څخه یې ډېره مننه وکړه.

مور پاول ته وویل:

- آیا وډکا راوړم؟ - مور په دې پېشنهاد سره غوښتل، چې د زوی سره خپله قـدرداني د هغـه شي لـه کبلـه چې پخپلـه دې تـه هم معلوم نه و، څرگنده کړي.

پاول د مینې او محبت څخه په ډک آواز سره وویل:

- مورې، مورې شراب نه چښو.

مور ته دا فکر ور پیدا شو، چې پاول د دغه میلمستیا ګواښ شعوراً د دې لپاره زیات کړی دی چې دغه خلک زما پر ډار وخاندي.

په همدې وخت کې دې په پټه له زوی څخه پوښتنه وکړه؟

- آیا هغه ممنوعه خلک همدغه دي؟

پاول په داسې حال کې چې کوټې ته دننه کېدهٔ، ځواب ورکړ:

- هو، همدغه خلک دي.

مور په ډېرې مینې سره په ده پسې غږ کړ:

- اخ ته شـــیطانه!- او له خپل ځان سره یې وویل: «تراوســـه پورې بالکل ماشوم دی».

## «٦»

کله چې ســـماوار ژایشـــید، مور هغه خونې ته راوړ. ټول مېلمانه د مېز پر شـاوخوا ناسـت وو. ناتاشـا په یوه کونج کې څراغ ته نژدې ناسته وه او یو کتاب یې په لاس کې نیولی و. ناتاشا ویل:

- د دې لپاره چې پوه شو ولې خلک داسې سخت ژوند لري...

خوخول په خبرو کې ور ولوېد:

- او ولې دوی ټخپله دومره خراب او مضر دي...

ناتاشا دوام ورکړ:

- او باید ووینو چې دوی په څه ډول خپل ژوند پیل کړی دی...

مور پـه داســې حـال کې چې چای یې دم کاوه، تر شــونډو لاندې یې وویل:

- وګورئ، ګرانو، وګورئ!

ټولو خبرې بس کړې.

پاول په تریو تندي سره وپوښتل:

- ته څه وایې، مورې؟

مور خپـل نظر شــاتـه واچـاوه او کلـه یې چې ولیدل ټول خلک دې ته متوجه دي، په وارخطایی یې وویل:

- زه خو یوازې له ځان سره لګیا وم.

ناتاشا وخندل او پاول هم موسکا وکړه. خوخول وویل:

- مورې، ستا د چایو څخه ډېره منندویه یم.

دې وویل:

- لومړی چای وڅښــئ او وروســته بیا مننه وکړئ. – بیا یې خپل زوی ته وکتل او ورڅخه یې وپوښتل: - زه خو به مزاحمه نه یم؟

ناتاشا ځواب ورکړ:

- دا څنګه کېدلای شي چې د کور خاونده د مېلمنو مانع شي؟

او د یوې ماشومې غوندې یې ترینه وغوښتل:

- مورجانې، ژر یوه پیاله چای راکړه. زه بیخي د یخنی له لاســه ریږدم او پښې مې لکه یخ داسې دي.

- ډېر ښه، ډېر ښه. اوس یې راوړم. – مور په ډېر تلوار غبږ کړ.

ناتاشا چې چای وڅښلې نو پر تندي راځړېدلي ويښتان يې شاته ووهل او د هغه کتاب په لوستلو يې چې ژېړ پوښ يې درلود، پيل وکړ. مور چې نورو مېلمنو ته چای اچولې، نو کوښښ يې کاوۀ چې د چای اچول شورهاری پيدا نه کړي او په ډېره توجه يې خبرو ته غوږ نيولی و. د نجلۍ او سماوار آواز به سره ګډ شو. ناتاشا يو شمېر کيسې چې ټولې د ابتدايي خلکو په باب او د هغه کسان په باره کې وې چې هغو د غرونو په غارو کې ژوند کاوۀ او حيوانات يې په ډبرو وژل. دا کيسې مور ته د پخوانيو نکلو په څېر معلومېدلې. مور و خپل زوی ته څو ځله وکتل او غوښتل يې چې د ده څخه پوښتنه وکړي: «زويه، دا کيسې ولې منع دي؟» اما ژر دا د کتاب له تعقيب څخه پاته شوه. نو سمدستي بې له دې چې څوک ورته متوجه شي، د مېلمنو د څېرو په مطالعه اخته شوه.



پاول د ناتاشا تر ځنګ ناست و او په ټولو کې هم دی ښایسته و. ناتاشا د کتاب لوستلو پر وخت مکرراً د مخ ویښتان شاته غورځول. هغه وخت چې به ناتاشا د کوم شي په باره کې له خپله ځانه تبصــــره کوله، نو آواز به یې ډېر ټیټ کړ او شـــاوخوا به یې په مهربانۍ سره اوریدونکو ته نظر واچاوهٔ. خوخول د مېز پر څنډه خپـل ټټر لګولی و او د پزې پـه اســتقامت یې کتل، څو خپل بریتونه وګوري. ویســـوفشـــیکوف مســـتقیم پر خپله څوکۍ باندې د یوه لرګي په څېر نـاســـت و. د ده پلن مخ، بې وروځو څېرې او نریو شـــونډانو د یوه مصـــنوعي ماســـک بڼه درلوده. ده خپلې دوې ســـترګې بې له دې چې ویې رپوي، د خپل مخ څېرې ته چې د سـماوار په صـیقل شـوي سـطحه کې منعکسه وه، نیولې او داســـې ښـــکـاریده لکه چې بیخي نفس نه کاږي. وړکوټي فیودور خپلې نرې شـونډې بې له دې چې غږ تولید کړي، ښـورولې او داسې معلومېده چې دی د کتـاب جملې لـه خپـل ځـان سره تکراروي. د ده ملګري ژامـه پـه لاس نیولې، څنګلې پر زنګنونو باندې ایښې وې او مړه موسکا یې پر شونډو خواره وه. یو د هغو دوو هلکانو څخه چې د پاول سره یو ځای کور ته راغلل، د سرو او ګړګوتو ویښـتانو او له نشـاط نه د ډکو سـترګو خاوند و. داسې معلومېده چې هغه د وینا ویلو ډېره هیله لري، نو له دې کبله یې بې له حوصـــلې ځان ښـــوراوهٔ. بل هلک چې د لنډو خریل شـــوو طلایي ویښـــتانو څښـــتن و، خپل لاس یې په سر باندې تېراوهٔ او د ځمکې لور تـه یې کتـل، نو لـه دې کبلـه یې مخ پـه ښـــه توګـه نـه معلومېدهٔ. دا کوچنۍ کوټه په عجیب ډول سره آرامه وه. کوټه یوې ناآشـنا فضاء په سر اخیستی و. د ناتاشا د کتاب ویلو په وخت کې د مور هغه د ځوانۍ د شور

او لېوالتيا نه ډکې مېلمستياوې ور په زړۀ شوې. په هغو مېلمستياوو کې به زلميانو ډول - ډول بې شرمانه ټوکې او ټکالې کولې. ډېر ناوړه الفاظ به يې ويل او تل به د وډکا بوی ترې پورته کېدۀ. دا مېلمســتياوې چې د مور را په زړۀ شــوې، نو د خفگان له لاسه يې زړه ډېر سخت منقبض غوندې شو.

د مور هغه واقعه ور په ياد شـوله چې څنگه دا او مرحوم مېړه سره معرفي شول. کيسه په دې ډول وه: يوه ورځ په ميلمستيا کې دا، دۀ د دهليز په توره تيارۀ کې کلکـه تر مټونو ونيولـه او د ديوال و خوا تـه يې پورې وهلـه او ورڅخـه يې پوښتنه وکړه:

- ما خپل مېړه جوړوې؟

د دې زړه پـه دې پوښــتنې سره خورا آزرده او خوابدی شـــو. ده په ډېر دردناک ډول د دې تيونه په خپل لاس کښـل او خپله توده او مرطوبه ساه به يې د دې پر مخ کښله. مور ځان ورځنې کش کړ او کوښښ يې وکړ چې خپل ځان د ده له منگولو څخه خلاص کړي.

ده په ډېر قهر سره چيغه ووهله:

- آرامه اوسه، ژر ځواب راکړه!

د دې ســاه لنډه - لنډه کېده، د خجالت او شرم په درياب کې ډوبه وه، د ځواب ويلو وسه يې نه درلوده.

پـه همدې وخت کې کوم چا ور خلاص کړ، دۀ هم دا لږ څه ايله کړه او ورته ويې ويل:

- بله يکشنبه به زه ستاسو کور ته مرکه درولېږم.

په رېښتيا هم دۀ دا کار وکړ.

مور خپلې سترګې پټې کړې، يو اوږد او سوړ اسوېلی يې وکيښ.

په همدې وخت کې د ويسـوفشـيکوف له قهر او غضـب نه ډک آواز واوريدل شو چې ويل يې:

- زه غواړم پوه شـم چې خلک بايد څنګه ژوند وکړي، نه دا چې انسانانو پخوا څه ډول ژوند کاوه.

د سرو وينبتانو والا را پورته شو او ويې ويل:

- ستا خبره بالکل صحيح ده.

فيودور ناري کړې:

- نه، زه ورسره موافق نه يم.

کله چې دوی بحث کاوه، الفاظ او کلمې د اور د لمبو په څېر غورځيدلې. مور نـه پوهېـدلـه چې دوی د څـه شي پـه بـاب دومره چيغې وهي. ټول له ډېرو ولولو څخـه ځليـدل، اما يوه هم خپل عقل له لاسـه نه ورکاوه. دوی کوم ناوړه الفاظ په بحث کې نه استعمالول.

مور د خپل ځان سره دا فکر وکړ: دا چې دوی بدې کلمې نه استعمالوي، ښايي علت به يې دا وي چې دوی ټول ځوانان د دې يوې پېغلې شاوخوا راغونډ شوي دي.

اما مور له بلې خوا څخه د ناتاشـا په دغه څېرې سره ډېره خوښـه شوله، د دې څېره داسې ښکاريده لکه يوه ښځه چې د ماشومانو په منځ کې ناسته وي.

ناتاشا ناڅاپه وويل:

- ملګرو، د يوې دقيقې لپاره آرام شئ. - د دې ټول ملګري په همدې غږ سره خپل عادي حالت ته راوګرځيدل او دې ته متوجه شول.

ناتاشا په دې ډول خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

- هغه څوک چې ستاسو له ډلې څخه وايي، موږ باید په هر څه باندې پوه شو، حق لري. مګر موږ باید په خپل ځان کې د دلیل او منطق ډېوه بله کړو، په دې ترتیب سره هغه څوک چې په تورتم کې ژوند کوي، هغوی باید موږ ووینې. موږ باید د هر شي په باره کې ډېر صحیح او محقق ځواب ولرو، موږ باید په ټولو حقایقو ځان پوه کړو.

خوخول غوږ نیولی و او خپل سر یې په ډېر موزون ډول سره د دې وینا ته ښوراوۀ. ویسوفشیکوف، سور سرې سړی او هغه بل چې د پاول سره راغلی و، یو ګروپ یې ځان ته تشکیل کړی و، د مور د دوی دغه وضعیت خوښ نه شو.

کله چې ناتاشا خپله وینا خلاصه کړه، نو پاول پورته شو. ده و دې درو کسانو ته مخ کړ او په آرامۍ سره یې وویل:

- آیا موږ غواړو یوازې خپلې خېټې ډکې کړو، نه! موږ باید هغه کسانو ته، کومو چې زموږ پر سترګو داسې پنډه پرده غوړولې ده، ور وښیو چې موږ په هر څه پوه یو، موږ بې عقله خلک نه یوو، ځناوران نه یو او نه یوازې د خپلې ګېډې د ډکولو په هڅه کې بلکې غواړو په هغه ډول ژوند وکړو، کوم چې د یوه انسان د حیثیت سره مناسب دی! موږ باید دښمنانو ته دا ثابته کړو: که موږ د تکلیف او زجر ژوند تېروو، هغه ستاسو د ظلم او حیوانیت په اثر پر موږ تحمیل شوی دی، دوی غواړي چې زموږ روحي او عقلي آزادۍ او مساوات را څخه واخلي، دوی غواړي زموږ اذهان فلج او د خپلې غلامۍ لپاره تیار کړي. موږ

طبیعتاً بې مغزه او بې فکره نه یو پیدا شــوي، زموږ فکري او عقلاني ځواک څو چنده تر دوی پیاوړی دی.

د مور په ماغزو کې د غرور حس د پاول په کتلو سره پیدا شو. «اه څومره خوږې او ښې خبري کوي!»

خوخول وویل:

- ډېر خلک شــته چې هغوی ته ډوډۍ رسـیږي، اما د دوی په منځ کې د ریښـتینو خلکو شمېره ډېره کمه ده. موږ باید د دې حیواني ژوند پر بیدیا باندې یو داســې انســاني پُل جوړ کړو، چې هر څوک وکړای شي، د هغې له پاســه د ورورګلوۍ، عدالت او انســانیت نړۍ ته تېر شي. ملګرو، زموږ حقیقي او ســتره وظیفه همدغه ده.

ویسوفشیکوف د اعتراض په ډول په ډېره توندۍ سره وویل:

- کـه زموږ وخت د مبارزې او جګړې وخت وي، موږ باید آرامه پاته نه شو.

نیمه شـپه وه چې غونډه خلاصـه شـوه. ویسوفشیکوف د هغه سور سري کس سره له ټولو نه مخکې ووتل، چې دا کار هم د مور خوښ نه شو.

کله چې دې د دوی و خوا ته په بې علاقګۍ سر کوږ کړ، د ځان سره یې وویل: «څومره وارخطا او په تلوار دي»

ناتاشا پوښتنه وکړه:

- ناخودکه، آیا نشې کولای چې ما تر کوره پورې ورسوې؟

- ولې نه، حتماً به دې ورسوم!- خوخول ځواب ورکړ.

کله چې ناتاشا په پخلنځي کې خپل کالي اغوستل، د پاول مور نجلۍ ته وویل:

- ســتا جورابې د دې یخ په مقابل کې بیخي نازکې دي. ته به ما ته اجازه راکړې چې یوه جوړه وړیني جورابې درته جوړې کړم.

- پلاګېیا نیلوفنا! ستاسې د لطف څخه مننه کوم، وړینې جورابې زما پښې تخنوي- په داسې حال کې چې خندل یې ناتاشا ځواب ورکړ.

مور ورته وویل:

- زه به دا ډول جورابې جوړې کړم چې تاته تکلیف درنه کړي.

ناتاشا د خپلو نریو باڼوګانو تر منځ و مور ته په غور سره وکتل، مور د دې په کتلو سره ناارامه شوه.

مور په ارامۍ سره وویل:

- دا چې ما تاته وویل نو بخښنه کوه، زما د زړه له کومې څخه وه.

کلـه چې نـاتـاشـــا د مور لاس د خـدای په امانۍ لپاره کلک کړ، نو یې وویل:

- څومره مهربانه ښځه یې!

خوخول هم مور ته وویل:

- شپه مو په خیر، نېنکو! –او تر ناتاشا وروسته د ورۀ څخه ووت.

مور خپل زوی ته وکتل، زوی یې په موسکا سره په دروازه کې ولاړ و.

مور د ده څخه په ناآرامۍ وپوښتل:

- ولې خاندې؟

- له خوښۍ څخه خاندم.

دې په خوابدۍ سره وویل:

- زه زړه یم، عقل مې تللی دی، خو بیا هم دومره کولای شم چې د ښو او بدو په توپیر پوهه شم.

ده ځواب ورکړ:

- ډېر اعلی! ښه به دا وي چې تاسې ویده شئ.

- اوس به څملم.

دې د میز په پاکولو او د چایو د لوښو په مینځلو ځان مصروف کړ. په دې پړاو کې دا په خولو کې ډوبه او ډېره خوشاله وه، ځکه چې ټول شیان په آرامۍ او ښه توګه سره پای ته ورسېدل.

مور خپل زوی ته وویل:

دا دې ډېر ښه کار وکړ. خوخول ډېر مهربان سړی دی، هغه نجلۍ څومره هوښیاره ده! دا څوک ده؟

پاول په ډېره بېړه سره په داسې حال کې چې په کوټه کې یې قدم واهه، ځواب ورکړ:

- دا یوه ښوونکې ده.

- اخ بېچاره نجلۍ! دې ډېرې خوارۍ جامې اغوستې وې، حتماً به له یخنۍ ناروغه شي. د دې مور او پلار چېرته ژوند کوي؟

پاول د مور مخ ته ودرېد، په ډېر نرم او جدي آواز سره یې وویل:

- هغوی په مسکو کې ژوند کوي. د دې پلار یو شتمن سړی دی، د اوسپنې د موادو تجارت کوي. نورې هم ډېرې شتمنۍ لري. ده دغه خپله لور شړلې ده. ځکه دې په خپل ژوند کې دا زموږ لاره غوره کړې ده. دا ډېره په ناز

او هوسـايي کې لويه شـوې ده او هر څه چې به يې غوښـتل، هغه ورته رسېدل، مگر اوس دا يوازې په دې توره شپه او يخ کې وينم چې اته کېلومتره لار وهي...

مور د خپل زوی په اطلاعاتو سره ډېره غمجنه شــوه. په داســې حال کې چې د کوټې په منځ کې ولاړه او خپلې وروځې يې ښــورولې، خپل زوی ته يې وکتل. وروسته يې وپوښتل:

- آيا دا ښار ته لاړه؟

- هو.

- د زړگي سره! دا په لارې نه بېريږي؟

پاول وخندل:

- نه بېريږي!

ولې لاړه؟ کولای يې شوای چې همدلته يې شپه تېره کړي وای- زما سره به ويده شوې وای.

- دې دلته بايد شپه نه وای کړي، ځکه سهار خلکو ليدله او موږ هېڅکله نه غواړو چې دغه کار وشي.

مور پـه ډېر ځير سره لـه کړکۍ د بـانـدې وکتـل، پـه ډېرې نرمۍ سره يې وويل:

- پـاوله زه خو نه پوهېږم چې په دې کې څه شی ممنوع او گواښــونکي دي، تاسې خو دلته هېڅ کوم غلط کار نه دی کړی؟

دې موضـوع د پاول مور ناارامه کړه او غوښتل يې چې ځان په کيسه پوه کړي، پاول په نرمۍ او ارامۍ سره وويل:

- یـه، موږ کوم بد کار نه دی کړی، مګر بیا هم شــونې ده چې یوه ورځ موږ ټول په جېل کې واچوي. ته باید په دې ټکي پوه شې.

د مور لاسونه په دې خبره سخت وریږدیدل او ویې ویل:

- خدای مهربانه دی، ښـایي بې له بندي خانې کار وشي؟- د مور په آواز کې وارخطایي لېدل کېده.

- یه مورې، زه نه غواړم چې تا غلطه کړم. نـــشي کیدلای. –او زیاته یې کړه: - ورځه مورې، ویده شه!

مور او زوی د شپې سلامتي سره وویله.

کله چې مور یوازې پاته شـوه، نو د کوټې کړکۍ ته یې ځان ورسـوۀ او د باندې یې کتل. شـــپه خورا تیاره او هوا هم ډېره ســـړه وه. باد واوره د کورونو له بامونو څخه یوې خوا ته شیندله او پر دېوالونو لوېدله.

مور په ډېره آرامه لهجه وویل:

- اې مهربانه عیسی، ته پر موږ باندې رحم وکړه!...

پـه همـدې وخـت د مور پـه زړه کې د ژړا او په ســترګو کې د اوښـــکو موجونه وځلېدل. مور له کړکۍ یوازې تک سپین له واورو ډک ډاګونه لیدل، په منځ کې یې د نجلۍ تور ســیوری کوږ - کوږ کیدئ. باد د نجلۍ د پښــو څخه مښــتی، لمن به یې را پورته کړه او پر مخ به یې ور وویشــته. د نجلۍ پښـې په کوچنیو ډبو کې لوېدلې او په زحمت مخ پر وړاندې تلله. شــپه ډېره ســـړه او له ویرې ډکه وه. د نجلۍ بدن د مخ و خواته داسـې کوږ و، لکه د مني طوفاني باد چې یو تار واښــه د خپل چپاول په واســطه کوږ کړي. د نجلۍ ښـې خواته یو

ځنګـل موجود و، چې شـــاوخوا يې ديوال جوړ کړی و. د ناجو ونو د نااميدئ فرياد کاوهٔ. ډېر لېږې د نجلۍ په مخ کې د ښار ځراغونه برېښېدل...

مور چې دا حال تصور کړ، نو يې په ډېره ناکرارئ او غم سره وويل:

- اې مهربانه خدايه! پر موږ رحم وکړه!

## «۷»

د ژوندانهٔ شـپې او ورځې د تسـپو د دانو په څېر يو په بل پسـې تېرېدلې. اونۍ او مياشـــتې يې جوړولې. هره يکشـــنبه به د پاول ملګري د ده په کور کې راټولېـدل. د دوی هره ټولنـه پـه حقيقـت کې د هغه پرمختګ يو پُل ګڼل کېدهٔ چې د يوه عالي هدف و لور ته روان و.

نوي خلک د هغه پخوانيو کسـانو سره ملګري شـول. د ولاسـوف د کور وړوکي کوټـه ورځ په ورځ د پاول د ملګرو د ډېروالي په اثر تنګيدله. ناتاشـــا به چې راغلـه، ډېره ســـتړې او ســـتومـانـه به وه او له يخ څخه به ريږديدله. مګر د خوښـــۍ نه ډکه څېره يې تل پر خپل حال وه. مور يوه جوړه جورابې د ناتاشـــا لپـاره واوبدلې. پخپله يې و دې ته ور په پښـــو کړې. ناتاشـــا لومړی وخندل او وروسته بيا په کوم خيال کې ډوبه شوه. لږ وروسته يې وويل:

- يو وخـت مو يوه دايي درلوده. هغـه هم ډېره مهربـانـه وه. دا يوه عجيبه خبره ده، کارګران سره د دې چې له زحمت او محنت څخه ډک ژوند لري، مګر بيا هم له ټولو هغو کســـانو چې هوســـا او آرام دي، ډېر مهربانه دي او لوی زړه لري.

- د دې خبرو په بیان سره یې په خپل لاس کوم لېرې ځای ته اشاره وکړه. مور وویل:

- تاســې یوه عجیبه پېغله یاســت، مور او پلار او ټوله بډایي مو له لاســه ورکړه...- مور تر دې وینا وروسته یو اسوېلی وکړ او غلي شوه. دا د خپلو افکارو له بیان څخه عاجزه وه، کله چې مور د ناتاشا و مخ ته وکتل بیا یې هم هڅه وکړه چې خپلـه بـاطني قـدرداني او مهربـاني څرګنـده کړي. مور د نجلۍ مخ تـه پر ځمکه کېناستله، د ناتاشا خوله له خندا نه ډکه وه او سر یې کښته ځړولی و.

- له مور او پلار څخه محرومه یم؟ - ناتاشــا تکرار کړه: - دا دومره مهمه خبره نه ده. زما پلار او ورور ښـه خلک نه دي، همېشه شراب خوري، نشه وي. زما مشـره خور په خورا ناښادۍ او غم سره ژوند کوي. ځکه د هغې مېړۀ، سره له دې چې له دې نه ډېر زوړ دی، دولتمند او حریص دی. زه په مور پسې خفه یم، هغه هم ستا په څېر یوه ساده ښځه ده. په تن ډېره کوچنۍ ده، ډېره چالاکه ده او له هر چا څخه بېرېږي. کله کله مې ډېر زړه غواړي چې ویې وینم.

- آه څومره په تکلیف یې!- مور په غمجن آواز سره وویل.

نجلۍ په چالاکۍ سره سر شاته واړاوۀ او خپل لاسونه یې داسې وښورول لکه کوم شی چې له ځان څخه لېرې کوي.

- آه، یه. زه اکثره وخت له زیاتې خوشالۍ او ښادۍ په خپلو کالیو کې نه ځایېږم.

د نجلۍ مخ سـپین شـو او شنې آبي رنګه سترګې یې وځلېدې. د مور پر اوږو یې لاسونه کېښودل او ویې ویل:

- *کاشکې ته پوهېدلای چې موږ د څومره لوی او مهم هدف لپاره کوښښ کوو.*

د مور په زړه کې یو شی چې هغه هم حسد او کینه وه، ور پیدا شوه. مور له ځمکې را پورته شوه او په ډېره غمجنۍ سره یې وویل:

- زه ډېره زاړه یم، بې سواده یم.



پاول په دې ورځو کې ډېرې خبرې کولې، د ده خبرې ډېرې شـدیدې وې او هره ورځ به یې ډېر دوام کاوۀ. دی ورځ په ورځ ډنګرېدۀ. مور په دې پوه شـوه کله چې پاول د ناتاشـا سره خبرې کوي او یا دې ته ګوري- د ده جدي سترګې نرمې، آواز یې له نوازش نه ډک او مهربانه وي.

- خدای دې وکړي چې هغوی پر یو او بل مین شي- مور داسې فکر کاوۀ او موسکۍ وه.

هر کله چې بـه د دوی مباحثې او خبرې تودې شـوې، نو خوخول بـه دستي ولاړ شو، مخ او شا ته به یې حرکت کاوۀ، ډېر خواږۀ او ساده الفاظ به یې ویـل، ټول خلـک بـه آرام او خپـل عـادي حـالـت تـه راغلـل. تونـدلاري ویسـوفشـیکوف به تل ملګري غالمغال ته پارول. دی او سـور سری سـمایلوف دواړه هغه کسـان و، چې تل به یې د بحث سر اېښـودۀ. ایوان بوکین چې سر به یې تل برېښـېدۀ، تل د دوی هم نظره و او یاکوف سـوموف چې ډېرې پاکې او سـوتره جامې یې اغوسـتلې، لږ خبرې کولې، اما هره خبره به یې خورا درنه او له لېوالتیا نه ډکه وه. ده او فیودور مازین چې خورا لوړ آواز یې درلود، تل به یې د پاول او خوخول سره په مباحثه کې پلویتوب کاوه.

کله-کله به د ناتاشـا پر ځای نیکولای ایوانوویچ چې تل به یې په سـترګو عینکې ایښـې او وړوکي طلایي رنګه ږیره یې درلوده، له ښـاره راتۀ. نیکولای ایوانوویچ پـه خورا ډېر لېرې ایـالـت کې زیږیـدلی و او د «او» حرف بـه یې پـه عجیـب ډول سره ادا کـاوۀ. پـه عمومي ډول دی د نورو ملګرو له حرکاتو څخه لېرې و. ده به تل د خورا ساده شیانو په باب خبرې کولې. ده به د کورنیو چارو، د ماشومانو، تجارت او د غوښو او ډوډۍ د بیو، د پولیسو د اعمالو او داسې نورو

شیانو په باب خبرې کولې. د ده د بحث شیان هغه مواد وو چې خلکو په ورځني ژوند کې ورته اړتیاوې درلودې. ده به پر ټولو هغو شـــیانو باندې چې له عقل او منطق سره مخالف و، اعتراض کاوه، ټول به یې بې اســاســه ګڼل، په ټولو کې به یې تقلـب او مغلق والی رابرســېره کاوه. مور ته داســې معلومېده چې نیکولای ایوانوویچ د یوه داســې لېرې ملـک څخـه راغلی دی چې هلتـه ټول د عقل او ذهن خـاونـدان دي، حق او حقیقـت هر چـاتـه معلوم دی او د هغوی ژونـد شرافتمند او آرام دی. له همدې کبله، ده ته دلته دغه شیان عجیب ښکاري او نه شي کولای چې له دغو شیانو سره ځان عادي کړي. دی، په دې هڅه کې و چې دغه ټولې اجتماعي ګډوډۍ او ویجاړۍ، انســاني نیمګړتیاوې د خپلې ســمې نظریې پـه اســاس تنظیم او اصــلاح کړي. د ده خبرې ژړېځنـه رنګ درلود، د سترګو پر شاوخوا یې پوست ضعیفې ګونځې درلودې. د ده آواز نرم و او لاسونه بـه یې تـل تاوده وو. کله چې به ده د مور لاس د ســلام کولو پر وخت په خپلو پیاوړو ګوتو نیو، د ده د حرکاتو په اثر به د مور په زړه کې د آرامۍ او سپکوالي حس راپیداریده.

ډېر نور خلـک هم د ښــار څخه دغه مجلس ته راتلل. مګر یوه نجلۍ به چې جـګ قـد، الوتې بڼه او غټې ســترګې یې درلودې، په دې مجلس کې تل حاضره وه، د نجلۍ نوم ساشېنکه و. د دې نجلۍ تګ او ټول حرکات نارینه‌وو ته ورته وو، دې به په قهر سره خپلې تورې او ګڼې وروځې ښـورولې او د خبرو په وخت کې به یې د جګې او نرۍ پزې سږمې هم غورځېدلې.

ســاشــېنکه په دوی کي لومړۍ ســوله، چې په لوړ او ډاډه آواز سره یې اعلان وکړ:

- موږ سوسیالیستان یو...

مور چې د نجلۍ دا پورتــه جمله واورېده، نو یې په ډېر حیرت او ډار ور وکتل. مور اورېدلي و، چې پخوانی تزار د ســوســیالیســتانو له خوا وژل شوی و. دغه واقعه د مور په ځوانۍ کې پېښــه شــوې وه. د سوسیالیستانو آواز هغه وخت داســـې پورتــه شـــو چې پخواني تزار د سرواړ دوره فســـخه کړه، ځکه نو لویو ملاکـانو قســـم کړی و، تر څو چې د تزار څخـه خپل دغه غچ وانه خلي، خپل ویښـتان به ونه خریي. مور په دغه شپه بیخي خپل ځان ورک کړی و او هېڅ نه پوهېدله چې ولې د دې زوی او د هغه ملګرو پر خپلو ځانو دغه نوم ایښی دی؟

کله چې ټول ملګري خپلو کورو ته لاړل، مور د پاول څخه پوښتنه وکړه: پاوله، زویه ته سوسیالیست یې؟

- هو- په داســې حال کې چې مور ته مخامخ ولاړ و، په ټینګه یې ځواب ورکړ- ولې؟

مور یې سوړ اسوېلی وکېښ او سترګې یې کښته واچولې، ویې ویل:

- پاوله، ستا وینا حقیقت لري؟ دوی خو د تزار مخالف دي او یو تزار یې هم وژلی دی.

پاول په داســـې حال کې چې باړخوګان یې مښـــل او د کوټې په منځ کې یې قدم واهۀ، په یوه تونده خندا سره وویل:

- موږ د تزار وژلو ته اړتیا نه لرو.

پاول مور ته اوږده موده په نرمه لهجه اما په تروۀ تندي د کوم شي په باب ویل. مور د زوی خبرې ته کتل او داسې فکر یې کاوۀ.

«دوی به هېڅکله غلط کار ونه کړي، دوی خو هېڅ بدکاره نه دي.»

تر دغې شپې وروسته د سوسیالیست ډارونکی لغت هر وخت د مور غوږو ته رسیدۀ، د دغه لغت حساسیت او نویتوب ورک شو او په پای کې مور هم د دې لغت سره عادت ونیو. اما ساشېنکه د مور خوښه نه وه او کله چې به هغه راتله، مور همېشه ځان ناآرامه او اندېښمن حس کاوۀ.

یوه ورځ مور د ساشېنکه په باب د خوخول سره په داسې حال کې چې پر شونډو باندې یې کرکه او اکراه موجوده وه، خبرې وکړې:

- ساشېنکه یوه ډېره کلانکاره نجلۍ ده، پر هر چا باندې امر کوي، چې ته دغه وکړه، هغه دي هغه وکړي.

خوخول د زړه له تله وخندل او بیا یې وویل:

- نېنکو، همېشه سپینه خبره کوي! څنګه پاوله؟

په دې وخت کې خوخول مور ته سترګه ووهله، په معنا لرونکي موسکا سره یې وول:

- اشراف!

پاول زړه نازړه سره وویل:

- دا ډېره ښه نجلۍ ده.

خوخول په دې اعتراف وکړ:

- البته، دا ښــه نجلۍ ده. مګر نـه پوهېږي چې باید څه وکړي، خو موږ غواړو او کولای شو.

وروسته دې خوخول او پاول داسې یوه مباحثه شروع کړه چې هغه و مور ته بیخي لوړه او نوې غوندې برېښیدله.

مور هم دا حس کړې وه چې ساشېنکه د پاول و خوا ته تمایل لري او کله-کله به یې پر دۀ باندې قهر هم کاوۀ. اما پاول به دې ته هېڅ نه ویل، یوازې به یې داسې موسکا وکړه او ورته به یې داسې وکتل لکه ناتاشا ته چې به یې کتل. د مور دغه حرکتونه نه خوښېدل.

مور به په دې سره حیرانه وه چې دوی به کله کله بې حده ډېر خوشاله شول. دغه خوشالي په عمومي ډول سره هغه وخت پر دوی باندې راتله چې مازدیګر به یې په ورځپاڼو کې د خارجي کارګرانو په باره کې ولوستل. د ورځپاڼو د ویلو په وخت کې به د دوی سترګې ځلیدلې او دوی به یو عجیب حالت ځان ته اختیاراوۀ. د دوی خوشالي د ماشومانو خوشالۍ ته ورته وه. دوی به خندل، په ډېره مهربانۍ او لطافت سره به یې خپل ملګري د اوږو په ټپولو سره نازول.

کوم یو چې به بیخي د ډېرې خوشالۍ څخه بې هوښه شو، نو نارې به یې کړې:

- افرین، زموږ جرمني ورونه!

- تل دې وي د ایټالیا کارګران!- بل وخت به دوی نارې کړې.

کله چې به دوی خپل دا آوازونه و هغو لېرې خلکو ته چې دوی هېڅ نه پېژندل او د هغو په ژبه هم نه پوهېدل، استول، دوی داسې فکر کاوۀ چې هغوی هم د هغه لېرې ځمکې څخه زموږ قدرداني کوي.

خوخول چې سترګې به یې له نشاط او خوشالۍ څخه ډکې وې، ویل:

- ښه به دا وي چې موږ دوی ته یو مکتوب ولیکو، تر څو هغوی پوه شي چې په روسیه کې هم ملګري لري. د دوی روسي ملګري کټ مټ د دوی

عقیده لري، د همدغه هدف لپاره ژوند کوي او د دوی په کامیابۍ او بریالیتوب سره خوشاله کیږي.

دوی به په ډېرو خوشاله او روښانه بڼو د انګلیسي، فرانسوي او سوېډني کارګرو په باب خبرې کولې. دوی ته د دغو لېرې ځایو خلک ور نژدې او دوی ته به یې په زړو کې احترام درلود، د هغو په غم او خوشالۍ کې یې ځان شریک ګاڼۀ.

د خپلوی او قرابت یو حس په همدې وړکوټي کور کې د ټولې نړۍ د کارګرانو په هکله رازېږیدۀ. دغه حس ټول ملګري حتی د پاول مور که څه هم په مقصد نه پوهېدله، سره یو موټي کول. مور د کارګرو د معنوي ځواک، صداقت او خورا ډېرې خوشالۍ څخه خبره وه او هغه ته یې خورا ډېرې هیلې او آرزوګانې درلودې.

یوه ورځ مور و خوخول ته وویل:

- تاسې څه ډول خلک یاست، ستاسې د خبرو څخه دا معلومېږي چې ارمنیان، یهودیان، اطریشیان... ټول ستاسې ورونه او ملګري دي، د ټولو په خوشالۍ خوښ او په درد یې دردمند یاست!

خوخول په ولولو سره وویل:

- ټوله مو ورونه دي، ټوله! موږ هېڅ ډول ملت او قبیله نه پېژنو، مګر څه چې پېژنو، هغه دوست او دښمن دی، ټول کارګران د هر ځای او د هر ټبر چې وي، زموږ ورونه او خپلوان دي. همدرانګه ټول حکمرانان او بډایان زموږ دښمنان دي. که چېرې ته نړۍ ته یو نظر واچوې، نو ژر به در معلومه شي چې په نړۍ کې زموږ د کارګرانو شمېر بیخي ډېر دی او د ډېر توان خاوندان یو. هر

چا چې دغـه ټکی حس کړ، هرومرو بـه يې پـه زړه کې ډېر ځواک، غيرت او خوشالي پيدا شي. او په همدې ډول نېنکو، فرانسوي او جرمني کارگران دا حس لري او پـه همـدې ډول ايټاليوي کارگران خوشـــاله کېږي. موږ ټول د يوې مور بچيـان يو کومـه چې د ځمکې پر مخ د ټولو هېوادونو د کارگرو خلکو ترمنځ د ورورگلوۍ نـه ماتيدونکې مفکوره ده. دغه مفکوره موږ تودوي، دا د عدالت په اســمان کې يو لمر دی او دا اســمان د کارگر په زړهٔ کې ځای لري. په هر ځای کې چې وي او هر ډول نوم چې يې پر ځان ايښی وي، سوسياليست روحاً زموږ ورور دی او دغه ورورگلوي به د تل لپاره موجوده وي.

د دې کور مجلس کوونکي که څه هم د وړو ماشـومانو په څېر وو، مگر د ډېرې ټينگې عقيـدې خـاوندان وو، د دوی عقيده ورځ په ورځ ټېنگيدله، څو چې پـه يوه لوی ځواک تبـديـل شـــوه. کلـه چې مور د دوی د اتحاد او تعاون ځواک درک کړ، نو دې ته پوره ور معلومه شوه چې په رېښتيا سره په دنيا کې د لمر په څېر ځواکمن روحي ځواک موجود دی او دا يې ليدلای شي.

دوی بـه کله کله غزلې هم ويلې، ســاده او ټولو ته معلومې غزلې په لوړ آواز سره ويل کېدې، مگر ځينې وخت يې نوې ســندرې هم ويلې چې که څه هم ډېرې مرتبې او منظمې ښـــکاريدې، خو بيا هم ډېرې غمجنې او غير عادي وې. معمولاً دغه سـندرې په ټيټ آواز او په خورا ټينگار سره د کليسـا د سندرو په شـان غږيدلې. د سـندرغاړو بڼې ژړې او رنگونه به يې الوتي وو، د سندرو په اهنگونو کې به يو عجيب ځواک احساسېدهٔ.

مور د يوې نوې ســندرې په واســطه په خاصــه توگه په ولولو راغله. دې ســـندرې له هغو ويرې ډکو افکارو چې د دې روح به يې د شـــک او ترديد په

مانۍ کې لالهانده گرځاوۀ، حکایت نه کاوۀ.په دې سندره کې هغه ورک ځواک چې خلک پر ډلو ټپلو ویشـــــي، موجود نه وو، د دې ســندرې په اعلامیه کې داسې څه نه و چې دوی په بې پروایۍ سره وپاروي، تر څو چې ښه او بد په بې توپیره توگه له منځه یوسي او دې سندرې د غچ اخیستنې او ځورولو ړوند حس نـه درلود، کوم چې هر ډول تخریـب تـه تیـار دی، مگر د جوړولو ځواک بیا نه لري، - په دې غزل کې د زړې غلامۍ او مریتوب هېڅ نښه موجوده نه وه.

د هغې زیږۀ الفاظ او ســخته لهجه د مور نه وه خوښــه، مگر د الفاظو او لهجې و شاته یو خورا لوی شی موجود و، چې د هغې په واسطه الفاظ او غږونه خـاموشــېدل. مور دغه ځواک د ټولو مېلمنو په مخ کې لیدۀ، دې دا حس کړه چې دغه ځواک د دوی په بدن کې ژوند کوي؟

دوی دغـه غزلـه پـه نرم آواز سره ویلـه، مگر آواز یې له اغېزې ډک و، د پسرلي د لومړیو ورځو د هوا په شان یې زړه ته روح ورکاوۀ.

ویسوفشیکوف په ډېر تروۀ تندي سره وویل:

- دغه سندره موږ دباندې په کوڅو کې هم باید ووایو.

هر کلـه چې د ده پلار د نوي غلا پـه تور بیـا بندي شـــو، نو په کراره یې ملگرو ته وویل:

- زموږ کور هم اوس خالي دی او موږ کولای شو پس له دې نه هلته سره راټول شو.

تقریباً تر کار وروسته به هر ماښام د پاول کره ملگري حاضر وو او کتابونه به یې لوســتل او ځینې یاداښــتونه به یې لیکل، دوی به دومره جذب شــوي وو، چې د ځانو پرېوللل به یې هېر شول. د ماښام  د ډوډۍ او چای خوړولو په وخت

کې به یې هم کتابونه لوستل. ورځ په ورځ مور ته د دوی خبرې مجهولې معلومېدلې.

پاول به تل ویل:

- مورې یوې ورځپاڼې ته اړتیا لرو.

ژوند په ډېره چټکتیا او له تشویشه ډک مخ پر وړاندې روان و. د پاول ملګرو لکه بورا چې د یوه ګل څخه و بل ګل ته ځي، د یوه کتاب تر ویلو وروسته د بل کتاب په لوستلو پیل کاوۀ.

ویسوفشیکوف یوه ورځ وویل:

- خلکو او حکومتي کسانو زموږ او ستاسې په باب خبرې شروع کړې دي، ښایي چې ډېر ژر مو په نیولو پسې راووځي.

خوخول پسې ور زیاته کړه:

- کرک همدې ته پیدا شوی چې په تور کې ولوېږي.!

د مور په زړۀ کې ورځ په ورځ د خوخول په باب مهرباني پیداکېدله او کله به یې چې دې ته د نېنکو په نامه ور غږ کړ، دې به دا حس کړه، چې یو له مینې او شفقت ډک لاس یې د زړه د علاج لپاره پر باړخوګانو وهل کېږي. که به پاول د رخصتیو په ورځو کې په کوم شي اخته و، نو خوخول به په خپله بوټې ماتول، یوه ورځ خوخول یوه لویه تخته پر اوږو کور ته راوړه، دستي یې تبر او تېشه راواخیسته، په ډېره چالاکۍ او مهارت سره یې د کور ماته شوې زینه جوړه کړه. خوخول به تل د خوځېدو په وخت کې په پسته لهجه سره شپېلک واهۀ او شپېلک یې ډېر ښکلی مګر غمجن و.

یوه ورځ مور خپل زوی ته وویل:

- زویـه، دغه یوه کوټه به خوخول ته ورخوشي کړو، دا کار به ســتاســو دواړو په خیر وي، د ډېر تگ او راتگ څخه به خلاص شي.

پاول خپلې اوږې وښورولې او ویې ویل:

- موريې ولې ته خپل ځان په ستونزو کې اچوې.

- هېڅ باک مه کوه. زما ټول ژوند بې له کوم سم دلیل څخه په سختۍ تېر شو. پرېږده چې د دې ښه سړي په یاد هم یو څه تکلیف ووینم.

پاول وویل:

- څنگه چې غواړې. که چېرې یې دی قبوله کړي، زه هم د دهٔ په راتگ خوښ یم.

په دې ترتیب خوخول راغی او د دوی سره گاونډی شو.

«۸»

دې کوچني کور چې د کـارگرانو د محلې پـه یوه څنـډه کې پروت و، د خلکو پام ځان ته ور خپل کړی و، په لســگونو پلټونکو او بدگمانو ســترگو به کوښــښ کاوهٔ چې د ډېر ځار څخه د انگړ دېوالونه ســوري کړي. د شــهرت او اوازې مرغانو په ولولو سره د هغه پر سر الوتنې کولې. اکثرو خلکو به کوښــښ کاوهٔ چې د دې واړهٔ کور دننې جریانات ځان ته معلوم کړي. کله کله به د شپې لـه خوا خلکو د کړکیو څخـه و دننه ته کتل او کله به یې د کړکیو هنداریې هم د خلکو د وېرولو لپاره ټکولې او په خپله به یې منډې وهلې.

یوه ورځ مور، یوه زاړهٔ شراب خرڅونکي چې بیګونځوف نومېدهٔ او تل به یې د ورېښـــمو یو تور دســـتمال پر غاړه اچاوهٔ، په لاره کې ودروله. د شراب خرڅونکي پر جګه پزه باندې یوه جوړه برګې عینکې پرتې وې، خلکو د ملنډو له مخې د ده عینکې «د هډوکي سترګې» بللې.

بې له دې چې دا سـپین ږیری سړی خپله ساه په ارامۍ سره وکاږي او یا د مور څخه کوم ځواب واوري، په دې سختو الفاظو سره، لکه ږلۍ چې پر سړي لوېدلي وي، مور وځوروله.

- پلاګېیا نیلوفنا، ته او سـتا زوی څنګه یاست؟ آیا د خپل زوی د کوژدې په فکر کې نه یې؟ دی ماته د یوه ګلاب په څېر ښکاري، تاته هم معلومه ده چې هر کلـه هلکان وادهٔ وکړي، د دوی مور او پلار هم ډېر هوســا کېږي. کورنۍ د جسـم او روح لپاره د مالګې حیثیت لري چې طعام خوندور کوي. که زه ستا پر ځـای وای، نو مـا بـه دهٔ تـه هرومرو وادهٔ کړی وای، اوســنی وخت خورا ډېرې ځیرکې ســترګې غواړي، ځکه چې خلکو د بې پروایۍ ژوند شروع کړی، دوی په خپلو افکارو کې دېخوا اېخوا خوځېږي او ناوړه اعمال کوي. ځوانان کلیســا ته نه ځي او د عمومي مجلسو څخه ځان لېرې ساتي، دوی پټ -پټ په کونجونو کې راټولېږي او د زړونو رازونـه سره وایي. زه به ډېر خوښ شـــم که په دې پوه شم، ولې خلک له یو بل سره بڼهار کوي؟ ولې خلک دومره یو له بل څخه لېرې ګرځي؟ دغـه ټول شـــیـان چې خلک د هغوی د ویلو مېړانه په عمومي مجلس کې- مثلاً په میخانه کې نه لري، څه شی دي؟ راز! او راز چېرته باید وویل شي؟ زموږ په سـپېڅلې کلیسا کې، نور واړه رازونه چې په مخفي ډول سره په یو او بل

کونج کې ویل کیږي، - د ذهن د گمراهۍ له کبله منځ ته راځي. زه ستا سلامتي او خوښي غواړم!

وروســـته یې خپله خولۍ پورته کړه او ویې خوځوله، مور یې په حیرانتیا کې پرېښودله او پر خپله لار ولاړ.

یوه بله ورځ د ولاسـوف گاونډۍ ماریا کورسونووا چې د یوه پښ کونډه وه او ټول عمر یې د فابریکې په خوله کې ډوډۍ خرڅوله، مور یې په بازار کې ولېدله او ورته یې وویل:

- پر خپل زوی باندې دې پام کوه!

مور پوښتنه څنې وکړه:

- ستا مقصد څه دی؟

ماریا په ډېر ټیټ آواز سره وویل:

- آوازه مو خپره شـویده. اې زما مورې، بده آوازه! خلک وایي چې سـتا زوی یوه مخفي او محدوده مذهبي ډله جوړوي او د دې ډلې گډون کوونکي د خپلې مذهبي عقیدې له مخې د خلکو څخه لېرې گرځي او یو بل به په شـلاغو وهي.

- ماریا، عقل دې له لاسه ورکړی دی؟

ماریا وویل:

- دود بې له اوره نه پیدا کیږي.

مور دغـه ټول معلومـات زوی تـه ورکړل، مگر هغـه یوازې خپلې اوږې پورته کړې او خوخول ډېره اوږده خندا وکړه.

مور دا هم پاول ته وویل:

- د محلې ټولې پيغلې هم درته په قهر دي. ښه ښايست خداى دركړى دى، شراب نه خورې، ښه كار كوې، ټولې پيغلې ستاسې هيله لري، مگر ته هيڅ توجه دوى ته نه كوې. دوى وايي چې د ښار څخه د دوى لپاره بداخلاقه نجونې راځي...

پاول د كركي په ښكاره كولو سره په ډېره حيرانتيا وويل:

- بلې البته! دوى هر څه ويلاى شي.

خوخول سوړ اسوېلى وكېښ او ويې ويل:

- په جبه زار كې هر شى بد بوى لري. نېنكو، دا به ښه واى كه تاسې دغو بې فكرو نجونو تـه د وادهٔ مفهوم پـه ښـه توگه سره بيان كړى واى، تر څو چې دوى د مېړه په واسطه د خپلو هډوكو د ماتولو لپاره دومره تلوار ونه كړي.

مور وويل:

- زړگيه! دوى په هر څه ښـه پوهېږي او په ښـه ډول يېويني، اما ته فكر وكړه چې بې له دې نه بله چاره نه لري.

پاول وويل:

- دوى په دې موضوع پوره نه پوهېږي، كه نه چاره به يې پيداكړې واى.

مور د پاول تروهٔ مخ ته وكتل او ويې ويل:

- تاسـې ولې دوى ته تعليم نه وركوئ؟ كولاى شـئ، چې د دوى له ډلې پوهه او هوښيارې نجونې راجذب كړئ ...

پاول په ډېره سړه خوا ځواب وركړ:

- آسانه كار ندى.

خوخول وويل:

- که چیرې پدې کار لاس پورې شي، نتیجه به یې څه وي؟
پاول له خپل ځواب وړاندې خاموشه شو، وروسته یې وویل:
- زه فکر کوم چې اول بـه جوړه جوړه گرځېدل شروع شي، وروســته به ودونه وکړي او بس.
مور پـه ډېر چورت کې لاړه او د خپل زوی زهد او رضــایت ته په تفکر کې ولویدله. مور ته دا معلومه شوه چې هر څوک، حتی خوخول چې د ده زوړ ملگری دی، هم د ده نصـیحت ته غوږ نیســــي. مور په دې فکر شوله چې هر څوک د ده څخه بیریږي، نو له دې کبله دی نه خوښوي. یوه ورځ مازدیگر مور پر خپله بســتره باندې پرته وه، خوخول او پاول خپل کتابونه لوســتل، په ناڅاپي ډول سره د دوی غږ د مور و غوږو ته ورسید.
خوخول ناڅاپه په ټیټ آواز وویل:
- زما ناتاشا ډېره خوښه ده، ته پوهیږې؟
پاول له لږ ځنډ وروسته وویل:
- هو، زه پوهیږم.
دې واوریدل چې خوخول ولاړ شــو، لوڅې پښــې یې په قدم وهلو پیل وکړ او د ځـان سره یې له غم او اندوه نه ډک شــپیلک وهل شروع کړل. لږ څه وروسته یو ځل بیا خوخول د کوټې آرامي پرې کړه او په خبرو یې پیل وکړ:
- زه له دې څخه سخت بیریږم چې کیدای شي ناتاشا هم پوهېدلي وي.
پاول ځواب ور نکړ. خوخول له پاول څخه وپوښتل:
- ته په دې باره کې څه فکر کوې؟
پاول وویل:

- څرگنده خبره ده چې په موضـــوع پوهيدلې ده. همدا علت دی چی دا څو ورځې دلته نه راځي.

خوخول په ډېره ســختی پر ځمکه پښــې ولگولې او يو ځل بيا يې له غم ډک شپيلک شروع کړ. پوښتنه يې وکړه:

- څه به وشي که زه پخپله ورته ووايم؟

- څه شی ورته وايې؟

خوخول په نرمۍ سره وويل:

- دا به ورته ووايم چې...

پاول په خبره کې ورولويد او ورته ويې ويل:

- ولې، ته څه مجبوريت لرې چې ورته ووايې؟

مور ته معلومه شـــوه چی خوخول له حرکت څخه ودريد او دا يې حس کړه چی دی اوس خاندي او وايي:

- که چېرې ســتا يوه نجلۍ خوښــه وي او خپله مفکوره ورته څرگنده نه کړې، نو هغه به هيڅ گټه و نه لري.

پاول کتاب په ډېر لوړ آواز سره وتاړۀ او په خبرو يې پيل وکړ:

- ته له دې موضوع څخه د کومې گټې تمه لرې؟

تر دې پوښتنې وروسته دوی دواړه د لږ وخت لپاره چوپ شول. خوخول وپوښتل:

- ولې؟

پاول ورو-ورو په خبرو راغی:

- آنـدري، تـه باید هر څه چې غواړې د هغه په باب پوره فکر ولرې. که څه هم زما باور نه کیږي، مګر بیا هم فرضاً که ناتاشا تا سره په زړه کې مینه ولري او ته هم دا وادهٔ کړې. څومره ښهٔ واده! ته یو کارګر سړی یې او دا یوه روشنفکره نجلۍ ده. ستاسـو به اولادونه پیدا شي، د هغو د ساتلو لپاره ته مجبور یې چې د شپې او ورځې د خلکو غلامي وکړې. ستا ژوند به د کوچنیانو د ډوډۍ او کرایې په خاطر وقف شي، ته به په دې ترتیب ځان لۀ لاســه ورکړې او دواړه به ضــائع شئ!

د څه وخت لپاره دواړه پټه خوله ناست وو. وروسته بیا پاول په نرمه لهجه خبرې شروع کړې:

- ښه به دا وي چې دا هر څه هېر کړې. لازمه نده چې ناتاشا په دې باندې خبره شي.

د ســاعـت عقربې د وخـت تیریـدل د ټـک، ټـک پـه غږ سره اعلانول. خوخول وویل:

- زما نیم زړه مین دی او نیم کرکجن. آیا دغه نو زړه دی؟

د کتاب د پاڼو کښــهار شــو، مور داســې فکر وکړ چې پاول بیا د کتاب مطالعه شروع کړه. مور پټې ســترګې پراته او د ویرې څخه یې ســاه نه شــوای ایستلای. په خپله ټوله مینه او محبت سره یې پر خوخول زړه وخوږید، مګر دغه زړه ســوی یې د خپـل زوی په باب لا ډېر شــو. د خپل زوی په هکله یې فکر کاوهٔ: «زما بیچاره زویه...

خوخول په ناڅاپي ډول وپوښتل:

- خو، زه څه باید وکړم؟ دې ته هیڅ ونه وایم؟

پاول په ټیټ غږ سره وویل:

- دا به بهتره وي.

ډېر ښـه! همداسـی به وکړم! - خوخول وویل او څو شیبې وروسته یې په غمجن آواز زیاته کړه:

- دا به تاته ډېره سـخته تمامه شي که ته پخپله دغه حال ووینې. - دا حال دا اوس هم ماته سخت شو...

باد د سرای د دیوالو څخه وهل کیدۀ او سـاعت د پخوا په شـان د وخت تېریدل اعلانول.

خوخول پاول ته وویل:

- دا خبرې د ټوکو وړ نه دي.

مـور خپـل مخ تـه بـالښـــت ونـیـو او بـې لـه کـوم غږه یې وژړل. سبا سـهار آندري تر پخوا مور ته کوچنی ښـکارېدۀ او د مور محبت یې هم تر پخوا ډېر ځان ته ور خپل کړ. د دې زوی د پخوا په شـان سـخت گیر، ډنگر او پټه خوله و. مور به پخوا خوخول ته د آندري انیســیموویچ په نامه ور غږ کول، مگر نن ورځ یې له ډېرې مینې څخه بې له دې چې متوجه شي، ده ته داسې ور غږ کړ:

- آندري، تا خپل بوټونه باید ترمیم کړې وای، یخ به دې وشي.

دۀ په خندا سره وویل:

- بله ورځ چې معاش واخلم، نو به ځان ته نوي بوټونه رانیسم. –

وروســـتـه تر دې دۀ د مور پر اوږو بـاندې خپل لاس راوګرځاوۀ او ويې ويل: - ښـايي زما يوازنی سکه مور هم ته يې، مګر زما د بدې قوارې په اثر ما نه منې. آيا داسی نه ده؟

مور بی لـه دې چې ده تـه ځواب ورکړي، دی يې پـه خپـل لاس سره ونـازوئ. مور غوښـــتـل چی ورته ډېر له مينې ډک الفاظ ووايي، مګر زړه يې د ډېرې زړه سواندی د لاسه بيخي ستيړل شوی و او د دې شونډو ته يې د دا ډول کلمو د اداء کولو اجازه ورنکړه.

«۹»

د کارګرانو د محلي ټولو اوسيدونکو، د سوسياليستانو په باب چې په شنه رنګ سره ليکل شـوي تبليغاتي پاڼې يې خپرولې، خبرې کولې. د سوسياليستانو خپرونو د فابريکې اداري نظام سخت غندلی و، د پټربورګ او جنوبي روسيې د کارګرانو د اعتصابونو په باب يې تبصـرې ليکلي وې. همدارنګه د ټولو کارګرانو څخـه يې هيلـه کړي وه چې د يووالي لاس سره ورکړي او د خپلو حقوقو او منافعو لپاره مبارزه وکړي.

مـــــــــشر کارګران چې په فابريکه کې يې ښه معاشونه درلودل، د دې خپرونو څخه سخت عصبي شوي وو. دوی به ويل:

- د دې اخلال کوونکو غاښونه بايد وايستل شي!

همدغو خلکو به دا خپرونې خپلو بادارانو ته رسولې. ځوانانو به په ډېري لېوالتیا سره دا خپرونې لوستلې او ویل به یې چې د دې پاڼو لیکنې ټول حقیقت لري.

اکثریت بیا په خپلو کارونو کې ډوب وو او دې خبرو سره یې دلچسپي نه ښودله. دوی به ویل:

- هېڅ به یې له لاسه ونه شي، آیا دا کار شونی دی؟

مگر دې خپرونو کارگران په ولولو راوستل او که کومه اونۍ به دغه خپرونې نه وې خپرې شوې، نو خلکو به په خپل منځ کې سره ویل:

- لکه چې دوی خپرونې بس کړې.

په بله اونۍ کې به چې کومه نشریه بیا راووتله، ټولو به د هغې په باره کې خبرې شروع کړې.

په فابریکه، میخانه او نورو ځایو کې داسې خلک راپیدا شول چې پخوا هیڅ‌ا نه وو لېدلي. دوی به شاوخوا ځار کاوۀ، دې خوا و هغې خوا ته به یې کتل، دوی به د هر چا څخه پوښتني کولې، نو له دې کبله یې د خلکو توجه ځان ته ور خپله کړه.

مور پوهېدله چې دا ټولي ولولې او ښور د دې د زوی د فعالیتو نتېجه ده. ډېر خلک د ډېر ستر امېد سره د دې د زوی و خوا ته راټولېدل. مگر د زوی د برخلیک په هکله د مور تشویش د دې ډول زوی لرلو د غرور سره یو ځای کېدۀ.

یوه ورځ مازدیگر ماریا کورسونووا د مور د کور کړکۍ وټکوله، کله چې مور کړکۍ خلاصه کړه، هغې په لوړ آواز سره وویل:

- پلاګېيا، پام کوه! لوبه مو بايلوله، دوی نن شپه ستاسو او د ويسوفشيکوف او مازين کورونه تلاشي کوي.

ماريا خپل بانۀ او شونډان دواړه يو ځای ښورول. د خپلې پنډې پزې له لارې يې ساه کښله، په ورخطايۍ سره به يې يوې او بلې خوا ته کتل او کله به يې په کوڅه کې تېرېدونکي سړي ته سترګې نيولې.

- زه په هېڅ شي نه پوهېږم، هېڅ مې درته ونه ويل او حتی نن ورځ مې ته نه يې ليدلي- وا دې وريدل؟

ترې دې وينا وروسته ماريا لاړه.

مور کړکۍ وتړله او په ستونزو سره په څوکۍ کېناسته. مګر ژرنګه چې دې د خپل زوی د ګواښلو ډار لېدۀ، نو سمدستي راولاړه شوه، په ډېر تلوار سره يې کالي واغوستل، سر يې په يوه شال کې وپيچۀ، په ډېره چابکۍ سره د فيودور مازين و کور ته لاړه- هغه په دغه ورځ کار ته نه و تللی، ځکه چې ناروغه و، کله چې دا د هغه کور ته ورننوتله، دی تر کړکۍ کښته ناست و، کتاب يې لوست او خپله ګوته يې چې په کار کې ټپي کړې وه، پرستاري کوله، د ده د رنګ ښه د دې خبرې په اورېدلو سره والوتله او د ځای څخه وغورځېد.

ده تر خپلو غاښو لاندې وويل:

- دا څنګه وشو...

مور په داسې حال کې چې له مخ څخه يې په رېږديدلي لاس خولې پاکولې، وپوښتل:

- موږ بايد څه وکړو؟

فیودور چې په خپل روغ لاس د سر چنګ، چنګ ویښــتان یوې خوا او بلې خوا ته سره وهل، وویل:

- لږ صبر وکړه. مه ویرېږه!

دې نارې کړې:

- ته په خپله ولې وارخطا یې؟

- څوک؟ زه؟- په داســې حال کې چې د ده بارخوګان سره شــوې وو، د ډېرې وارخطايۍ څخه یې موسکا وکړه او ویې ویل: - رېښتیا!... موږ باید پاول خبر کړو. زه به په منډه ده ته کومکسولیږم، مګر تاسې اوس لاړه شئ. خپل فکر مه ورانوه. ښایي چې دوی موږ ونه وهي، آیا دوی به مو ووهي؟

کله چې دا کور ته راورسېده، لومړی یې ټول کتابونه راټول کړل او بیا یې په کور کې په ګرځېدو پیل وکړ، ټول کتابونه یې په ســینه پورې نیولي وو او په ځیر سره به یې د بخارۍ کښــته او پورته کتل او د کتابو د پټولو په هڅه کې وه. دې فکر کاوۀ چې ښایي پاول د فابریکې څخه ډېر ژر راشي. مګر هغه رانغی او دا هم د ډېرې ســتومانۍ څخه پر څوکۍ کېناســته او ټول کتابونه یې تر څوکۍ لانـدې کېښــودل. مور د ډېرې ویرې څخـه د پاول او خوخول تر راتګ پورې بیخي د هغه ځای څخه ونه خوځیده.

مور بې له دې چې له خپل ځای پورته شي، نارې کړې:

- آیا تاسې خبر یاست؟

پاول وخندل:

- هو! مورې، ته لکه چې بیخي ډېره وېریدلې یې.

خورا سخته وویریدم.

خوخول وویل:

- ته باید ونه ویریږې، ځکه وېره له چا سره مرسته نه کوي.

پاول مور ته وویل:

- تراوسه دې سماوار هم نه دی لګولی؟

مور لـه کتـابونو څخه پورته شــوه او په ډېرې عاجزۍ سره یې کتابونو ته اشاره وکړه او ویې ویل:

- دغه کتابونه د سماوار د تودولو خنډ شول.

خوخول او پاول شنه له خندا لاړل، مور د دوی په خندا لږ څه آرامه شوه. پـاول د هغو کتابونو څخه څو کتابونه جلا کړل او له ځان سره یې د باندې یوړل چې په انګړ کې یې کوم ځای پټ کړي.

کله چې خوخول سماوار لګاوۀ، نو یې وویـل:

- نېنکو، بالکل داســې شی نشــته چې هغه دې د وېرې ســبب شي. دا بې شرمـه خلـک پـه دې احمقانه کارونو سره یوازې خپل وخت له لاســـه ورکوي. ښایي څو کسان له تورو او سپرو سره یو ځای راشي، دلته او هلته به پلټنه وکړي، تر بسترو، بخاریو لاندې به وګوري، لاندې خونې ته به ننوزي، د خونې چت ته به پورته شي. د دوی مخونه به د غنو په تارونو ککړ شي او د ډېري کرکې وړ به وګرځي. له دوی به خلګ ډېر تنګ شي او ډېر به وشرمیږي، نو په دې ترتیب به دوی پلمه وکړي چې مور ډېر عصـباني شــوي یو، دوی خو پوهیږي چې دوی څومره یوه پسته وظیفه لري. یو وخت سخت وارخطا شول چې دوی زما هر شی وکتل او څه یې پیدا نه کړل، نو یې پلټنه بس کړه او لاړل. بله ورځ زه دوی جېل ته بوتلم او د څلورو میاشــتو لپاره یې بندي کړم. ســړی په جېل کې هېڅ کار نه

کوي، ټوله ورځ ناســـت وي، او پـه تمـه وي. څـه وخـت وروســـته تاته کومه احضـــاريه راځي او تا و لوی آمر ته بيايي، هغه د ســـړي څخه تحقيقات کوي. دوی دومره پوه او ځيرک آمران نه دي، ډېرې گواښـــونکي او د ځان غوښـــتني خبرې کوي، يو ځل بيا امر کوي چې بندي په جېل کې واچوئ. په دې ډول بيا عسـکر، سـړی د بندې خانې تر کوټې رسوي. دوی دغه ټول کارونه د دې لپاره کوي چې خپل معاش حلال کړي. تر يوه دوامداره عمليات وروسته بېرته سړی د جېل څخه خوشی کړي. دا وي د جېل ټولې سختۍ.

مور په ولولو سره وويل:

- آندري، ته په عجيبه لهجه خبرې کوې.

په دې وخت کې دهٔ ســماوار ته گونډې وهلي وې او ســماوار ته يې اور اچاوهٔ، مخ يې تک ســور شوی و، سر يې راپورته کړ، په برېتونو يې لاس تېر کړ او ويې ويل:

- څه ډول خبري کوم؟

- ســـتا خبرې داســـې ښـــکاري لکه ته چې چا په ژوند کې هم نه يې ځورولی.

دی پاڅيد، سر يې وښوراوهٔ او په خندا يې وويل:

- آيا د ځمکې پر مخ داسې يو روح شته چې هغه دې ځورېدلی نه وي ؟ دوی زه دومره زهير کړی يم چې اوس مې خوی ورسره نيولی دی او هېڅ باک نه پر کوم. د دې ډول خلکو سره نوره نو څه ســـړی کولای شي؟ که ته دوی او خپـل د زړه پرهارو ته پام وکړې، نو بې له دې چې وخت له لاســـه ورکړې، بله گټه به ونه کړې. ما عادت درلود چې د خلکو څخه خفه شم، مگر بيا وينم چې

یاره دوی په دې نه ارزي، هر څوک د خپل ګاونډي د شـــلاغې څخه ویریږي، نو ځکـه هر یو کوښـــښ کوي چې خپـل وار د مخـه کړي. دغـه مو ژوند دی، ګرانې نېنکو!

د دهٔ خبرو په نرمۍ سره دوام درلود او د تلاشـــۍ په مقابل کې د مور وېره ورو ورو لېرې کېدله. د دهٔ په راوتلو ســـترګو کې موســـکا لېدل کېده او مور پوه شوله چې خوخول خورا هوښیار سړی دی او که څه هم د دنګې ونې خاوند و، خو بیا هم په خپلو حرکتونو کې ډېر چابک او چست و.

مور یو سوړ اسوېلی وکړ او په مهربانۍ سره یې وویـل:

- زه د پاک خدای څخه ستا خوشالي غواړم، آندري!

خوخول بیا سماوار ته راغی او پر دوو ګوتو باندې ورته کېناست او غلي یې وویل:

- که چېرې ماته لږ خوشـــالي هم راپیدا شي، له ځانه به یې لېرې نه کړم، مګر د خوشالۍ د حصول لپاره ګدایي هم نه کوم.

دهٔ چې دغـه جملـه تماموله، پاول له انګړ څخه راغی او په یقین سره یې وویل:

- دوی به هغه پیدا نه کړي - او د خپلو لاسونو په مېنځلو بوخت شو.

وروسته تر دې په داسې حال کې چې لاسونه یې وچول، مور ته وویل:

- مورې، کـه تـه دوی تـه خپله وارخطایي وښـــیې، دوی به حتماً دا فکر کوي چې په دې کور کې څه شی شته، همدا سبب دی چې دا ښځه وارخطا ده. تـه پوهېږې چې هېڅ کوم بـد کـار مو نه دی کړی. حق او عدالت زموږ پر خوا

دی او مور ټوله د هغه په تلاښ کې یو، څنګه بل کوم شی نشـته، نو ولې به مور وارخطایي ښکاره کوو؟

مور وعده ورکړه:

- زه بـه ډېر کوښـــښ وکړم چې خپلـه وارخطـایي پټه کړم، - مګر دې په همـدغـه شـــېبـه کې یې په حیرانتیا سره وویل:- که چېرې دوی لږ تلوار وکړي، ښایي چې زه بېرته د پخوا په څېر وارخطا شم.

په دغه شـــپه د حکومتي ژاندارمو کوم څوک د دوی و کور ته رانغلل او مور سهار فکر کاوه چې هلکان به دومره پېغورنه ورکړي، چې دا به پر خپل ځان وخاندي. ویې ویل:

- له خطر وړاندې ووېریدم.

«۱۰»

تر هغه خوفناکې شپې یوه میاشت تېره شوه او په پای کې ژاندارم د دوی و کور ته راغلل. ویسـوفشـیکوف د دوی کور ته د پاول او آندري د لیدلو لپاره پـه دغه شـــپه راغلی و. دوی درې واړو د خپلې ورځپاڼې په باب خبرې کولې. ډېر ناوخته تقریباً نیمه شپه مور په بستره پراته او نیم خوبه حالت کې وه، د دوی آوازونه یې اوریدل. آندري په احتیاط سره د پخلنځي له لارې دهلیز ته ووت او ور یې په ځان پسـې وتاړهٔ. په همدغه وخت کې په دهلیز کې د فلزي سـطل د لوېـدلو غږ پورتـه شـــو. دروازه راوغورځول شـــوه، آندري په دې وخت کي په پخلنځي کې قدام واهۀ. ده په نسبتاً لوړ غږ وویل:

- د سپرو غبړ راځي!

مور له خپله ځایه راوغورځېده، کالیو ته یې منډه کړه او هغه یې په خپلو ریږدیدلو لاسو کې ټینګ ونیول. په دې وخت کې پاول د دې بسترې ته ورغی او په کراره سره یې ورته وویل:

- مورې، ته ناروغه یې، دلې په بستره کې پاته شه.

د کور پـه دهلیز کې آرام زوږ واوریـدل شـو، پـاول دروازې تـه ورغی، دروازه یې په خپل لاس پورې وهله او غږ یې کړ:

- څوک یاست؟

ناڅاپه یو جګ سړی چې سپېره دریشـي یې اغوستې وه، راښکاره شو، یو بل سـړی هم پسـې و، تر شـا یې دوه ژاندارم ولیدل شـول. دې دوو ژاندارمو پاول پورې واهۀ او تر څنګ یې ودرېدل. یوه په ملنډه وویل:

- موږ هغه کسان نه یو، کوم چې تاسو یې په تمه واست.

د دې خبرې ویونکی یو جـګ منصـبـدار و، خورا نري تور برېتونه یې درلودل. د محلې د پولیسـو څخه یوکسـچې فیدیاکین نومېدۀ، د مور و کټ ته ورغی. دۀ دغه جمله په داسـې حال کې چې یو لاس یې خولې او بل یې د مور خوا ته نیولی و، وویل:

- صـاحبـه، دا یې مور ده! – او پاول ته یې مخ کړ، زیاته یې کړه: - او دا دی په خپله دی!

منصبدار سترګې ورپولې او ویې ویل:

- پاول ولاسوف ته یې؟

کله چې پاول د سر په اشاره مثبت ځواب ورکړ، منصبدار بریتونه تاو کړل او ویې ویل:

- زه باید ستاسې کور تلاشي کړم. بوډۍ پورته شه! – دۀ کوټې ته دننه نظر واچاوۀ او ویې پوښتل: - هلته څوک دي؟

او غبږ یې کړ:

- ستاسې نومونه څه دي؟

دوه شاهدان په دې وخت کې دننه راغلل. یو د هغو څخه زوړ ریخته گر تویریاکوف او بل یې ربین و، چې د هغۀ په کور کې اوسېدۀ او مشر ـ توربخن سړی و. ده په ډېر تروۀ تندي او ډډ آواز سره وویل:

- نیلوفنا، سلام علیکم!

کله چې مور کالي اغوستل، نو یې کوښښ کاوۀ چې خپل زړۀ په دې کلمه سره تقویه کړي:

- هېڅکله مې نه و اورېدلي، چې څوک دې د چا کور ته په نیمه شپه په دې حال سره ورشي.

کوټه د خلکو څخه ډکه وه او د بوټو د رنگ بوی ترې خوت. دوو عسکرو او د محلې پولیس کوتوال کتابونه د الماری څخه راکښته کول او د منصبدار و مخ ته یې کوټه کول. دوو نورو دیوالونه په سوکانو وهل، تر څوکیو لاندې یې کتل، حتی یو په ډېر زحمت د بخاری و سر ته هم پورته شو. خوخول او ویسوفشیکوف دواړه په یوه کونج کې ولاړ وو. د ویسوفشیکوف کور کوري مخ باندې تک سره ټپونه پیدا شوي ول او دواړه سترگې یې بې له دې چې ویې

رپوي و منصـــبـدار تـه نیولې وې. خوخول خپـل برېتونه تاوول او کله چې مور کوټې ته راننوتله، دۀ د مېړاني د ډېرېدو لپاره ورته یوه لنډه موسکا وکړه.

د دې لپـاره چې خپـل وهم او ډار مـات کړي، نو یوې او بلې خوا ته یې حرکت نه کاوۀ، وچه نېغه په ډېره هسـکه غاړه او راوتلې سـینه سره مخ ته تلله. د حرکت په وخت کې یې پر ځمکه باندې پښې ټکولې او وروځې یې ریږدیدلې.

منصـبدار په خپلو گوتو سره ژر ژر د کتابونو پاڼې اړولې، څنډل به یې او هر یو بـه یې ډېر ژر ځمکې تـه غورځـاوۀ. ځینې کتـابونه پر ځمکه لویدلي وو، هیڅا کومه خبره نه کوله، پر ژاندارمو خولې رابهیدلې او ساه یې په اوږو شړله، د دوی د تورو شرنگ او شرونگ پورته کېدۀ او یو بل ته به یې ویل:

- دغه ځای مو کتلی دی؟

مور مخامخ و دېوال ته د پاول څنگ ته ودرېده او لاســونه یې د پاول په څېر کلک کړل او سـترگې یې منصـبدار ته نیولې وې. دې په خپلو پښـو کې لږ څه ستریا حس کوله او په سترگو باندې یې یوه نازکه پرده راغله.

ناڅاپه د ویسـوفشیکوف آواز چې ډېره زیږه لهجه یې درلوده، واوریدل شو:

- ولې تاسې کتابونه پر ځمکه غورځوئ؟

د مور زړۀ ټکـان وخوړ. تویریـاکوف خپـل سر داســې وغورځـاوۀ لکه څوک چې یې پورې وهلي وي. ربین هم په دقت سره ویسوفشیکوف ته وکتل.

منصــبدار خپلې ســترگې چوغې کړې او ورپســې یې په بیړه د نیکولای کورکوري مخ ته وکتل. دۀ ژر-ژر د کتابو د پاڼو اړول شروع کړل. کله-کله به یې

داسې خپلې خبرې سترګې خلاصې کړې چې سړي به فکر کاوۀ پر دۀ باندې ډېر سخت درد راغلی دی او غواړي چې کوم شی ووایي.

ویسوفشیکوف بیا وویل:

- هې، عسکر، دا کتابونه له ځمکې څخه را پورته کړئ.

ټول ژاندارم راوګرځېدل، لومړی یې دۀ او بیا یې منصبدار ته وکتل. منصبدار بیا سر پورته کړ او په دقت سره یې ویسوفشیکوف ته وکتل.

- هممم... ټول یې کړئ!- دۀ دغه کلمه په پزه کې ادا کړه.

یو عسکر ځمکې ته کوږ شو او د پاشل شوو کتابونو په ټولولو یې پیل وکړ.

مور و پاول ته پټ پټ وویل:

- نیکولای باید چوپ شي.

پاول خپلې اوږې وښورولې. خوخول خپل سر کښته وځړاوۀ. په دې وخت کې منصبدار وپوښتل:

- دغه انجیل څوک وایي؟

پاول ځواب ورکړ:

- زه یې وایم.

- دا ټول کتابونه په چا پورې اړه لري؟

پاول وویل:

- په ما پورې اړه لري.

منصبدار په څوکۍ کې تکیه وکړه، ویې ویل:

ښه، ډېر ښه.

دۀ، د خپلو لاسو ګوتې کښېکښلې، پښې يې تر مېز لاندې اوږدې کړې، په خپلو برېتو کې يې ګوتې ووهلې او ويسوفشيکوف ته يې وويل:

- آيا ته آندري ناخودکه يې؟

ويسوفشيکوف مخ ته ورغی، ورته ويې ويل:

- بلې، زه يم.

خوخول دی تر اوږو کش کړ او ور وړاندې شو، ويې ويل:

- دی آندري نه دی، زه آندري يم.

منصبدار لاس پورته کړ او خپله وړه ګوته يې ويسوفشيکوف ته وښوروله.

- ته دي پر خپل ځان ښه پام کوه.

وروسته منصبدار د کوم کاغذ په پلټنه پيل وکړ.

د سپوږمۍ وړانګو چې ډېرې سړې وې، په ډېرې بې پروايۍ سره له کړکيو څخه کتل. يو سړی له کړکۍ د باندې ګرځېدۀ او هغه واوره چې د دې سړي تر پښو لاندې کېده، غږ يې کاوۀ. په همدې وخت کې منصبدار پوښتنه وکړه:

- ناخودکه، بل وخت هم څه د سياسي فعاليتونو په ګواښ باندي تورن شوی يې؟

- هو، يو ځل يې زه په روستوف او بيا ساراتوف کې توقيف کړی يم، اما د هغه ځای منصبداران ډېر په احترامانه ډول راسره غږېدل.

منصبدار خپله ښۍ سترګه چوغه کړه او ويې مښله. وروسته يې بيا په داسې حال کې چې کوچني غاښونه يې برېښيدل، وويل:

- آیا تاسې خبر یاست چې کوم رذیلان دغه پارونکي پاڼې په فابریکو کې ویشي؟

خوخول یو پوزخند وواهۀ، د پښو پر گوتو ودرېدۀ او نژدې وو چې ځواب ورکړي، مگر په دغه شېبه کې بیا د ویسوفشیکوف آواز واورېدل شو:

- دا لومړی ځل دی چې موږ رذیلان وینو!

په کوټه کې چوپه چوپتیا شوه. هېچا څه و نه ویل.

د مور د مخ خاپ بیخي د وېرې څخه تک سپین شوی و او ښی وروځه یې هم غورځېدله. د ربین توره ږیره بیا په عجب ډول سره وښوریدله، دۀ خپلې سترگې کښته واچولې او په گوتو یې ږیره ږمنځ کوله.

منصبدار چیغه کړه:

- دغه لېونی سپی د باندې وباسئ!

دوو عسکرو ویسوفشیکوف تر اوږو ونیو او په ټیلو یې د پخلنځي لور ته کش کړ. په دې وخت کې دۀ خپلې پښې پر ځمکه وټکولې او ویې ویل:

- لږ صبر وکړئ، زه به خپل بالاپوښ واغوندم.

د انگړ نه کوټوال را دننه شو او ویې ویل:

- هر څه مو وکتل، هېڅ شی نشته.

منصبدار په خندا او ملنډو وویل:

طبیعي ده! دلته موږ د ډېرو مجربو او چالاکو خلکو سره مخامخ یو.

مور د دۀ ماتیدونکي او ضعیف آواز ته غوږ نیولی و او د دۀ ژیړ مخ ته یې په ډار سره کتل. مور دا حس کړه چې دا حکومتي نماینده یو بېرحمه دښمن دی، چې موږ عامو خلکو ته خپل ځان سردار او بادار معرفي کوي. مور ډېره

لږه د دې ډول خلکو سره پـه اړیکـه کې شـــوې وه او  حتی د دوی وجود یې بیخي هېر کړی و.

دې فکر وکړ: «حتی دا ښاغلی مو هم په تکلیف کړ».

- حرامزاده آندري انیسیموف ناخودکه، تاسې باید بندي شئ.

خوخول بې له دې چې د ویرې احساس وکړي وویل:

په کوم اساس؟

منصبدار په کرکجني آرامۍ سره ځواب ورکړ:

- وروسـته به تاسو ته ووایم- او مور ته یې مخ را واړاوهٔ او ویې ویل:- آیا ته په لیک پوهیږې؟

پاول ځواب ورکړ:

- یه، دا نه پوهېږي.

منصبدار په لوړ او ډارونکي آواز سره وویل:

- له تا مې پوښتنه نه ده کړې. بوډۍ، ته په خپله ووایه!

مور په هغه کرکه کې چې د دې سړي په حق کې یې درلوده، ډوبه شوه. ناڅاپه مور داسـې وریږدیدله لکه سړی چې په سړو اوبو کې ولوېږي. دې خپل ځان سره راټول کړ، خاپ یې تک سپین شو او وروځې یې رالویدلې وې.

دې خپل لاسونه پورته کړل او ویې ویل:

- چیغې وهل تاسـو سره نه ښـایي. تاسـې تراوسـه ځوان یاست او د ژوند غمونه مو لږ لیدلي...

پاول کوښښ وکړ چې مور له خبرو څخه منع کړي، نو یې وویل:

- مورې، خاطر جمع اوسه!

دې د میز و خواته تلوار وکړ او ویې ویل:

- پاوله، لږ صبر وکړه. – او منصبدار ته یې وویل: تاسې ولې دا خلک نیسئ؟

منصبدار په لوړ آواز وویل:

- دا ستا وظیفه نه ده، خوله دې بند کړه.- او زیاته یې کړه: - محبوس ویسوفشیکوف راولئ!

دۀ یو کاغذ خپلې پزې ته نژدې نیولی و، د هغه په لوستلو یې پیل وکړ.

نیکولای یې خونې ته راوست.

منصبدار د کاغذ ویلو په وخت کې په قهر سره ناره وکړه:

- خولۍ دې ایسته کړه!

ربین مور ته راغی او په اوږه یې پورې وهله او ورته ویې ویل:

- په جوش او ولولو مه راځه!

نیکولای ویسوفشیکوف وویل:

- تاسې نه وینئ چې لاسونه مې تړلې دي، څه ډول خولۍ وباسم.

منصبدار کاغذ پر مېز وغورځاوۀ او ویې ویل:

- دا کاغذ امضاء کړه!

مور لیدل چې څنګه یې پروتوکول امضاء کاوۀ. په دې وخت کې د دې قهر کم شو، زړه یې په غم کې ډوب شو، سترګې یې د ناامیدۍ او غمجنۍ له اوښکو څخه ډکې شوې. دې به تل د شل کلنۍ مړوښې په دوره کې دا ډول تودې اوښکې تویولې، مګر په دې څو کالونو کې یې د هغې تودوالی هېر کړی

و. منصبدار مور ته وکتل او په یوه داسې لهجه سره چې په تمامه معنا له ملنډو ډکه وه، وویل:

- اې ښځې، ته لرې دا اوښکې وساته، ځکه چې په راتلونکي وخت کې به د استعمال لپاره هېڅ نه وي درپاته.

مور بیا په قهر سره وویل:

- هره مور د هر څه لپاره پوره اوښکې لري، د هر شي لپاره، که چېرې ته مور ولرې، نو حتماً به هغې ته دا حقیقت ور معلوم وي.

منصبدار خپل کاغذونه په یو نوي بکس کې چې یو نوی او ځلانده قولف یې درلود، په تلوار سره واچول.

وروسته یې قومانده ورکړه:

- مارش!

پاول په ډېرو تودو احساساتو سره دا کلمه اداء کړه:

- آندري او نیکولایه په مخه مو ښه.

منصبدار په یوې لنډې خندا سره وویل:

- ښایي چې ته هم ډېر ژر له دوی سره لېدنه وکړې.

ویسوفشیکوف په ډېر زحمت سره ساه کښله. وینې د دهٔ پنډې غاړې ته راپورته شوي وې. سترگې یې په ډېر قهر سره ځلیدلې. خوخول یو سپک تبسم وکړ او مور ته ورچوخ شو، مور ته یې کوم شی وایهٔ. مور د دعا کولو حالت ونیو او ویې ویل:

- خدای پوهېږي چې څوک په حقه دي...

بالاخره د خلکو هجوم چې خاکي نظامي بالاپوښونه يې پر ځان اغوستي وو، په داسې حال کې چې تورو يې شرنګ او شرونګ کاوۀ، د باندې لاړل. ربين وروستی کس و چې د باندې ووت. دۀ پاول ته يو اوږد نظر واچاوۀ، په ډېر تفکر سره يې وويل:

- ښه، د خدای په امان.

او په داسې حال کې چې کراره ټوخی يې کاوۀ، بې له عجلې نه دهليز ته ورتېر شو.

پاول خپل دواړه لاسونه تر شا نيولي وو، ورو-ورو يې پر غولي باندې قدم واهۀ. دۀ په خواشينۍ سره ويل:

- دا دی، ودې ليدل؟ په څه ترتيب کار کوي؟

مور په داسې حال کې چې خپلې سره پاشلي کوټې ته يې په ډېر شک سره نظر اچاوۀ، په ډېر تاسف سره وپوښتل:

- ولې نيکولای دومره بې باکه و؟

پاول وويل:

زما په فکر سره، دی ډېر وډار شو.

مور د خپل ځان سره چې لاس يې ښوراوۀ، وويل:

- دوی ناڅاپه راغلل او په عين ناڅاپي کې يې دوی ونيول او بويې تلل.

څرنګه چې د دې زوی يې نه و نيولی، زړه يې آرام شو. مګر افکار يې وار په وار د خپلو نااميديو په ليدلو سره د کار څخه لوېدل او ويې ويل:

- هغه ژړ مخي منصبدار پر موږ باندې ملنډې وهلې او کوښښ يې کاوۀ چې موږ ډېر سخت په ډار او وحشت کې واچوي...

پاول ناڅاپه په یوه نوي عزم سره مور ته وویل:

- خیر دی مورجانې، راشه چې دغه کاغذونه ټول کړو.

دهٔ و دې ته د «مورجانې» او «ته» په کلمو سره ور غږ کړ، لکه پخوا به یې چې د ډېرو عمیقو احساساتو له مخې دې ته په دې الفاظو ورغږکول. مور دهٔ ته ورغله او مخ ته یې کتل او پوښتنه یې ځنې وکړه:

- ته یې ډېر خفه کړې؟

- بلې، ښه به دا وای چې له دوی سره وای!

مور خیال وکړ چې د زوی په سترګو کې یې اوښکې راټولې شوې دي، یو سوړ اسویلی یې وکېښ او د دهٔ د آرامولو په خاطر یې وویل:

- صبر وکړه، تا به هم بوځي.

دهٔ ځواب ورکړ:

- زه پوهېږم چې دوی به ما هم بوځي.

مور د یوې شیبې لپاره پټهٔ خوله ودرېدله او وروسته یې وویل:

- پاوله ته څومره سخت انسان یې! کاشکې دې ماته هم کله کله تسلي راکولای، زه یوه سخته خبره وکړم، ته هغه لا سخته کړې.

- مورې، نشم کولای، ته باید له دې ژوند سره عادت پیدا کړې.

مور اسویلی وکړ او کوښښ یې وکړ چې خپل تردد او وارخطایي وساتي، تر لږ توقف وروسته یې وویل:

- آیا دوی خلک تر سختې شکنجې لاندې نیسي؟ غوښې یې پرېکوي، هډوکي یې ماتوي؟ هر وخت چې زه په دې باب فکر کوم ډېر مدهش راته معلومېږي.

پاول ځواب ورکړ:

- دوی د سړي روح ځوروي، په خپلو نجسو لاسونو، دا تر هغهٔ سخته ده...

## «۱۱»

په بله ورځ معلومه شوه چې دوی بوکین، سوموف، سمایلوف او نور پنځه ملګري هم نیولې دي. د فیودور مازین کور ته د مازدیګر په وخت کې ورغلي وو. د دهٔ کور یې هم تلاشي کړی و، دی خورا ډېر خوښ و او خپل ځان یې قهرمان بالهٔ، مور ورڅخه پوښتنه وکړه:

- وېریدلی خو به نه یې، فیودور؟

د دهٔ د مخ بڼه والوتله، رنګ یې سور شو، سترمې یې غورځیدلې.

- زه له دې نه وېریدلم چې منصبدار به مې ووهي. منصبدار خورا چاغ سړی و، توره ږیره یې درلوده، ګوتې یې له ویښتانو ډکې وې او په سترګو یې داسې تورې عینکې وې، لکه ړوند چې وي. دهٔ نارې وهلې، پښې یې پر ځمکه ټکولې، دهٔ نارې کړې: «په جیل کې به دې واچوم!» هېڅا زه ونه وهلم! حتی زما مور او پلار هم ماته څه ونه ویل. زه د دوی یو زوی یم او پر دوی ډېر ګران یم.

دهٔ د لږ وخت لپاره خپلې سترګې پټې کړې، شونډې یې وچیچلې، په دواړو لاسونو یې ویښتان شاته پورې وهل. وروسته یې خپلې سترګې چې زیږمې یې سرې شوي وې، و پاول ته واړولې.

- کـه چېرې څوک دومره مېړانه وکړي چې ما ووهي، نو زه به هم حتماً د چاقو په څېر وروغورځم او په سینه کې به یې ښخ شم. زه به یې په غاښونو سره څېرې کړم. پرېږدئ چې دوی بیا ما مړ کړي او خپل غچ له ما نه واخلي!

مور په ولولو سره وویل:

ته ډېر کمزوری او بې واکه یې. څنګه به جنګ وکړې؟

فیودور په ټیټ آواز سره ځواب ورکړ:

- پروا نه کوي، په هر ډول چې وي، زه به جګړه وکړم! - کله چې فیودور لاړ، نو مور پاول ته وویل:

- د میدان په ورځ چې لوړی سړی ماتیږي، هغه به دی وي.

پاول ځواب ورنکړ.

له څو دقیقو وروسته ور خلاص شو او ربین کور ته دننه شو.

ده په یوه لنډه خندا سره سلام وکړ او ویې ویل:

- زه خو بیـا راغلم. برایي شـــپه یې زه په زوره راوســـتلم، نن ورځ دا دی پخپله راغلم. – دهٔ د پاول لاس په ډېر شـدت سره وښوراوهٔ او د مور په اوږو یې لاس کېښود او هیله یې ور څخه وکړه:

- لږ چای به رانه کړې؟

پـاول پـه ډېر غور د دهٔ لوی تور مخ، توره ږیره او تورې ســـترګې معـاینه کړې. د دهٔ په آرامو سترګو یو مهم شی برېښیدهٔ.

مور پخلنځي ته لاړه او د سـماوار په تودولو بوخته شـوه، ربین کېناست، پر میز یې څنګل ولګوله او پاول ته یې په ډېر ځیر سره وکتل.

- ښــه. – ربین د پاول په خبرو کې ورولوېد او ویې ویل:- زه غواړم چې ستا په خلاصــه ژبه خبرې وکړم. زه تل تاســو ته متوجه یم، ستاسو کور ته نژدې ژوند کوم او وینم چې دلته داسې خلک راځي چې شراب نه خوري او نه جنگ کوي. همدغه لومړنی شی دی چې زه یې متوجه کړی یم. ته ډاډه یې که چېرې ځوک نـاوړه اعمال ونـه کړي، نو هغـه هرومرو د عامو خلکو د زیاتې توجو وړ گرځي. زه په خپله د خپل یوازېتوب له امله د دوی نظر ځانته خپلوم.

دهٔ په سخته ولې آزاده ډول خبرې کولې. دهٔ خپله بړیره په لاس تاووله او د پاول و مخ ته یې په ډېر ځیر سره کتل.

- خلـک ســتاســو په باره کې خبرې کوي. مثلاً زما بادار، تا د دهري په صفت پېژني، دا ځکه چې ته هېڅ کلیسا ته نه ځې، مگر ته باید پوه شې چې زه هم کلیســا ته نه ځم. دوی بیا د خپرونو په باب تبصرــې کوي او هغه ټولې په تا پورې تړي. آیا دا ستا کار دی؟

- بلې، دا زما کار دی!

مور په ډېره وېره او ډار سره خپل سر د پخلنځي څخه راوایســتئ او ویې ویل:

- پاوله دا څه وایې؟ یوازې خو ته دغه کار نه کوې.

پاول او ربین دواړه موسک شول.

- ډېر ښه. ربین وویل.

مور تر ساه کښلو وروسته بېرته لاړه. لږ څه خوابدي شوه، ځکه چې دوی د دې خبرو ته هېڅ پام ونه کړ.

- دا وړې خپروني خلـک په ولولو راولي، زه هم د دې پلوی یم. تاســو تراوسه پورې ۱۹ تبلیغاتي پاڼې خپرې کړي دي؟

- هو. - پاول وویل.

- هو، داســې ښرگندیږي چې ما ټولې لوستلي دي. ځینې شـیان یې عام فهمه نه دي، ځینې یې ضرور نه دي چې ولیکل شي. مگر کله چې سړی ډېرې خبرې کوي، له هغو هرومرو ځینې اضافي او عبث خبرې راوځي.

ربین موسکا وکړه او په خوله کې یې تک سپین غاښونه وبریښیدل.

- پس له دې نه تلاښي وشوه. د تلاښۍ په وخت کې مې تاسو سره لېوالتیا پیدا شول، ستا، خوخول او نیکولای ښه صفتونه ما وپېژندل.

دی د صــحیحو کلمو د پیـدا کولو لپـاره د خبرو پـه منځ کې ودریـد، د کړکۍ څخه یې د باندې وکتل او گوتې یې پر مېز وهلې. بیا یې وویل:

- تاسـو خپل دریځ موږ ته څرگند کړئ. تاسې جلالتمابه خپل کار کوئ او موږ به خپل کار په مخ بیایو. خوخول هم ښـه سړی دی. کله چې په فابریکه کې زه د دۀ خبرې واورم، نو لـه ځـان سره وایم چې پـه دنیـا کې هیڅ شی بې له مرگه څخه دی نشي ماتولای. ډېر پیاوړی سړی دی! پاوله، په ما باور لرې؟

پاول د سر په خوځولو سره مثبت ځواب ورکړ.

- ته ماته ښــه وگوره، زه څلوېښــت کلن یم، زما عمر ستا دوه برابره دی او تر تا مې شـل چنده ډېر شـیان لیدلي، تر درو کالونو مې لا زیاته عسـکري کړې ده. دوه وارې مې وادۀ کړی و، لومړی ښــځه مې مړه شــوه او دوهمه ښــځه مې پرېښوده. په قفقاز کې مې ژوند کړی دی، هلته له مذهبي خلکو سره آشنا شوی یم، دا ډول خلک په ژوند کې کوم بدلون نشي راوستلای.

مور په ډېر غور سره د دهٔ د کلک ایمان نه ډک بیان ته غوږ نیولی و. دا په دې خوښه شوله چې دا مشر سړی هم د دې زوی ته د خپل زړهٔ حال وایي. اما د بلې خوا مور د پاول د ساړهٔ وضعیت څخه ناکراره شوه او کوښښ یې کاوهٔ چې د دهٔ رویه واړوي، څو د مېلمه پالنې اصول پر ځای شي. دې وویل:

- میخائیل ایوانوویچ، ښایي وږی یې او ډوډۍ ته ضرورت ولرې؟

- مورې، مننه، ما ډوډۍ خوړلې ده. پاوله، ته فکر کوې چې ژوند په قانونمند ډول روان ندی؟

پاول ولاړ شو، کښته او پورته یې په داسې حال کې قدم واههٔ چې دواړه لاسونه یې تر شا نیولي وو.

ربین ته یې وویل:

- ژوند په صحیح ډول روان دی. همدا علت و چې ته ماته له خلاص زړهٔ سره راغلې. ژوند تر یوې اندازې سره یو ځای کړي یو، هغه وخت به هم راشي چې موږ ټول یو موټی یو! زموږ په ژوند کې که څه هم په غیر عادلانه توګه ستونزي زیاتي، خو په خپله زموږ سترګې خپلو تورو او ترخو نقطو ته خلاصوي او د چارې کولو لاره یې په خپله راښیي.

ربین د پاول وینا پرې کړه:

- تاسې حق وایاست، انسان یوه نوي والي ته اړ دی! که چېرې د یوه سړي بدن خیرن او په کالیو کې یې سپږې پیدا شي، هغه به سړی حمام ته بیایي، ښهٔ پاک به یې مینځي، نوي کالي به ور اغوندي او په دې ترتیب سره به سړی د دهٔ ظاهر پاک کړي. زموږ ستونزه دا ده چې باید پوه شو په څه ډول سره د یوه سړي دروني چټلي پاکه کړو.

پاول پـه ولولو سره د فـابريكې د مـديرانو او د بهرنيو كـارگرو د حقوقي مبـارزو پـه بـاره كې وغږيـد، پـه همـدې وخـت كې بـه ربين پر مېز باندې لاس ښوراوۀ لكه دۀ چې به د پاول په نطق كې د تنقيد علامې ايښودلې. دى به په نارو شو:

- دغه زموږ هدف دى!

يو وار يې وخندل او بيا يې د پېغور په ډول وويل:

- ته تراوسه پورې ځوان يې. د خلكو په پېژندلو كې تجربه نه لرې.

پاول په جدي ډول ورغبرگه كړه:

- موږ بـايـد د زاړۀ او ځوان پـه برخـه كې خبرې ونكړو. موږ بايد وگورو چې د چا نظر صحيح دى.

ربين وويل:

- ته داســې فكر كوې چې دوى زموږ په هكله د خداى له نوم نه هم بده استفاده كوي. همممم. زه دا فكر هم كوم چې مذهب خطا ايستنه ده.

مور نژدې وه چې وچوي، كلـه چې پاول د خداى او هغو شــيانو چې په خداى پورې يې اړه درلوده، خبرې شروع كړې، مور ته خپله عقيده ډېر گرانه او سپېڅلې وه، دې كوښښ كاوۀ چې خپلې سترگې د پاول پر سترگو برابرې كړي او هغه په پټه سره پوه كړي چې زما زړۀ د دې عقيدې په واسطه مه آزاروه. مگر دې د دۀ د بې اعتقـادۍ و شـــا تـه يو بـل لوى ايمان حس كړ چې هغه د دې د كرارۍ سبب كېدۀ.

دې فكر كاوۀ: «زه به په څه ډول د دۀ په افكارو پوه شم».

مور داسې گمان کاوۀ چې دغه مـشر سړی د دې د زوی په خبرو خفه او خوابدی کيږي. مګر هغه وخت چې ربين په نرمۍ سره د پال څخه بله پوښــتنه وکړه، مور دې ټکي ناکراره کړه او ځان يې کنټرول نشو کړای، په جدې ډول يې وويل:

- کله چې د خدای په باب خبرې کوئ، ښــه فکر او احتياط وکړئ چې تاسـې څه واياست.- مور تر اوږدې سا اخيستلو وروسته د لا زيات زور او الهام سره زياته کړه: - تاسې چې هر شی غواړئ، هغه ستاسې کار دی، مګر زما زړۀ د دغو خبرو د زغملو واک نلري. که چېرې تاســې خدای راڅخه واخلئ، زه به د ستونزې په وخت کې چاته رجوع کوم؟

د مور سـترګې له اوښکو ډکې شوې. لاسونه يې د لوښو مينځلو په وخت کې ريږديدل.

پاول په نرمۍ سره وويل:

- مورې ته زموږ په هدف ونه پوهېدلې.

ربين په خپل ټيټ او ژور غږ سره وويل:

- موږ له تا بخښنه غواړو.- دۀ وخندل او پاول ته يې وکتل:- موږ دا بالکل هېره کړه چې ته بيخي زړه يې او په دې باره کې بايد تا په تکليف نه کړو.

پاول خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

- مورې! موږ د هغـه مهربـان خدای په باره کې کوم چې ته ايمان باندې لرې، خبرې نـه کولې. زموږ هدف هغه خدای و چې ملايان او روحانيون د هغه په واسطه سره عام او ساده خلک د شلاغې په ډول وهروي. دوی دغه خدای ته د خپلې سوټې او کوتک شکل ورکړی دی او د هغۀ په واسطه راغونډ خلک د

څو تنو اطاعت ته مجبوروي. موږ پر هغه خدای باندې بد وایو، کوم چې دغه قاضیان، حاکمان، پاچاهان، روحانیون او نور متقلب کسان یې د خپلې ګټې لپاره کاروي.

ربین مېز په ډېر قهر او غضب سره په سوک وواهۀ او ویې ویل:

- دا څنګه عادل خدای دی چې موږ ټوله ورځ کار او عبادت کوو، مګر د یوې ګولۍ ډوډۍ په ارمان مرو. د روحاني او مذهبي خلکو په نظر کې هم د یوه حیوان ارزښت نه لرو، دا روحاني پلرونه چې نن په کلیسا کې ناست دي، مذهبي لباسونه یې په غاړه کې دي، دوی حاضر دي چې موږ عام خلک د یوه شتمن سړي په پښو کې حلال کړي. د بلې خوا چې ګورو همدغه حاکمه طبقه هېڅ کار نه کوي، ظلم او ستم د دوی دنده ګرځېدلې ده، دوی خپل ځانونه د خدای نماینده ګان او مبعوثین ګڼي او داسې ادعا کوي چې موږ خدای ستاسو پر واکمنۍ ګمارلي یو، آیا په ریښتیا دغه خدای دی چې خلک یې د یوه ناپوه، بې کفایته، ظالم او مستبد سړي په لاس ورکړي دي؟ نو حقیقي خدای به په دې ډول نه وي او دوی چې په دې ټولو بدیو کي برخمن خدای خپل ملاتړی بولي، نو موږ د دې ډول ملاتړ ډېر سخت مخالف یو او تل بد وربان‌دې وایو. دوی پر موږ جعلي او غلط خدای منلی دی. دوی زموږ د ارواحو سره په هره توګه چې وي، جګړه کوي.کلیسا زموږ د روح د شفا لپاره نه ده بلکه موږ د یوې نامعلومې او موهومي قوې په اساس وېروي. موږې، دغه متقلب او غدار خلک غواړي چې زموږ ریښتنی خدای بدل کړي، دوی و هغه ته ډول-ډول بڼې ورکوي او غواړي چې په دې چل او فریب سره زموږ روحونه محاصره کړي.

د ربين لهجه که څه هم ډېره پســته وه، مگر پر مور باندې يې هره کلمه د خنجر پــه څېر لگېدله. مور د دهٔ له لوی او تور مخ ووېرېدله. دې د هغه د تورو او غټو سـترگو د کتلو توان نه درلود. دې تورو سـترگو د مور زړهٔ سوری سوری کاوهٔ.

دې خپل سر وښوراوهٔ او ويې ويل:

- زه بايد لاړه شم. زه دومره واک نلرم چې دا ډول خبرې واورم.

په ډېره بيړه د پخلنځي و لور ته لاړه.

ربين پاول ته وويل:

- د مور تعصـــب دي ولیـد! د هيلو او آرزوگانو سرچينه سر نه دی، بلکه زړهٔ دی. زړهٔ د انســان په روح کې يو خورا مخصـوص ځای ځان ته نيولی دی. هلته بل کوم شی وده نشي کولای.

پاول په ډېر ټينگار سره وويل:

- مور، د دې تعصـــب او جهالت څخه يوازې د عقل او منطق په واســطه ځان خلاصولای شو او بس.

ربين په ډېر لوړ آواز سره ټينگار وکړ:

- عقل سـړي ته پياوړتيا نشـــــي ورکولای، زړهٔ دی چې سړي ته ځواک ورکوي، نه سر.

مور بې له دې چې لمونځ وکړي، کالي وکښل او ويده شوه. د دې له ډېر وحشت څخه ساړهٔ کېدل او حال يې د ترحم وړ و. ربين چې په اول کې مور ته هوښــيار معلومېدهٔ او د يوهٔ ښــهٔ ســړي څېره يې درلودله، مگر اوس يې د مور بدگماني ور ډېره کړه.

دې چې د دهٔ خبرو ته غوږ نیولی و، فکر یې کاوهٔ: «دی ملحد، د خدای منکر! باغي! مرتد دی. د څه لپاره دلته راغلی دی؟»

ربین په ډېره سړه سینه خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

- سپیڅلي او مقدس ځایونه نشو خالي کولای. کوم ځای چې د انسان په زړهٔ کې په خدای پورې اړه لري، خورا ډېر نرم او پوســـت دی. که ته دغه ځای پرې کړې، نو هرومرو بـه ټول زړهٔ زخمي کړې. موږ مجبور یو چې د یوه نوي ایمـان فکر وکړو او یو داســـې خـدای پیـدا کړو چې د ټولو کارگرو او بې وزلو دوست او همدرد وي.

پاول ورته وویل:

- هغه حضرت عیسی و!

ربین په مخالفت سره وویل:

- عیســـــــی ټینگه اراده نه درلوده، دهٔ د پاچاهانو سره هم موافقت کاوهٔ. څنگه خدای د یوهٔ مســـتبد او خودخواه ســـړي ځواک پر ټولو مخلوقاتو باندې مني. پخپله خدای ډېر پیاوړی دی او خدای هېڅکله خپل واک نه ویشــــــي، خدای نه وایي چې دغه واک یې زما او دغه یې د هغهٔ پاچا. مگر عیـــسی هم د وادهٔ او ســـوداگرۍ څخه مخالفت نه کاوهٔ. همدارنگه دهٔ اشـــتباه کړې وه چې د انځر ونـه یې د میوې پـه کولو سره تورنـه کړه، آیـا ونه په خپله اراده کار کولای شي؟ موږ باید انســـاني روح هم محکومه نه کړو چې ولې له نیکۍ ډک نه دی. په دې کې د انســان گناه نشـته. آیا انســان په خپله په روح کې د شـیطان نیالگی ایښی دی؟

د دوی دواړو آواز د خوني د پیوستو څخه راوتی او د سیالۍ له مخې یې مجادله سره کوله. د کوټې په منځ کې هم زوړ اوریدل کېدۀ، داسې بریښېده لکه پاول چې کښته او پورته تلو. هغه وخت چې به پاول خبرې کولې، نو ټول غږونه به چپ شـول. اما ربین چې به خبرې کولې، مور د سـاعت د عقربې او د واورو دلوېدلو غږ اورېدۀ. ربین وویل:

- زۀ د یوه کارگر په ژبه درته ویلای شــم: خدای اور ته ورته دی. هغه په زړۀ کې اوسي. ویل شوي دي: خدای یوه کلمه ده او کلمه روح دی.

پاول د اعتراض په ډول وویل:

- یه، عقل دی!

- پـه هر حـال خـدای پـه عقـل او زړۀ کې ځای لري، یعنې خدای د هر سړي په زړۀ کې وجود لري، نه په کلیسا کې. کلیسا د خدای کور نه دی، بلکه د خدای گور دی.

مور ویده شوه او د ربین په تگ خبره نشوه.

ربین تر دې وروسته تل د پاول و کور ته راتلئ. ربین به په یوۀ کونج کې ناســـت و، لږ خبرې به یې کولې، کله کله به یې د نورو د خبرو په وخت کې دا پوښتنه کوله:

- بلې، همدا ډول!

یوه ورځ دۀ په خپلو تورو سترگو سره نورو ته کتل او ویې ویل:

- موږ باید د موجودو جریاناتو په باب وغږېږو، په راتلونکو حالاتو باندې بحـث ونـه کړو. موږ نـه پوهېږو چې د دوی راتلونکې بـه څنگـه وي. کلـه چې خلکو خپلو آزادي حاصله کړه، نو کولای شي دا ځان ته معلومه کړي، چې څه

شي ته اړ دی. دوی په خپلو سرو کې د تفکر ډېر ځواک لري، خو په دې شرط چې دوی ته د فکر کولو موقع ورکړای شي. ښايي، دا چې دوی د علم په شمول د ژوند ټول شیان رد کړي. ښايي یوه شي چې هر شی د دوی پر ضد واقع دي. حتماً به دوی دا درک کړي چې د کلیسا خدای د دوی دښمن دی. تاسې صرف د هغوی پـه لاس کې کتـابونـه ورکړي او پرېږدئ چې دوی پـه خپلـه ځواب ولټوي.

کلـه چې بـه پاول او ربین یوازې وو، نو خورا اوږدې خبرې به یې شروع کولې. امـا هېڅکلـه بـه یې د مزاج صـــحـت له لاســـه نه ورکاوۀ. مور به په ډېره ناارامۍ او غم سره غوږ نیولی و او کوښـښ به یې کاوۀ چې د دوی په خبرو پوه شي. کله کله به دې دا حس کړه، چې پاول او ربین دواړه ړاندۀ شوي دي. دوی یوې خوا بلې خوا تـه د وتلو لار لټوي، یوه شي بل شي ته په پټو ســـترګو خپل ځواکمن لاســـونـه اچوي، څنـډې یې، د یوه ځـای نـه یې بل ځای ته وړي، پر ځمکه یې غورځوي او په پښو یې وهي. پر هر شي باندې لاس وهي او له ځانه یې بېرته لیري غورځوي، مګر باور او ایمان د لاسه نه ورکوي.

مور د دوی د ډېرو کلمو سره عادي شوه او د پخوا په شان به یې بد تاثیر نه ورباندې کاوۀ. کله کله به یې د هغو الفاظو تر شا چې د خدای د وجود څخه یې انکار کاوۀ، په هماغه خدای د پاول او ربین کلک ایمان احســاســاوۀ. نو په دې شیبه به یې سپکه او بخښونکې موسکا کوله. که څه هم ربین دې ته ګران نه و، خو د هغۀ سره یې سخته دښمني هم نه حسوله.

هره اونۍ به دې پاک کالي او کتابونه د خوخول لپاره جېل ته ور وړل. یو وار یې دې ته اجازه ورکړه چې دی وویني. کله چې بېرته راغله، نو یې وویل:

- خوخول یوه ذره هم فرق نـه و کړی. دی لـه هر چـا سره ډېر مهربان و، ټولو ټوکې او ټکـالې ورسره کولې، هلتـه دهٔ تـه ډېره ســخته تماميږي، مگر دی چاته نه وايي.

ربين په تائيد سره وويل:

- همداســې پکار ده. غم موږ پوښــلي يو او موږ د هغهٔ په دننه کې ژوند کوو. په ژوند کې د صـفت ځای نلرو، د ټولو خلکو پر سـترگو خو پردې نه دي پرتې. مگر ځينو خلکو سترگې بې ځايه پټې کړي دي. موږ ډېر بې مغزه خلک يو، د ظلم او ســتم په مقابل کې هېڅ لاس او پښــې نه وهو، بلکه هغه پهٔ پراخه سينه زغمو.

## «۱۲»

د کارگرو په محله کې د ولاسوف کوچني کور د ډېر خلکو توجه ورخپله کړه. دا توجه په بدگمانۍ او دښمنۍ سره لړلې وه، مگر سره له هغه هم يوه اندازه د باور وړ د پلټني حس هم پيدا شوی وو. کله-کله به د پاول کور ته کوم بېگانه سړی راتلهٔ:

- وروره، تا خو کتابونه لوستلي دي، په حقوقي مسئلو ښه پوهېږې، په دې برخه کې لږ معلومات راکړه...

پاول ته به يې ځينې قضيې بيان کولې، دا قضيې تر هر څه ډېرې د پوليسو د اعمالو او د فـابريکې د جريـانـاتو پـه بـاره کې وې. کله چې به کومه ســخته موضــوع راغله، نو پاول به هغه ته يو ليک ورکاوهٔ او هغه به يې يوه آشــنا قانون

پوه تـه تر ښــاره ليږل. پـه هغو مســئلو چې به په خپله پاول پوهېدۀ، د هغو ټول اطراف او اکناف به يې بيانول.

ورو-ورو خلکو پر دغه ځوان باندې چې په خورا ســاده الفاظو او ډېري مېړاني سره بـه يې خبرې کولې، اعتماد پيـدا کړ. ټولو خلکو دۀ تـه ډېر احترام درلود. دۀ په خپله د هر يوۀ خبرو ته ښه په غور سره غوږ نيول. پاول به تل په دې هڅه کې و، چې يو داســې پياوړی پېری پيدا کړي چې په هغه سره ټول ملګري راټول او د اتحاد لپاره يې وتړي.

پاول د «د جبه زار د کوپيک باج» په پېښه ډېر شهرت پيدا کړی و.

د فابريکې و شا ته يو لوی جبه زار و چې شاوخوا ته يې ونې ولاړې وې، ځينې نـاولي ډنـډونـه يې هم درلودل. پـه دوبي کې بـه دغو ډنډونو ډېر بد بوی کاوۀ او د اوريځو په څېر به يې د غوماشـــو ســېلونه د کارګرو د محلې و خواته استول. د خلکو د ناروغۍ ســبب هم دغه ډنډونه وو. دغه جبه زار په فابريکې پورې اړه درلوده. د فـابريکې نوي رئيس غوښــتل چې د دغه جبه زارو ډنډونه وچ او ځمکـه يې د خپلې فايدې لپاره اســتعمال کړي. رئيس صــاحب د دغه ځای د وچولو د مصرف په برخه کې داسې امر وکړ:

فـابريکـه غواړي چې د خپلو کارګرو روغتيا او ســلامتي وســاتي، نو له همدې کبله فابريکې تصميم نيولی دی چې دغه ډنډونه وچ کړي. په دې اساس د هغه د مصـــرف پيسې له کارګرو څخه واخلي. اوس نو زه امر کوم چې د هر کارګر د يو روبل څخه دې يو کوپيک وضع شي.

ټول کارگران د دې پرېکړې څخه خوښــه شــول او د دوی ولولې او خفگان هغه وخت لا ډېر شو چې د فابریکې اداري هئیت د ډېرو پیسو خاوندان د دې باج څخه معاف کړي وو.

پاول د شنبې په ورځ ناروغه او په کور کې پاتې شوی و، په همدغه ورځ رئیس د کوپېک د وضع کولو موضوع اعلان کړې وه. په دې ترتیب پاول د هغه په باره کې هېڅ معلومات نه درلودل. په دغه بله ورځ سیزوف چې یو معزز سړی و او ســوهان کار ماخوتین چې یو جگ او دردمند ســړی و، د پاول و کور ته ورغلل او د رئیس د پریکړې په باره کې یې دهٔ ته معلومات ورکړل.

سیزوف وویل:

- موږ ټول ســپین ږیري سره راټول شــوو، په دې باب مو خبرې وکړې، وروسته مو پریکړه وکړه چې تا ته د یوهٔ هوښیار او پوه په توگه راشو چې موږ ته یوه لار راوښـیې. آیا داسـې قانون موجود دی چې رئیس صـاحب دي زموږ په پیسو د غوماشو سره مجادله وکړي؟

د ماخوتین کوچنۍ سترگې وبرېښیدلې او ویې ویل:

- دا مو هم در په یاد کړئ، څلور کاله پخوا دغو غولوونکو زموږ څخه د حمام د جوړولو لپاره پیسـې ټولې کړې، ټولې پیسـې درې زره او اتهٔ سوه روبله شوې! مگر تراوسه پورې نه دوی معلومیږي او نه یې حمام!

پاول د کوپېک وضـع کول د عدالت څخه لیرې وبلل او خلکو ته یې دا څرگنـده کړه چې د جبـه زارو وچول پخپلـه د فابریکې لپاره ډېره گټه لري. کله چې دواړه ســپین ږیري د کور څخه ووتل، مور دوی ولیدل چې د باندې لاړل، نو تر یوې خندا وروسته یې وویل:

- اوس سپين ږيري خلک هم ستا د مشورې او ليدلو لپاره راځي.

بې له دې چې ځواب ورکړي، پاول مېز ته کېناسـت او په ليکلو يې پيل وکړ. څو دقيقو وروسته يې مور ته وويل:

- مورې، له تا يوه هيله کوم چې لطفاً يو ځل ښار ته لاړه شه او دغه ليک هم د ځان سره يوسه...

مور وپوښتل:

- دا ليک خو خطرناک نه دی؟

- خطرناک دی. زه تا هغه ځای ته ليږم چې هلته ورځپاڼې خپريږي. موږ مجبور يو چې دغـه د کوپيک د وضـع کولو موضـوع په هره بيه چې وي، په راتلونکي نشريه کې خپره کړو.

مور وويل:

- ډېر ښۀ، زه به لاړه شم.

دا لومړی ځل و چې پاول مور ته يو ډول کار ورسپارۀ. مور ډېره خوشاله شوه ځکه پاول دې ته د حقيقت په باره کې سپينه خبره وکړه.

مور په داسې حال کې چې کالي يې اغوستل، وويل:

- پاوله، زه پوه شوم. دا بالکل د خلکو د حق غصبول دي او وايه چې د هغه سړي نوم څه شی دی؟ ايگور ايوانوويچ؟

مور د شـپې نـاوختـه راغلـه، ډېره سـتومانه وه، مگر بې حده خوشـاله معلومېده.

دې خپل زوی ته وويل:

- ما ساشېنکه ولیده، دې خپل احترام او سلام تا ته لیږۀ. ایگور ایوانوویچ ډېر خوشاله او شریف سړی دی. ډېر ټوکمار دی.

پاول په نرمۍ وویل:

- خوشاله یم چې دوی ستا خوښ شول.

- پاوله، دوی ډېر عادي او ساده خلک دي، هېڅ لویي او تکبر نلري. دوی تاته ډېر - ډېر احترام لري...

په دوشنبه پاول بیا هم په کور کې پاتې شو، ځکه چې تراوسه پورې له ناروغۍ لا ښه نه و جوړ شوی. د غرمې خوا ته فیودور مازین ورته راغی، ډېر خوښ، مضطرب او د تلوار نه ستړی ښکاریدۀ او پاول ته یې وویل:

- راځه چې ځو. ټولې فابریکې اعتصاب کړی دی. دوی زه په تا پسې راولیږلم. سیزوف او ماخوتین وایي چې دی تر هر چا ښې خبرې کولای شي. ته باید ووینې چې هلته څه پېښیږي.

پاول بې له دې چې څه ووایي، کالي یې واغوستل.

- د ښځو ډلې هم راوتلې وې، شور او غالمغال یې ډېر شو.

مور وویل:

- زه هم ځم، زویه دوی هلته په څه کار لاس پورې کړی دی؟ زه هم ځم!

- په مورږ پسې راځه. – پاول وویل.

دوی په بیړه او پټه خوله سره کوڅه کې روان وو. مور په ډېره سختۍ او حیرانتیا سره ساه کښله. دې فکر کاوۀ چې اوس به څومره لوی او مهم شی واقع شي. د فابریکې په خوله کې ښځې ډلې-ډلې ولاړې وې او نارې یې وهلې. کله چې دوی درې واړه د فابریکې د ورۀ څخه تېر شول، هلته ډېر ژر د خلکو د

یوې لویي ډلي پـه منځ کې چې ډېر پـه ولولو راغلي وو، ننوتل. مور ولیدل چې ټول خلـک د اوبـدلو پـه برخه کې د ســیزوف، ویالوف، ماخوتین او څو نورو مشهورو کارګرو پر شاوخوا چې پر یوه لوړه کوټه ولاړ وو، راګرځېدلي دي.

یوه نارې کړې:

- ولاسوف را روان دی!

- ولاسوف؟ پرېږدئ چې دلته راشي.

ډېر خلکو نارې کړې:

- چوپ شئ!

د یوه ځای څخه د ربین غږ واورېدل شو:

- موږ د کوپېک لپاره نه جنګېږو، موږ د حق او عدالت لپاره راولاړ شوي یو. دغـه دی حقیقـت! پر موږ دغه خپل کوپېک تر نورو ډېر ګران دی، موږ ته کوپېک ډېر قیمت نه لري، بلکه د انسـان د وینو زبېښل او د عدالت عملي کول ډېر اهمیت لري.

دا غږ د خلګو پـه منځ کې خپور شـــو او دوی یې پـه ډېر بیړه پـه ولولو راوستل.

غږونه پورته شول:

- ربین حقیقت وایي!

- ډېرې ښې خبرې دې وکړې!

- ولاسوف راغی!

د خلکو آوازونه او زوږ سره یو ځای شـول. د بخار د ماشینونو غږ په کې ورک شـو. خلک به د هرې خوا څخه راتلل، لاسونه به یې ښورول او نور به یې

په احساساتو او ولولو سره راوستل، په ټولو ستومانو سینو کې د نه رضایت پلوشې بلې شوي وې او د وتلو لار یې غوښتله. دې تورې هوا خپل وزرونه پراخه کول او خلک یې سره راټولول، دوی یې ډېر سره رانژدې کړل او د دوی د نه رضایت شغلې په یوې داسې لمبې سره دوی واړول چې خلک یې د غچ اخیستلو لپاره تیار کړل. د دوی له خولو ډک مخونه په ولولو سره بریښېدل، بارخوګان یې په خولو پټ وو، په تاریکو مخونو کې سترګو او غاښونو برېښنا کوله.

چېرې چې سیزوف او ماخوتین ولاړ وو، پاول هم راغی او په لوړ غږ یې ناري کړې:

- ملګرو!

مور ولیدل چې د زوی مخ څومره تک ژیړ شوی دی، د دې د زوی شونډې ښوریدلې او مور په غیر ارادي ډول سره مخ په وړاندې تله او خلک به یې یوې خوا بلې خوا ته پورې وهل.

دوی به په ډېر غضب سره و دې ته ویل:

- ټېله بس کړه!

دا هم په خپل نوبت سره ټېله کېدله، مګر دې د نورو د ټېلو په مقابل کې هېڅ مقاومت نه شوای کولای. دې خپل ځان په څنګلو او لاسو سره مخ په وړاندې رساوۀ او غوښتل یې چې خپل زوی ته ځان ورسوي.

کله چې پاول له عظمت او وحشت ډک الفاظ تلفظ کړل، دۀ دا حس کړه چې ستونی یې له خوشالۍ څخه جوت دی، دۀ خواهش درلود چې د خپل زړۀ احساسات خلکو ته څرګند کړي.

دۀ په ډېر ځواک او عظمت سره د «ملګرو»کلمه تکرار کړه او ويې ويل:

- موږ او تاسې هغه خلک يو چې فابريکې او کليساوې جوړوو. موږ ماشينونه يو چې د تزار، شتمنو او روحانيونو لپاره مانۍ جوړوو. د خپلو ځانونو د تړلو لپاره ځنځيرونه توليدوو. موږ هغوی ته پيسې ور ډېروو چې په هغو سره موږ دغه ځناوران رانيسي. موږ هغه ژوندی او انساني ځواک يو چې هر موجود د زانګو څخه بيا تر ګوره پورې زموږ په زور ژوند کوي...

ربين ناري کړې:

- څه چې وايي ټول حقيقت دی!

- موږ هغه کسانو يو چې تل د وطن د آبادۍ او ترقۍ لپاره قرباني ورکوو او هېڅوک زموږ ژوند ته د دې قربانۍ سره-سره هېڅ اهميت نه ورکوي. دغه ټولنه زموږ پالنه خو لا څۀ، بلکه زموږ د ذهنو د وژلو هڅه کوي، آيا په دې ټول عمر کې کوم زمامدار زموږ د خوشالۍ لپاره خورا کوچنی اقدام هم کړی دی؟! آيا تراوسه پورې کوم سړي موږ ته د انسان اهميت راکړی دی او د قدر په سترګه يې راته کتلي دي؟ هېڅ!

غږ په هوا کې واوريدل شو:

- هېڅ!

پاول په ډېرې آرامۍ سره ساده خبرې پيل کړې. د خلګو ډله ورو ورو سره نژدې کېدۀ او داسې واحد جسم يې چې هغه ډېر سرونه درلودل، تشکيل کړ. د دې جسم بې شمېره سترګې پاول ته نيول شوي وې او د هغه هر لغت ته يې په ډېر غور سره غوږ نيولی و.

پاول خبرو ته په دې ډول ادامه ورکړه:

- تر څو چې موږ د یووالي لاسونه سره ورنکړو، هېڅکله به د ښهٔ ژوند او نېکمرغۍ خاوندان نشـو. موږ باید یو واحده کورنۍ جوړه کړو او د دې کورنۍ هر غړی بـاید د یوه ګډ هدف لپاره چې هغه عبارت د عدالت څخه دی، جګړه وکړي.

یوهٔ سړي په خورا درونډ آواز سره چې د مور و خوا ته ولاړ و، وویل:

- اصلي مقصد ته راشه.

دوو غړونو چې د دوو مختلفو اړخو څخه اوریدل کېدل، وویل:

- په خبرو کې مه ورولوېږه.

له ســوچونو څخه ډک مخونه لیدل کېدل. ډېرو ســترګو د پاول خوا ته کتل. په دې وخت کې یوهٔ سړي وویل:

- سوسیالیست دی، احمق خو ندی!

یو جګ سړی چې د مور خوا ته ولاړ و، دا یې په اوږه سره وښوروله او ویې ویل:

- په ډېري مېړاني سره خبرې کوي!

- موږ بـایـد اوس پر خپـل ژونـد باندې پوه شــو. بې له موږ څخه به بل هېڅوک مرسته راسره ونکړي! موږ باید ټوله د یوهٔ او یو د ټولو لپاره شو. که موږ غواړو چې خپل دښـمنان له منځه یوسـو، نو زموږ د ژوند اصـلي قانون باید هم دغه ټکی وي.

ماخوتین خپل لاسونه پورته کړل او په هوا کې یې وښورول، ویې ویل:

- څه چې پاول وایي صحیح دي.

پاول خبرو ته دوام ورکړ او ویې ویل:

- رئیس دلته راولئ، یو پلاوی ورولیږئ.

د خلکو له منځه غږونه پورته شول:

- رئیس را وغواړئ!

- نمایندګان ورولیږئ!

مور بیخي د خپل زوی خوا ته ور نژدې شوله او په داسې حال کې چې له غرور څخه په کالیو کې نه ځاییدله، د هغهٔ مخ ته یې په ځیر سره وکتل. د دې زوی د زړو او معززو کسانو په منځ کې ولاړ و. دهٔ ته ټولو غوږ نیولی و او د دهٔ د هرې خبرې سره خلکو موافقت درلود. مور په دې خوشاله وه چې زوی یې د خبرو په وخت کې په قهر نه و او د نورو په څیر یې ښکنځل نه کول.

- نمایندګان!

- سیزوف!

- ولاسوف!

- ربین! د دهٔ غاښونه ډېر ویرونکی دی!

ناڅاپه یو غږ د خلګو له منځ څخه پورته شو:

- دی پخپله راروان دی، راځي!..

- رئیس!

خلکو یوه جګ سړي ته چې شناوی ږیره یې درلوده لار ورکړه. دهٔ خپل لاس ښوراوهٔ او کارګران یې د لارې څخه پورې وهل. په پای کې یې وویل:

- اجازه راکړئ!

د دهٔ سترګې خورا نرۍ - نرۍ وې، هر کارګر ته یې د یوه مجرب کارفرما په څېر کتل. خلکو خپلې خولۍ وکښلې او د احترام په توګه چوخ شول. رئیس

بې لـه دې چې د خلکو احترام قبول کړي، خلـک سره پورې وهل، د هغوی په منځ کې را روان و، د ډېرې وارخطايي څخه خلکو خندل. په آرامۍ يې د خپلې ګناه څخه توبه کښله.

دی د مور له څنګ څخه په داسې حال کې تېر شـو، چې دوې سترګې يې ورته نيولې وې. دی د اوسپنې د کوټې مخ ته ودريد، يوه سړي لاس ور اوږد کړ چې دی د کوټې سر ته ورپورته کړي، مګر دهٔ د هغه مرسته ونه منله او په يوه پياوړې حرکت سره د اوســپنې کوټې ته پورته شــو. د پاول او ســيزوف مخ ته ودريد او ويې پوښتل:

- دا څنګه اجتماع مو جوړه کړيده؟ تاسو ولې خپل کارونه پرېښودل؟

د څو ثـانيو لپـاره پوره ارامي شــوه او ټولو خلکو د يخ وهلو پاڼو په څېر سرونه ځړولي وو. سيزوف سر کښته واچاوهٔ. رئيس نارې کړې:

- زما د پوښتني ځواب راکړئ!

پـاول د رئيس مخ تـه راغی، پـه لوړ آواز سره پـه داســـې حـال کې چې سيزوف او ربين ته يې اشاره وکړه، وويل:

- موږ درې تنـه د خپلو ملګرو لخوا نماينده ګان ټاکل شــوي يو او موږ ستاسو څخه جداً غواړو چې تاسې د کوپيک د وضع کولو امر بېرته وګرځوئ...

رئيس بې له دې چې پاول ته وګوري، وويل:

- ولې؟

پاول په لوړ آواز سره وويل:

- ځکه موږ دغه کار د عدالت څخه لېرې ګڼو او هغه نه منو.

- آیا تاسې داسې فکر کوئ، چې زه دغه خندق د کارګرو د ژوند د ښه والي لپاره نه وچوم، بلکه د خپلې ګټې لپاره دا کار کوم؟ آیا تاسې دغه فکر لرئ؟

پاول ځواب ورکړ:

- بلې، هو!

رئیس و ربین ته مخ ورواړاوه، ویې ویل:

- ته هم دغه فکر لرئ؟

ربین وویل:

- موږ ټول دغه فکر کوو!

رئیس سیزوف ته مخ ورواړاوه، ویې ویل:

- او تاسې ښاغلی څه وایاست؟

دهٔ ورته وویل:

- هو، زه هم غواړم خواهش در څخه وکړم چې زموږ کوپیک راته پریږدئ.

سیزوف یو ځل بیا خپل سر کښته ونیو او د ملامتۍ په ډول یې تبسم وکړ.

رئیس شاوخوا ته وکتل او خپلې اوږې یې وښورولې. وروسته پاول ته ور وګرځید او په دقت سره یې ورته وکتل:

- زه داسې فکر کوم چې تاسو لږ پوهه او تعلیمات لرئ، آیا تاسې هم د دغو ډنډو د وچولو ګټې نشئ درک کولای؟

پاول په داسې لوړ آواز سره چې ټولو خلکو واوریدل، وویل:

- د ډنډو وچول هغه وخت کارګرو ته ګټه لري، چې د فابريکې په مصرف وچ شي.

رئيس په سړه او ماته خوا سره وويل:

- فابريکه کومه خيريه مؤسسه نه ده، زه تاسو ته امر کوم چې خپلو کارونو ته لاړ شئ. – دی په ډېر احتياط سره د اوسپنې د کوټې څخه راکښته شو، هېڅا ته يې نه کتل.

د خلکو د ناخوښۍ غږونه پورته شول.

رئيس پر خپل ځای ودريد او ويې ويل:

- دا څه شی دي؟

د لېرې ځای څخه غږ واوريدل شو چې ويل يې؟

- ته پخپله کار ته لاړ شه!

- که چېرې په ۱۵ دقيقو کې کار ته نشـــی لاړ، نو به امر وکړم چې تاسې ټول جريمه کړي. – رئيس وويل.

دهٔ بيا خپله لاره د خلکو په منځ کې جوړه کړه، مګر په دې وخت کې يو قهرجن زوږ پورته شو، هر څومره چې به دی مخ په وړاندې تلهٔ، په هماغه اندازه به هم دغه زوږ پياوړی کېدهٔ.

- دا دی خبرې ورسره وکړئ!

- دا د دوی عدالت دی! دا څنګه ژوند دی!

د خلکو مخونه پاول ته وروګرځېدل او نارې يې کړې:

- اې، قانون دانه، وwايه موږ اوس بايد څه وکړو؟

- تراوسه دې خبرې کولې او دا دی رئيس راغی، پر ټولو يې خط وکيښ!

- ولاسوفه، اوس نو ووایه چې موږ باید څه وکړو؟

کله چې د خلکو آوازونه په منظم ډول سره لوړېدل، پاول په لوړ آواز وویل:

- ملگرو، زه تاسو ته پېشنهاد کوم چې تر هغې د خپلو کارونو څخه لاس وکاږئ، تر څو چې دوی د کوپېک وضع کولو څخه تېر شوي نه وي.!

د خلکو له منځه آوازونه پورته شول:

- آیا موږ دې یوه ډله احمقان په نظر درغلي یو؟

- ستا هدف اعتصاب دی؟

- آیا دا اعتصاب د یوه کوپېک په خاطر ارزي؟

- اعتصاب څه تاوان لري؟

- ښايي موږ ټول د فابریکې څخه وباسي!

- آیا څوک به د دوی لپاره کار وکړي؟

- دوی به ډېر خلک زموږ په ځېر پیدا کړي!

- هغه به پست او بې غیرته وي!

## «۱۳»

پاول له اوسپنیزې کوټې راکښته شو او د خپلې مور څنگ ته ودرید.

د خلگو ټولي ډلي پارول شـوي وې، ټولو یو د بل سره مباحثه کوله او په ډېرو ولولو او احساساتو سره به یې نارې وهلې.

ربین پاول ته راغی او ویې ویل:

- دوی به هېڅکله اعتصاب ونه کړي. دوی له یوې خوا حریص او ډېر د پیسـو مینان دي او د بلې خوا ډېر ډارن دي. ښـایي درې سـوه تنه به په تا پسـې ودرېږي.

پاول پټه خوله ولاړ و. د خلګو لویه او تروه بڼه د دهٔ تر سترګو ګرځېدله. دهٔ تـه دا معلومـه شــوه، چې د دهٔ ویناوې بې له کوم تاثیره لاړې. د دهٔ خبرې د هغه باران د څاڅکو په شان وې، لکه په تروه ځمکه کې چې لوېدلي وي.

دی خورا ستړی او په ډېره پرېشانۍ سره کور ته روان شو. مور او سیزوف پـه پـاول پســې روان وو. پر اړخ یې ربین روان و او پـه غوږو کې یې څـه ورته وویل:

- ته ښې خبرې کوې، مګر په زړونو کوم تاثیر نه اچوي، ته باید د خلکو د زړونو خبرې وکړې. څو د دوی په زړو کې اور بل شي، دوی په منطق او دلیل سره نه قانع کېږي. بوټ پر پښه برابر نه دی، ډېر تنګ او نرۍ ښکاري.

سیزوف مور ته وویل:

- زموږ پښــه اوس د ګور غاړې ته رارســیدلې ده او نوي ځوانان منځ ته راغلي دي. تراوسه پورې مو څه ډول ژوند تېراوهٔ؟ موږ پر خپلو زنګنو لوېدلي او سر به مو ځمکې ته ټیټ کړی و. مګر زه اوس نه پوهېږم ښــایي چې خلک پر هوښ راغلي وي. دوی زموږ پـه څېر نـه دي، تـه دې ځوانـانو او پوهه خلکو ته وګوره.دوی رئیس ته داسې خبرې کولې لکه دوی او هغه چې سره برابر وي. په مخه دې ښـــــه، پاول میخائیلوویچ، تر بیا لیدو! وروره، دا ښــه کار دی چې د خلکو لپاره کار کوې. ښایي چې خدای مرسته درسره وکړي، ښایي، چې د دې زحمتو تر ګاللو وروسته یوه لاره پیدا کړې، خدای دې مل شه!

په همدې وخت کې سيزوف پر خپله لار باندې روان شو.

ربين وويل:

- مخ تـه ځي او مري! دا څنگـه خلک دي؟ دوی اصـــلاً خلک نه دي، بلکـه د خلکو د اوږو بـار دي. پاوله، ودې ليدل چې ســتا د نمايندگۍ لپاره چا نارې وهلې، دا هغه کسان وو، چې ته يې سوسياليست او اخلال کوونکی گڼلې. حقيقتاً دوی وو! دوی فکر کاوۀ چې تا به له دې ځای نه وشــړي او خپل پر لار به ځي.

پاول وويل:

- دوی هم حق په جانب دي!

ربين ورغبرگه کړه:

- شرمښان هم په هغه وخت کې چې خپل ورونه ټوټه - ټوټه کوي، خپل ځانونه مستحق بولي.

د ربين مخ غمجن و او آواز يې غير عادي شکل درلود.

- خلک خالي الفا ظ منلای نـــــشيـ، تکليف په کار دی. الفاظ بايد په وينو ومينځل شي.

د پـاول ټولـه ورځ سرگردانـه او ســتومـانه وه، ځکه چې ډېر تکليف يې ليدلی و. ســترگې يې ســوځيدلې او داســې معلوميده لکه د کوم شي په لټه کې چې وي. مور د زوی په دې حالت پوه شوه او په احتياط سره يې وپوښتل:

- پاوله، زويه څه خبره ده؟

- سر مې لږ درد کوي!

- ته استراحت وکړه، زه به ډاکټر ته ور غږ کړم.

دهٔ په تلوار سره ځواب ورکړ:

- مورې، ضرور نه ده چې تکلیف وکاږې.

وروسته یې په ادامه زیاته کړه:

- زه لا تراوسه پورې ځوان او کمزوری یم! دوی پر ما باور ونه کړ، دوی ریښتیا ته غوږ ونهٔ نیوهٔ او ما پسې نه لاړل. دا د دې مفهوم لري چې ما ونه کړای شول هغوی ته خپله ریښتیا په عام فهمه توګه تعریف کړم. دا زما لپاره د خفګان ځای دی او له خپل ځان څخه ډېر سخت کرکجن یم.

مور د دهٔ و مخ ته متوجه شوله او کوښښ یې کاوهٔ چې دی لږ څه آرام کړي:

- صبر وکړه. دوی که نن پوه نشول، سبا به پوه شي!

- باید پوه شي.

مور په حیرت وویل:

- حتی ما هم دا درک کړه چې ته پر حقه لار وې.

پاول راوګرځید او ویې ویل:

- ته، مورې، ډېره ښه ښځه یې!

مور د پاول په آرامو خبرو سره یو شی احساس کړ، خپل لاس یې زړهٔ ته نژدې کړ او ووتله تر څو چې د دهٔ مهرباني په زړهٔ کې وساتي.

د شپې لخوا هغه وخت چې مور ویده وه او پاول په داسې حال کې چې په بستره باندې پروت و او کتاب یې لوست، ژاندارم کور ته ورغلل او په پلټنه یې پیل وکړ. حتی د کور په بام او انګړ کې یې هم پلټنه وکړه. ژړمخي منصبدار د پخوا پـه شـــان ســـلوک درلود، د ځورولو او ملنـډو وهلو څخـه بـه یې خوند

اخیستی. مور پټه خوله په یوه کونج کې ناسته وه او د خپل زوی مخ ته یې سترګې نیولې وې. دهٔ، کوښښ کاوهٔ چې د منصبدار څخه خپل تشویش پټ کړي، مګر کله چې به منصبدار ملنډې وهلې، لاسونه به یې ریږدیدل. مور دا احساسوله چې زوی یې په ډېر زحمت سره د ژاندارم ملنډې زغمي. نن شپه مور د اولې شپې په څېر نه وېریدله. د مور کرکه د دې نیمې شپې د میلمنو په حق کې پیدا شوه او همدغه کرکه و چې د مور وېره یې کموله.

پاول غلي مور ته وویل:

- دوی ما هم بندي کوي.

دې خپل سر ټیټ کړ او په نرمۍ یې وویل:

- زه پوهېږم...

مور پوهېده چې دوی به پاول په جېل کې واچوي، ځکه چې دهٔ نن کارګرانو ته وینا کړې وه. څرنګه چې ټول د دهٔ له مفکورې سره موافق وو، نو ښایي دوی د دهٔ د دفاع لپاره راپورته شي او دومره مېړانه ونه کړي چې ډېر وخت یې په جېل کې وساتي.

مور غوښتل چې خپلې متې پر زوی باندې راوګرځوي او وژاړي مګر منصبدار د دې څنګ ته ولاړ و او په کوچنیو سترګو یې دې ته وکتل. د دهٔ برېتونه غورځېدل او شونډې یې ښورېدلې او داسې معلومېده چې دی د دې شکایت او اوښکو ته په تمه دی. دې خپل ټول واک راټول کړ او د خپل زوی لاس یې ونیو، په نرمۍ او سوي ساه سره یې وویل:

- پاوله، په مخه دې ښه، څه چې دې په کار و، د ځان سره دې واخیستل؟

- هوکې، مورې، خپل زړهٔ د لاسه مه ورکوه...

- ځه زویه، خدای دې مل شه.

وروســـته له دې چې دوی پاول د کور څخه وایســـت، مور پر یوه اوږده څوکۍ کېناســـتله او ورو-ورو یې ســـاندې شروع کړې. دې د خپل مېړه په شـــان دېوال ته شـــا وګرځوله، خپل سر یې شـــاته وغورځاوۀ او یوه اوږده او ټیټه کوکه یې وکړه. پـــه همـــدې کوکـــه سره یې د خپـــل ټپي زړه درد لېرې کړي، مګر دې اوس هم د هغه ژېړمخي منصبدار چې د یوه مصنوعي ماسک په څېر و، په باب فکر کاوۀ او وار په وار د هغه په باب د دې دښمني ډېریدله.

دې فکر وکړ: «کاشکې زه هم دوی نیولې وای!»

د فابریکې توله ووهل شوه او خلک یې د کار لپاره وبلل. د فابریکې غږ د پخوا په شـــان نن ورځ د هیبت څخه ډک نه و. په همدې وخت کې د کور ور خلاص شـــو او ربین راننووت. دۀ په داســـې حال کې چې له خپلې بږیرې یې د باران څاڅکي شړل، وپوښتل:

- پاول یې ونیو؟

مور یو اسوېلی وکړ او ویې ویل:

- بلې، هغه دوی رذیلانو بوتلئ.

دۀ تر خندا وروسته وویل:

- هو... دوی زمـــا کور تـــه هم راغلي وو، هر څـــه یې چېـــک کړل، لږ یې وځورولم، خو ډېر تکلیف یې رانه کړئ. مګر دا دی پاول یې بندي کړ! د رئیس په یوه ســـترګک سره ټول ژاندارم حاضر دي چې خلک د منځه یوسي. دوی په ګډه خپل ظالمانه کار په ښـــۀ توګه سره کوي. ځینې د دوی څخه عام خلک تر ښکرو نیسي او نور یې وچ لوشي.

مور ولاړه شوه او نارې يې کړې:

- تاسې بايد په پاول پسې ودرېږئ. پاول ستاسو ټولو لپاره دا کار کړی دی.

- څوک بايد ودرېږي؟

- ټوله!

هام... دا هغه شی دی چې ته داسې فکر کوې، مگر هېڅکله به داسې ونه شي.

ربين په خندا سره ووت او د دهٔ د نااميدۍ ډک الفاظ د مور د ډېر غم او خواشينۍ سبب شول.

«آه، که دوی پاول ووهي او د سختې شکنجې لاندې يې ونيسي؟..»

مور ځان ته د زوی وهل شوی، زخمي او په وينو لړلی بدن تصور کړ او له ډاره يې زړهٔ په ټوپونو شو.

په دغه ورځ يې بخارۍ ونه لگوله، د غرمې ډوډۍ يې ونه خوړله، حتی چای يې هم ونه چښئ. د شپې يې يوه ډوډۍ وخوړله او وروسته بسترې ته لاړه، دې دا فکر کاوهٔ چې په ټول ژوند کې دغسې يوازيتوب وربانديې نه و راغلی. په وروستيو څو کالونو کې دې عادت نيولی و، چې د يوې ټاکلې او ښې هيلې لپاره کار وکړي. د مور گردچاپېره به تل ځوانانو شور جوړ کړی و او تل به يې مخ ته د زوی جدي څېره ولاړه وه، ځکه چې دهٔ دغه ډول له اندېښنې او نيکمرغۍ نه ډک ژوند جوړ کړی و. مگر اوس چې پاول بندي شوی دی، ټول شيان د هغه سره لاړل.

«۱۴»

دا ورځ او ناآرامه شــپه په څنګ تېره شــوه، راتلونکي ورځ له دې نه هم په ډېر څنګ تېره شـــوه. مور د کوم چا د راتګ په تمه وه، مګر هېڅوک رانغی. په مازدیګر پسې شپه راغله، یو سوړ باران اورید او څاڅکي یې د کړکۍ پر مخ په خورا لوړ آواز سره لوېدل، باد د خونې په دود کش کې کښــهار جوړ کړی و، د خونې تر غولي لاندې کوم شي شورماشور کاوۀ. د باران څاڅکي له بامه لویدل او د هغه د لوېدلو غمجن غږ په عجیب ډول سره د ســاعت د عقربې له غږ سره یو ځای کېدۀ. داسې معلومېده لکه چې ټول کور ښور خوري. د کور ټول شیان بېکاره او مړۀ ښکارېدل.

کوم سړي یو وار کړکۍ وټکوله او بیا یې هم تکرار کړه. مور د پخوا نه د دې ټـک-ټـک سره عـادت کړی و او د هغې څخـه یې وېره نـه درلوده. په دې وخـت د دې پـه زړه کې لږ څـه خوشـــالي ور پیدا شـــوه. د دې پیاوړو هیلو او امیـدونو دا پر پښـــو ولاړه کړه، یو شـــال یې پر اوږو واچاوۀ، د کور دروازې ته ورغله او هغه یې خلاصه کړه...

ســـمایلوف دننه راغی او یو بل ســـړی چې مخ یې د بالاپوښ د کالر په واسـطه پټ کړی و، په دۀ پسې دننه شو. سمایلوف بې له دې چې سلام وکړي، وویل:

- آیا موږ ته له خوبه وویستلې؟

د دۀ څېرې تر پخوا ډېر فرق درلود، یعنې غمجن او تریو و. مور ودریده او دوی ته یې ځواب ورکړ:

- زه وېده نه وم.

د سـمايلوف ملګري په ډېرې سختۍ سره ساه کښله، کله چې يې خولۍ وکښله نو خپل پنډ او لنډ لاس يې و مور ته د سلام لپاره اوږد کړ:

- مورې، ستړي مه شې! زه دې نه وپېژندلم؟

دهٔ دغه پوښتنه داسې وکړه لکه يو زوړ ملګری او آشنا چې يې وي.

- دا ته نه يې؟- مور په خوشالۍ وويل. – ته ايګور ايوانوويچ يې؟

- هو پخپله زه يم. – دهٔ خپل لوی سر د اوږدو ويښتانو سره ټيټ کړ. د دهٔ خولـه د خنـدا ډکـه وه او په ډېر لطف او مرحمت سره يې مور ته کتل. دی عيناً لکه يو سـماوار داسـې و. کوچنۍ او پنډه غاړه يې درلوده، لاسونه يې لنډ وو. د دهٔ مخ ځليدهٔ او په ډېر تکليف يې سـاه کښله لکه کوم شي چې يې په سينه کې غږ کوئ.

مور وويل:

- تاسې کوټې ته درځئ، زه به کالي بدل کړم.

سمايلوف په ډېره انديښنه سره په داسې حال کې چې د سترګو تر کونجو يې مور ته کتل، وويل:

- مورې ستا سره کار لرو.

ايګور ايوانوويچ کوټې تـه لاړ او د هغـه ځـای ښځـه يې خبرې شروع کړې.

- نن سهار نيکولای ايوانوويچ د جېل څخه خلاص شو.

مور د دهٔ په خبرو کې ورولويدله، ويې ويل:

- زه خبره نه وم، چې دی په جېل کې دی.

- دی د دوو میاشتو او یوولسو ورځو لپاره بندي وو. هغه خوخول لیدلی و او تا ته یې سـلام وایهٔ. همدارنگه د پاول سره یې هم لیدلي وو. هغه له سـلام وروسـتـه لـه تا څخه هیله کړې وه، چې خپل ځان غمجن نه کړې. دی غواړي چې ته پوه شې، هر څوک چې په یوه لار کې پښه ږدي، د هغې په انتخاب کې ډاډه وي، نو هغوی هرومرو دا د جېل رخصـتي چې د سرکار په پوره تفکر سره تضـمین شـویده، مني. مورې، زه اوس غواړم خپل اصلي مطلب ته راشم. آیا نه پوهیږې چې پرون ورځ یې څومره نور کسان په جېل کې اچولي دي؟

مور په ولولو سره وویل:

- آیا له پاول ور هاخوا نور هم...

ایگور ایوانوویچ په نرمۍ سره د دې د خبرو په منځ کې ورولوېد او ویې ویل:

- پـاول نهـه څلوېښـتم کس و، چې جېـل ته یې ولیږهٔ. د فابریکې اداره کوښښ کوي چې ډېر نور کسان هم ونیسي. د سمایلوف په اړه ویلای شو چې دوی د دغه ښاغلي د نیولو په هڅه کې هم دي.

سمایلوف په تروهٔ تندي سره وویل:

- هو، دوی غواړي چې ما هم بندي کړي.

مور حس کړه چې زړهٔ یې لږ آرام شو...

فکر یې کاوهٔ: «معلومیږي چې پاول په جېل کې یوازې نه دی»

کله چې مور کالي بدل کړل، نو کوټې ته ننوتله او میلمنو ته یې د خوښۍ موسکا وکړه.

- دا چې دومره خلک يې بنديان کړي دي، موږ ويلای شو چې د دوی د بند دوره به ډېره اوږده نه وي.

ايگور ايوانوويچ وويل:

- بېشکه دوی دومره خلک د ډېر وخت لپاره نه شي بنديانولای. که موږ د دوی دغه تظاهر له منځه يوسو، نو دوی به مجبور شي چې خپله لکۍ د پښو په منځ کې وځړوي. زموږ اصلي خبره دلته ده: که موږ د نشريو ويشل په فابريکه کې بس کړو، نو حتماً به دوی دغه کار يوازې په پاول او د هغه په ملگرو پورې وتړي او هغه به ډېر سخت تر شکنجې لاندې ونيسي.

مور په لړزانده آواز سره وويل:

- ستاسو مقصد څه شی دی؟

ايگور ايوانوويچ په نرمۍ سره وويل:

- همدغه ټکی د پاول د عذاب لپاره کافي دی. دا بايد تاته معلومه وي چې پوليس هم کله کله د منطق او عقل څخه کار اخلي. ته په خپله فکر وکړه کله چې پاول آزاد و، په فابريکه کې پاڼې پيدا کيدلې، مگر اوس چې دی بندي شوی، پاڼې هم ورکې شوې، حتماً دغه پاڼې دهٔ ويشلې، آيا داسې نه ده؟ په دې ترتيب به دوی د نورو خلکو څخه په دې برخه کې معلومات حاصل کړي. ژاندارم دا عادت لري کله چې يو سړی په لاس ورشي، نو هغه دومره زبيښي، تر څو چې يوازې هډوکي يې پاتې شي.

مور په غمجنۍ سره وويل:

- زه پوه شولم. زما د سترگو توره! موږ په دې برخه کې څه کولای شو؟

د سمايلوف غږ د پخلنځي څخه واوريدل شو:

- دوی خپل لېونتوب را اخیستی دی، تقریباً ټول خلک یې بندیان کړل. موږ باید نشـــریاتو ته نه یوازې د خپل کار مخ ته بېولو په خاطر، بلکه د ملګرو سره د کمک کولو په خاطر هم دوام ورکړو.

ایګور په خندا سره ور زیاته کړه:

- د دې کار لپاره هېڅوک نه دي پاتې شـوي. موږ ډېرې ښې لیکنې چې ټولې زما د لاس کار دی، لرو. مګر ستونزه دا ده چې په څه ډول سره به موږ دغه پاڼې په فابریکه کې ویشو.

سمایلوف وویل:

- دوی هر سړی د فابریکې په خوله کې تلاشي کوي.

مور په دې وپوهېده چې دوی د دې څخه د کوم کار د ترسره کولو هیله لري. په چټکۍ سره یې پوښتنه وکړه:

- نو، باید څه وکړو؟

سمایلوف په دروازه کې ودرید او ویې ویل:

- مورې، ته د کورسونووا دستګردانې سره څه اشنایي لري؟

- هو، مګر د هغې نه مو مقصد څه دی؟

- د دې سره ته څه خبره وکړه، ښـایي هغه یې ومني، چې دا پاڼې له ځان سره فابریکې ته دننه کړې.

مور د سر په ښورولو سره دا نظریه رد کړه.

- آه، یا! دا یوه ډېره غالمغالي ښځه ده! ښایي چې د وخت په تیریدو سره دا پوه شي چې دې دغه پاڼې زما څخه اخیستي دي، آه، زه دا نه غواړم.

وروســته مور په ناڅاپي ډول په داســې حال کې چې اوښــکې ورباندې راغلې، وویل:

- پـانې مـاتـه راکړئ! زه بـه دا کـار وکړم او د دې هـدف لپاره به یوه لار ولټوم. زه به د ماریا کورسونووا څخه غوښتنه وکړم چې دا ما د خپلې ملګرې په توګـه فـابریکې ته بوځي. زه هم مجبوره یم، چې خپله ډوډۍ په یوه ترتیب سره پیدا کړم، زه به ډوډۍ فابریکې ته د پلورلو لپاره یوســـم او دغه کار به هم ترسره کړم.

مور خپل لاسـونه په داسـې حال کې چې احسـاسـات یې په شور راغلي وو، پر سینه کېښودل او ویې ویل:

- دوی وینې چې پاول نشته او لاس یې هر چېرې رسیږي.

دوی درې سره د خوشالۍ په پلوشو سره روښانه شول. ایګور ایووانوویچ په خندا سره په داسې حال کې چې لاسونه یې سره مښل وویل:

- عجیبه ده مورې! ته حتی نه پوهیږې چې دا څومره لوی کار دی.

سمایلوف هم لاسونه ومښل او ویې ویل:

- که چېرې دغه کار وشي، نو زه به و جیل ته په دومره اســانۍ لاړ شــم، لکه خلک چې بستر ته ځي.

ایګور په لوړ آواز سره نارې وهلې:

- تاسې د وطن یوه خورا ګلالۍ ښځه یاست!

مور پـه دې وخت کې وخندل، دې ته دا معلومه شــوې وه که چېرې یو ځل بیا دغه پاڼې پیدا شي، نو هرومرو به اداري پلاوی د دې زوی له دغه تهمت

 څخه مبرا وګڼي. دې، دا حس کړه چې د دغه کار د ترسره کولو وس لري او هغه په ښه ډول ترسره کولای شي.

ایګور ایوانوویچ و سمایلوف ته وویل:

- هغه وخت چې تاسې د پاول سره د ملاقات لپاره جېل ته لاړ شې، نو ورته ووایاست چې ته تر شا یوه ډېره ښه مور لري.

سمایلوف په موسکا سره وویل:

- زه به یې د ملاقات نه مخکې په جېل کې ووینم.

مور وویل:

- دهٔ ته ووایه چې زه به ټول هغه کار وکړم، کوم چې باید وشي. پرېږدئ چې هغه آرام وي.

ایګور ایوانوویچ وویل:

- که دوی سمایلوف و جېل ته و نه لیږي؟

- نو څه وکړو، همداسې به پاتې وي!

دوی دواړو په خندا شروع وکړه او مور پوه شوه چې سهوه یې وکړه، لږ تلواري غوندې شوه، سر یې کښته واچاوهٔ او په خجالت سره یې وویل:

- د خپل و شاته پردی په تکلیف معلومیږي.

ایګور ناره وکړه:

- دا یوه طبیعي غریزه ده! او ته باید په پاول پسې غمجنه نه شې. دی به تر پخوا په ښه بڼه د جېل څخه راشي. هلته سړی ښه استراحت کولای شي او د مطالعې چانس هم ور پیدا کیږي، چې د آزادۍ په وخت کې د دې کارونو لپاره وخت نه وي. زه درې واره بندي شوی یم او په هر وار او هره پلا کې به مې

ډېرې دماغي او روحي ګټې لاس ته راغلې، خو سره له هغه هم نشم ويلای چې هلته زه خوښ وم.

مور چې د هغه مخ ته د محبت نه په ډکو سترګو وکتل نو يې وويل:

- تاسې په ډېر تکليف سره تنفس کوی.

ايګور خپله ګوته پورته کړه او ورته يې وويل:

- دا کـار هم خپـل ځـان ته مخصـــوص علت لري. هو، مورجانې! يعنې پريکړي ته ورسيدلو؟ مورږ به سبا پانې راوړو او په دې ډول به بيا ځرخ په حرکت راشي او د زمـانې توره تيـاره بـه د منځ ځخه يوسي. تل دې وي آزادي، تل دې وي د مور زړهٔ! او اوس د خدای په امان، بايد لاړ شو.

سمايلوف د مور لاس کې ټينګ کړ او ويې ويل:

- د خدای په امان! زه به هېڅکله خپلې مور ته په دې هکله خبرې ونشم کولای.

مور وغوښتل چې دوی لږ څه خوشالي وکړي، نو يې وويل:

- ښايي داسې ورځ راشي چې ټوله په اصلي مقصد پوه شي.

کلـه چې دوی لاړل مور د سرای ور وتـاړهٔ، خونې ته راغله او د خونې په منځ کې پـه ســـجـده پرېوتله او په عبادت يې شروع وکړه. د باران شـــور د دې دعاوې بدرګه کولې. دې د ټولو هغو کســانو په هکله دعا کوله کوم چې پاول د دې ژوند ته معرفي کړي وو. دې ته دغه خلک داســـې معلوميدل چې د دې او مذهبي تصويرونو ترمنځ يې حرکت کاوهٔ. ټول دغه ساده خلک خورا سره نژدې وو، مګر اوس هر يوه په تنهايۍ سره ژوند کاوهٔ.

سبا وختي مور د ماريا کورسونووا کور ته ورغله.

ماریا کورســـونووا د پخوا په شـــان په غوړو ککړه وه او نارې یې وهلې، مگر دې ته یې په ډېره مهربانۍ سره ســـلام وکړ. خپل غوړ لاســـونه یې د دې پر اوږو کېښودل او ویې ویل:

- ښـــایي چې ډېره غمجنه یې؟ دوی هغه ونیو او بندي یې کړ! خیر دی، ډېر غم مـه کوه، تیره بـه شي. پخوا داســـې معمول و چې خلک به یې د غلا په سبب په جېل کې اچول مگر اوس دوی هغه کسان جېل ته اچوي کوم چې حق او عدالت غواړي. ښایي چې پاول ټول هغه شیان پوره نه وي ویلي، کوم چې دهٔ یې د ویلو هیلـه درلوده. مگر څـه چې دهٔ وکړل د ټولو لپـاره وو او ټولو همدغه حقیقـت درک کړی دی، نو لـه دې کبلـه بـاید غمجنه نشـــې. که څه هم ځینې خلک د دهٔ په خبرو غوږ نه نیســـي مگر دومره کولای شي، چې د ښو او بدو په توپیر پوه شي. ما غوښـتل چې سـتا د لیدلو لپاره درشـم، مگر تراوسـه پورې مې وخـت نـه دی پیـدا کړی. ټوله ورځ ډوډۍ پخوم او هغه خرڅوم، سره له هغه به هم هرومرو یوه ورځ تـه واورې چې مـاریـا د لوږې او فقر څخه مړه شـــول. په داســـې یو عجیبه وخت کې ژوند کوم، هر کله چې یو لس روبله پیداکړم په دې وخت کې کوم حرام زاده راشي او هغه را څخه واخلي. که موږ د ښـــځو د دې ناښـادۍ او ناارامۍ ژوند ته ځیر شـو، نو دا به ښه راته څرگنده شي چې د ښځې پیـدا کېـدل، د لومړي سر څخـه خورا یو غلط کـار دی. پـه یوازې توگـه ژونـد ستونزمن دی او په جوړه توگه زړه تورونکی دی.

مور د دې خبرو په منځ کې ورولوېدله او ویې ویل:

- زه د دې لپـاره راغلې یم چې تـه مـا د خپلې همکـارۍ پـه توگه ومنې. ماري

ماريا كورسونووا پوښتنه ترې وکړه:

- يعنې څنگه؟

کله چې مور ماريا ته خپل بيان وکړ، نو دې هم سر وښوراوۀ او ويې ويل:

- يقين دى! آيا ستا په ياد دي چې تا به په څه ډول زه د مېړۀ څخه خلاصولم؟ اوس نو زه هم حاضره يم چې تا د لوړې څخه وساتم. هر څوک بايد ستا سره مرسته وکړي، ځکه ستا زوى د ټولو د ښيگڼې لپاره بندي شوى دى. هر څوک وايي چې دى ډېر ښۀ ځوان دى او ټول په دۀ ډېر غمجن دي. ته وگوره چې په فابريکه کې څه پيښيږي؟ خلک ډېر بد شيان وايي! سرکار داسې فکر کوي که دوى د يوۀ سړي پنډى پرې کړي، هغه به نور حرکت ونه کړي. مگر دا معلومه خبره ده که دوى لس تنه ووهي، نو هرومرو به سل د دوى منځ ته ودريږي.

د دوى د خبرو نتيجه دا شوله چې سبا غرمه به مور د ماريا ډوډۍ فابريکې ته د پلورلو لپاره وړي او په خپله ماريا به د نورو شيانو د رانيولو لپاره بازار ته لاړه شي.

«۱۵»

په چټکۍ سره دې نوي سـوداګرۍ ته د کارګرو توجه واوښـته. ځينو به ورته وويل:

- نيلوفنا، تا هم په کار پيل وکړ؟

دوی به دغه غوښتنه په داسې حال کې کوله چې سر به يې په مثبت ډول سره ښوراوه، ځينو کـارګرو بـه په تلوار دې ته ځان ورسـاوه او اطمينان به يې ورکـاوه، چې پـاول بـه ډېر ژر د جېـل څخه خوشي شي. نورو کارګرو به په ډېر محبت سره غبږ ورباندې کاوه، خو بيا هم ځينې کسـان وو، چې مور ته به يې په سـپکه سـترګې ور اړولې. ايسـای ګوربوف چې د يوه ميرزا وظيفه درلوده، په داسې حال کې چې د خولې پاس او کوز غاښونه يې سره مښل، وويل:

- کـه زه د حکومت پر ځای وای، ما به سـتا زوی اعدام کړی وای او دا کار د دهٔ د ګمراه کوونکي فعاليت يو ښه عوض دی.

دا ګواښ دومره شديد و، چې د مور هډوکي لا پر درد راغلل. دې ايسای تـه ځواب ورنکړ، يوازې يې د دهٔ خالخالي ژېړ مخ ته په ډېره کرکه سره وکتل او تر اسوېلي وروسته يې سترګې ځمکې ته واچولې.

فـابريکـه د شـور او ماشـور څخه ډکه وه. کارګرو به واړهٔ-واړهٔ ګروپونه تشـکيل کړي وو او په خپلو منځو کې به يې پسـپسـۍ کاوهٔ. سرکارانو به په هر ځـای کې پـه ډېره وارخطايۍ سره د دوی ډلې او ټولنې شـنډولې، دوی به ډېر سـخـت سـوګنـدونه يادول، مګر د دوی د سـوګندو سره - سره ځای ځای د سپکاوي او ملنډو خنداوې اوريدل کېدې.

په دې وخت کې دوو پولیسو چې سمایلوف یې رهي کړی و، د مور د خوا سره تېر شول. د سمایلوف یو لاس په جیب کې و او بل لاس یې د سر په سوربخنو ویښتانو تیراوه.

سمدستي د سلو تنو په حدودو کې کارگران راټول شول او په دوی پسې رهي شول، دوی به پولیسو ته ښکنځل او ډېري ناوړي خبري کولې او په بدو نومونو به یې یادول.

په دې وخت کې یو غږ واوریدل شو:

- اې، سمایلوفه، ته لاړې!

بلکسخبره ونیوله:

- دا د دهٔ لپاره ډېر ویاړ دی، په محافظینو سره یې بدرگه کوي!

د دې په تعقیب سره بد ښکنځل واوریدل شول.

بل کارگر چې جگه ونه او کږې سترگې یې درلودې، وویل:

- معلومیږي چې د غلو په نیولو کې یې کومه فایده ونه لیدله. دا دی د شریفو او پاکو انسانانو په نیولو یې پیل وکړ...

د خلکو له ډلي بل آواز پورته شو:

- پخوا به یې د شپې له خوا نیول، اوس د پست فطرتو بې شرمي دې حد ته ورسیدله، چې په سپینه ورځ یې کشوي.

پولیسو تندي تروه کړل او په ډېرې چابکۍ سره روان شول. دوی کارگرانو ته هېڅ پام ونه کړ او خپل ځانونه یې داسې ښودل لکه دوی چې د هغوی لعنت او کرکه نه اوري. درې تنه کارگران چې د اوسپنې لویه ټوټه یې نقلوله، له دوی سره مخامخ شول او پر نارې یې کړې:

- اې انساني ښکاريانو، لېرې شئ.

کله چې ســمايلوف د مور د خوا څخه تېرېدهٔ، خپل سر يې وخوځوهٔ او تر يوهٔ پوزخند وروسته يې وويل.

- دا دی زه يې هم ونيولم.

مور په ډېره آرامۍ سره د دهٔ د احترام لپاره کږه شــوه. مگر دا کار چې د ســمايلوف په څېر صــالح ځوانان د جېل پر لور په خندا روان دي، د دې د زړه مورنۍ مهرباني وپارول.

کله چې مور د فابريکې څخه راغله، پاته ورځ يې د ماريا سره تېره کړه، د هغې سره يې په کار کې مرسته کوله او د هغې پر نصحيت باندې يې غوږ نيولی و. د مـازديگر پـه شــاوخوا کې مور خپل ســاړهٔ، تورتم او د غم نه ډک کور ته راغله. مور په خپل کور کې د ډېر وخت لپاره بې له کوم مقصــد څخه کښــته او پورتـه کېـده، پر يوه ځـای بـانـدې يې کرار نه کيدهٔ او په دې نه پوهېدله چې له ځان سره څه وکړي. وار په وار به يې پريشــاني ډېرېدله، ځکه شــپه راغلې وه، مگر ايگور ايوانوويچ لا هغه پاڼې نه وې راوړي.

توره شــپه وه، د مني د موســم د واورې درانهٔ څېري رالوېدل او په ډېره آرامۍ سره به د کړکۍ پر ښـيښـو منښـتل او تر يو څه وخت وروسته به بېرته اوبه کېـدل او پر ځای به يې کرښــې پاتې کيدې. په همدې وخت کې مور ته خپل زوی ور په زړهٔ شو او د هغهٔ په فکر کې ډوبه شوه.

مور واوريدل چې کوم ســړی د سرای ور په ډېر احتياط سره وهي. دا په ډېرې چابکۍ سره ور ولاړه شـوه، ور چې يې خلاص کړ، گوري چې ساشېنکه ولاړه ده، سمدستي يې ورته وويل:

- ساشېنکه، کور ته راشه!- مور دا د ډېر وخت لپاره نه وه لېدلې، دا پلا چې يې گوري، په غير طبيعي توگه خورا چاغه او ټنډه شوې وه. مور په دې خوشاله شوه چې د شپې يوه برخه به د دې پيغلې سره تېره کړي او د يوازېتوب نه به خلاصه وي.

مور وويل:

- شپه دې په خير. ما ته د ډېر وخت راهيسې نه وې ليدلې. آيا کوم لېرې ځای ته تللې وې؟

نجلۍ تر خندا وروسته مور ته ځواب ورکړ:

- زه چېرته نه وم تللی، مگر دا څۀ موده پخوا زه په جېل کې وم. زه د نيکولای ايوانوويچ سره يو ځای بندي وم. آيا هغه سړی دې په ياد دی؟

مور په حيرت سره وويل:

- آه، هو. ايگور ايوانوويچ پرون راته وويل چې هغه يې خوشی کړی، اما ستا له بند څخه هېڅ خبره نه وم. هېچا ماته ونه ويل چې ته په جېل کې يې.

نجلۍ شاوخوا کتل او ويې ويل:

څه درته ووايم، ښه به دا وي چې زه دلته پخوا له دې چې ايگور ايوانوويچ راشي، خپل کالي بدل کړم.

- آه، بلې، ټول کالي دې لاندۀ دي.

- ما تاته څو پاڼې او کتابونه راوړي دي.

مور په ډېري لېوالتيا او بيړي سره وويل:

- رايې کړه ماته، هله ژر شه!

نجلۍ د خپل کوټ غوټې خلاصې کړې او ځان یې سره وخوځوۀ، د دې څخه لیکل شــوي پاڼې داسي پاشــل شــوې، لکه د مني باد چې د ونو پاڼې ورژوي. مور پـه ډېرې خوشــالۍ سره هغـه ټولولې او له ځان سره به یې خندل. وروسته مور وویل:

- زه په اول سر کې ســتا د لوی او چاغ بدن څخه حیرانه شـوم. ما داســې فکر وکړ چې د کوم ســړي سره دې وادۀ کړی دی او اوس دې پـه نس کې کوچنی پیدا شوی دی! آه، څومره دې راوړي دي، آیا پیاده راغلې یې؟

ساشېنکه چې یو ځل بیا جگه او نرۍ شوي وه، وویل:

- هو، پیاده راغلې یم.

مور ولیـدل چې د دې بـاړخوگـان ننوتـل، ســترگې یې خورا غټې غټې معلومېدلې. د نجلۍ د سترگو پر شاوخوا تورې حلقې پیدا شوې.

مور تر یوۀ اسوېلي وروسته خپل سر وښوروۀ او ویې ویل:

- ته ولې دومره سخت کارونه کوې؟ تاته ډېر استراحت او هوسایي لازمه ده، ځکه چې د بندیخانې نه وتلې یې.

- نجلۍ په داسې حال کې چې د یخنۍ څخه ریږدیدله، وویل:

- دا کـار بـایـد ترسره شي. د پاول په برخه کې څه راته ووایه، آیا کله یې چې دی جېل ته بیوۀ، ډېر وارخطا و؟

ساشېنکه د پوښتنې په وخت کې مور ته نه کتل او په ریږدیدلو لاسو سره یې خپل ویښتان سمول.

مور ځواب ورکړ:

- نه، پاول هېڅ وارخطا نه و. پاول په داسې پېښو کې ځان نه بایلي.

نجلی په نرمۍ سره وویل:

- د پاول صحت خو ښه دی، که یه؟

پاول په خپل ټول ژوند کې یو وار هم نه و ناروغه شوی.- مور ځواب ورکړ.- آه ته څومره له یخنۍ ریږدې، زه به لاړه شم، لږ چای به درته د مربا سره یو ځای تیار کړم.

- دا خو ډېره ښه خبره ده، مگر اوس ډېر ناوخته دی، ته به په زحمت شې، ماته اجازه راکړه، چې زه یې پخپله تیار کړم.

کله چې مور په پخلنځي کې سماوار ولگاوه، نو په ملامت آمیزه لهجه سره یې وویل:

- داسې ستړې او ستومانه چې ته یې؟

ساشېنکه هم په مور پسې پخلنځي ته لاړه، هلته پر یوه زاړه څوکۍ کېناسته او لاسونه یې تر شا ونیول، بیا یې وویل:

- جېل انسان ته هر څۀ ستړي او ستومانه کوي. زړۀ تورونکي بیکاري ده! د یوه بندي حېوان په څېر به هلته ناست یې، هېڅ کار به نشې کولای، په داسې حال کې چې ډېر کارونه دي، چې باید موږ یې ترسره کړو.

مور د نجلۍ څخه وپوښتل:

- څوک به تاته د دغو ټولو زحمتو عوض درکړي؟

او تر یوه اسوېلي وروسته یې په خپله ځانته ځواب ورکړ:

- هېڅوک، مگر خدای.

په دې وخت کې ناڅاپه په دهلیز کې د یوۀ سړي زمزمه واوریدل شوه. مور په چابکۍ سره لاړه، مگر نجلۍ هغه ونیوله او غلي یې ورته وویل:

- ور مه خلاصــوه! که چېرې دا خلک ژاندارم وي، نو ته ما نه پېژنې چې زه څوک یم، ما خپل کور غلط کړی، دلته راغلم او بې هوښه پرېوتم. تا بالاپوښ را نه وکېښ او دا کتابونه دي ولیدل، نور ته په هېڅ خبره نه یې؟ پوه شولې؟

مور د زړهٔ له کومې پوښتنه وکړه:

- اې زما زړګیه، زه ولې داسې کار وکړم؟

ساشېنکه ورهٔ ته غوږ ونیو، ویې ویل:

- ښایي چې ایګور وي.

کله چې یې ور خلاص کړ، څه ګوري چې ایګور لوند خیشت، ستړی او ستومانه ولاړ دی او په اوږو ساه شړي. دی کور ته دننه شو او ویې ویل:

- ډېر ښهٔ، سماوار ګرم دی، دا څومره ښهٔ کار دی!

ایګور چې پخلنځي ته دننه شو، ساشېنکه یې ولیدله، نو یې وویل:

- ساشېنکه ته د مخه رارسیدلې یې؟

دهٔ بې لـه ځنـډه خبرو ته ادامه ورکړه، ورو-ورو یې خبرې کولې او خپل کوټ یې کېښ. ویې ویل:

وینې مورې، د دې نجلۍ څخـه آمرین ډېر بد وړي! هر کله چې د جېل قوماندان دا سـپکه کړه، سـمدسـتي دې د ډوډۍ د نهٔ خوړولو اعتصـاب وکړ او ویې ویل: زه به تر هغه وخته پورې اعتصـــاب ته دوام ورکړم، تر څو چې هغه د خپـل چټـل عزم د لرلو پـه باب له ما څخه عفوه وغواړي. دې د اتو ورځو لپاره هېڅ شی ونه خوړل او په دې ډول نژدې وه، چې له خپل ژوند بې برخې شي. ته دا څنګه بولې؟ زما خېټه خو هم وینې، څومره غټه شویده؟

کله چې دی کوټې ته لاړ، په داسې حال کې چې په بیړه یې خبرې کولې او خپله ځوړنده خېټه یې په لاسـونو کې نیولې وه، خونې ته ور دننه شو او ځان پسې یې دروازه وتړله.

مور په ډېر حیرت سره وپوښتل:

- ریښتیا ده، اته ورځې دې ډوډۍ ونه خوړله؟

ساشېنکه تراوسه لا د سړو څخه ریږدیدله، ویې ویل:

- زه مجبوره وم چې دا کار وکړم، تر څو دوی توبه وباسي.

مور پـه دې وخـت کې د نجلۍ ارامتیـا او بې پروایي حس کړه. تر لږ څه فکر وروسته یې په لوړ آواز سره وویل:

- عجیبه نجلۍ یې، که له لوږې مړه وای؟

نجلۍ په نرمۍ وویل:

- د مرگ چـاره نشـــوای کېـدلای، مگر دهٔ پـه پـای کې له ما نه بخښـــنه وغوښتله. بېځایه آزارول د بخښنې وړ نه دي!

مور کرار کرار له ځان سره ویل:

- اممممم. ټول خلک همېشه زموږ له ښځو څخه سؤاستفاده کوي.

ایگور د خونې ور خلاص کړ، ویې ویل:

- ما خپل بار له ځانه څخه لېرې کړ. سماوار تیار دی؟ که تیار وي، اجازه راکړه چې خونې ته یې یوسم...

وروسته راغی، سماوار یې واخیست او خونې ته ننوت، ویې ویل:

- زما پلار به د ورځې تر شـل گیلاسه کم چای نه څښلې، سره له هغه یې خورا ښه صحت او د آرامۍ ژوند درلود. دی یو چاغ سړی و او ۱۲۸ کیلو گرامه

وزن يې درلود. د وسکرسېنسک د کلي په کليسا کې يې کار کاوۀ او پوره درې اويا کاله يې ژوند وکړ.

مور په ولولو سره وويل:

- آيا ته د بابا ايوان زوی يې؟

ځواب يې ورکړ:

- هو، زه د هغه زوی يم، آيا ته هغه پېژنې؟

- هو، زه هم د وسکرسېنک له کلي څخه راغلې يم.

- وطن دارې؟ ته د چا لور يې؟

- ستاسو د گاونډي لور يم. د سيريگين!

- يعنې تۀ د هغه گوډ نيل سيريگين لور يې؟ زه خو هغه ډېر ښه پېژنم. هغه څو ځله زما غوړونه راپيچلي وو.

دوی د يوه او بل په مقابل کې ودريدل او په زړهاوو پوښتنې يې يو د بل څخه وکړې. ساشېنکه چې دا خبره واوريده، پخپله يې د چايو په دمولو پيل وکړ. د گېلاسو غږ مور د پخوانې فکر څخه راوگرځوله.

- آه، وبخښه! زما هر څه د فکر څخه ووتل! دا به تا ته معلومه وي چې يو څوک چې د خپل کلي سړی ويني، څومره خوشالېږي.

ساشېنکه وويل:

دا چې ما دلته د کور د خاوند په شان حقوق ځانته ورکړي دي، زه بايد عفوه وغواړم، نه تاسې. اوس تر لسو بجو يو څه تېر دي، زما په مخ کې اوږد واټن دی. بايد لاړه شم.

مور په حيرانتيا سره وپوښتل:

- ته چېرې ځې؟ ښار ته؟

هو.

- ته باید حتماً لاړه شې؟ توره تیارۀ ده، ته هم ډېره ستړې یې. دلته شپه تېره کړه. ایګور ایوانوویچ به په پخلنځي کې ویدۀ شي، زه او ته به دلته استراحت وکړو...

نجلۍ په ډېرې سادګۍ وویل:

- مننه، زه باید لاړه شم.

ایګور هم وویل:

- له بده مرغه لازمه ده چې دغه نجلۍ لاړه شي، ځکه خلک دا پېژني او مور نه غواړم چې ساشېنکه دې سبا ورځ دلته ولیدل شي.

- دا څنګه کولای شي؟ یوازې دا؟

- بلې، دا یوازې هم تللی شي.- ایګور په خندا سره وویل.

نجلۍ ځان ته چای واچولې، یوه ګوله ډوډۍ یې ور ماته کړه او د هغه په خوړولو یې پیل وکړ. په همدې وخت کې مور ته ډېره ځیر شوه.

مور وویل:

- ته او ناتاشا په څه ډول په شپه کې مزل کوئ، زه وېرېږم او دا کار به مې هېڅ وخت هم د لاسه ونه شي.

ایګور وویل:

- دا هم ویرېږي، آیا ساشېنکه ته ویرېږې؟

نجلۍ ځواب ورکړ:

په ریښتیا ویرېږم.

مور نجلۍ او ایگور ته وکتل او ویې ویل:

- ځومره سرسخته خلک یاست.

کله چې ساشېنکه چای خلاص کړ، کرار یې د ایګور لاس ونیو او پخلنځي ته لاړه. مور هم پسې روانه شوله.

ساشېنکه مور ته وویل:

- که تاسو پاول ولید، زما سلام ورته وواياست! هیله ده چې هېر یې نکړئ.

کله چې نجلۍ دروازې ته لاس وروړئ، بېرته یې مخ راوګرځاوۀ او ویې ویل:

- آیا زه کولای شم چې تا مچو کړم؟

مور په کراره سره دا په بغل کې ونیوله، ډېره یې مچو کړله.

نجلۍ مننه وکړه او وروسته یې خپل سر وخوځوۀ او لاړه. کله چې مور بېرته کوټې ته راغله، په ډېر تاثیر یې تر کړکۍ د باندې وکتل. د باندې د واورې لاندۀ ځپري په توره تیاره کې لوېدل.

- ستا د پروزوروف کورنۍ په یاد ده؟ - ایګور وویل.

ایګور په داسې حال کې ناست و چې دواړه پښې یې وغځولې او په خورا لوړ پوکي سره یې چای سړول. د دۀ مخ سور او د خولو څخه ډک او آرام و.

مور دۀ ته په ډېر غور سره وکتل او مېز ته نژدې شوه، ویې ویل:

- هو، پېژنم یې. – مور پر خپل ځای کېناسته او په ډېره غمجنۍ سره یې ایګور ته کتل: - آما ساشېنکه څه ډول ښار ته ځان رسوي؟

- دا به ډېره ستړې او ستومانه شي. –ایګور هم موافقه وکړه. –جېل یې حالت خراب کړی. دا پیاوړي پېغله وه. مګر اوس یې صحت ښه نه دی. داسې معلومیږي چې په سږو کې یې کوم تکلیف پیدا شویدی.

مور په نرمۍ سره وویل:

-د چا لور ده؟

- دا د یوه ملک سړي لور ده. د دې د خبرو څخه معلومیږي چې پلار یې ډېر وچ سړی دی، آیا ته پوهېږې چې دوی د وادهٔ خیال لري؟

- څوک؟

- دا او پاول. مګر هېڅ چانس نه برابریږي. کله چې پاول د بنده خلاص شي، ساشېنکه جېل ته ځي او کله چې ساشېنکه د جېل څخه خلاصه شي، دی بندي کیږي.

مور لږ ځنډ پس وویل:

- زه نه پوهېږم، پاول هېڅکله د ځان په باره کې خبرې نه کوي.

مور اوس د نجلۍ په باره کې ډېره مغمومه ښکارېدله. په داسې حال کې چې خپل مېلمه ته یې له غیر ارادي خصومت څخه ډک نظر واچاوهٔ، ویې ویل:

- تا ولې دا تر کوره پورې ونه رسوله؟

دهٔ په آرامۍ سره ځواب ورکړ:

- ما نشوای کولای، زه دلته ډېر کارونه لرم. سهار وختي باید زه د یوهٔ ځای څخه بل ځای ته لاړ شم او دا کار زما په څېر یو ساه لنډي سړي ته ډېر ستونزمن کار دی.

د مور زړهٔ د ایګور په وینا سره تسخیر شو او ویې ویل:

- دا یوه ډېره نـازنینـه پېغلـه ده.- مور وار په وار متاثره کېدله. د مور تندی تریو شو او شونډې یې تر غاښو لاندې کولې. مور خفه وه چې دغه خبره یې د خپل زوی څخه نه، بلکه د یو بل چا څخه واوریدله.

ایګور سره وخوځوۀ، ویې ویل:

- هو، دا ښـه نجلۍ ده. او زه هم پوه شوم چې ته پسې خوابدي شوې. په دې بـاره کې ډېر فکر مه خرابوه، که ته زموږ د هر یوۀ په حال زړۀ وســېځې، نو ډېر ژر به د کار څخه ولوېږې. ځکه که ریښتیا ووایو په موږ کې یو هم ښۀ ژوند نلري او د هر یوۀ حـال د ترحم وړ دی. زما یو ملګری په دې ورځو کې د تبعید څخه خلاص شــو. کله چې دی د نیژني نوګوراد ښــار ته راورســید، ښــځه او ماشـومان یې د ســمولېنســک په ښـار کې دۀ ته منتظر وو، مګر هغه وخت چې هلته راغی، ښځه او ماشومان یې د مسکو جېل ته واستول شول. او اوس د ښځې نوبت رســیدلی دی چې ســایبریا ته تعبید کړل شي. ما په خپله هم یوه ښــځه درلوده چې هغـه یو ډېر نازنین موجود و، د پنځو کالو لپاره یې دا ډول ســخت ژوند تېر کړ، څو چې په ګور کې آرامه پرېوتله.

دۀ خپل چای په غټ غړپ ختم کړ او خبرو ته یې دوام ورکړ. دۀ دې ته د خپلو لنـډو او اوږدو جېلونو پـه بـاره کې خبرې وکړې. ایګور مور تـه د هغو بدبختیو نکلونه لکه د بندي خانې وهل، لوږې، د ســایبریا یخني او د ظالمانو د ستم په باب ډېر کیسې وکړې. مور په دقت غوږ نیولی و او په حیرانتیا کې تللې وه چې دی څنګه دغه ترخې خبرې په دومره مېړاني او سادګۍ سره کوي، د دۀ په ټولو کیسو کې د داسې یوه ژوند بیان کېدۀ چې په هغه کې ظلم، کړاو، ناروا او ستم ډېر وو...

- مورې، راشه چې اوس خپله اصلي کیسه شروع کړو.

د دهٔ لهجه بدله شوله او د مخ بڼه یې هم واوښتله، ډېر جدي شو. د مور څخه یې وپوښتل چې دا به په څه ډول سره دغه پانې فابریکې ته ورسوي. مور د ایگور د بیان څخه په حیرانتیا کې ولوېدله، ځکه چې هغه په ټولو جزئیاتو او تفصیلاتو کې ډېر وارد و.

کله چې دوی ټول شیان او جزئیات د پلان سره سم حل کړل، بیا یې د خپل کلي په اړه خبرې شروع کړې. په دې وخت کې د دهٔ لهجه تمسخر آمیزه وه، مور خپل تېر شوي ژوند ته په حیرت کې تللې وه او داسې ور معلومېده چې د دې د تېر ژوند او جبه زار ترمنځ چې هېڅ حاصل ونلري، کوم فرق نشته. فکر یې کاوهٔ: زما پخوانی ژوند هغه گورې ونې ته ورته دی چې وروسته له څو کالو لویه شي او بیا د یوهٔ طوفان په وسېله پر ملا ماته شي او پر ځمکه ولوېږي، او د زمانې په تېریدو سره بیا په خاورو کې ورسته او محوه شي. د مور په زړهٔ کې ډېر درد ور پیدا شو. مور یو ځل بیا د خیال او تصور په دنیا کې د پیغلې تصور ولید، دا پیغله ډېره بې پروا او مغروره وه، نجلۍ د واروې د لوېدلو څپرو کې خپله لار وهله، دا ډېره ستړې او ستومانه وه، په ټول لوی جهان کې یوازې وه. د مور زوی هم په جېل کې و. داسې ورته معلومېده چې ښایي پاول تراوسه پورې نه وي ویدهٔ شوی، د خپلې مور فکر به ورسره نه وي، ځکه اوس د دهٔ لپاره یو گران ملگری شته. د مور سر ته داسې افکار راغلل چې د هغې روح یې د تورتم په دنیا کې پوپنا کړ.

ایگور په موسکا سره وویل:

- ته ستړې او ستومانه یې، لاړه شه او استراحت وکړه.

مور لـه هغـه سره خـدای پـه اماني کړه او په ډېر احتیاط سره پخلنځي ته ننوتله. د دې زړۀ د داســې تریخوالي څخه ډک و، چې هڅوکي يې ســوځول او روح يې ويلې کاوۀ.

سهار د ډوډۍ په وخت کې ايګور وويل:

- که چېرې دوی تا ونيســــــي او پوښــتنه در څخه وکړي چې تا دغه منع شوې او پارونکې پاڼې د کومه پيدا کړې، ته به يې په ځواب کې څه وايې؟

مور وويل:

- زه به ځواب ورکړ چې دا کار په تاسو پورې اړه نلري.

ايګور د مور خبره رد کړه:

- زه لۀ دې ويرېږم چې دوی به ســتا په دغه خبره قناعت ونه کړي. دوی ډېر بد جنسه خلک دي او په باوري ډول سره به دوی خپله دغه دنده تر شوني بريده پورې ترسره کړي. ښــايي دوی تا د ډېرو پوښــتنو لپاره وســاتي او په دې برخه کې ټينګار وکړي.

مور وويل:

- که دوی هر څومره ټينګار وکړي، زه به هېڅ اقرار ونه کړم.

- دوی به تا په جېل کې واچوي.

مور تر اسوېلي وروسته وويل:

- په جېل کې؟ زۀ به د خدای شــکر پر ځای کړم که دوی ما په جېل کې واچوي. زه د جېل او بل هر ډول مشــقت لپاره بالکل تياره يم. که زه بندي او يا مړه شــم، پـه مـا بـه څوک خوار شي؟ هېڅوک، زه يقين لرم چې دوی به ما ونه وهي.

- امممم. - ایگور په ډېر دقت سره مور ته وکتل او ویې ویل: - ښـــایي چې دوی تاته کوم جسمي عذاب در نه کړي، مګر ښه او شریف خلک باید تر یوه ځایه پورې ځان وساتي.

مور په یوه لنډه خندا سره وویل:

- تاسو سره د ځان ساتنې هنر څوک نشي زده کولای.

ایګور پـه ډېرې آرامۍ سره د څو دقیقو لپـاره پـه کوټـه کې قـدم وواهۀ، وروسته بیا مور ته نژدې راغی، ورته یې وویل:

- ستا وظیفه ډېر سخته ده! زه پوهېږم چې هغه څومره لویه وظیفه ده!

مور خپل لاس وخوځوۀ او ویې ویل:

- زه پوهېږم چې دا کـار ســخت دی، خو یو ســړی که پوه وي، هغه ته دومره تکلیف نه لري، مګر زه په دې خبرو لږ پوهېږم چې ښــۀ خلک د څومره سختو کارو لپاره لاس او پښې وهي.

ایګور په ډېر ټینګار سره وویل:

- که چېرې ته په دې مطلب پوه شــوې یې، نو زموږ د ډلې هر غړی تاته اړ دی!

دۀ دې ته وکتل او ویې خندل.

د غرمې په وخت کې د فابریکې د تګ لپاره تیاره شـوه، مور خپلې پاڼې په داســې مهارت سره په صــحیح ډول په خپلو کالیو کې پټې کړې چې ایګور خپله ګوته له حیرته په غاښ کې ونیوله او ویې ویل:

- زیـه ګوت! (دا کلمـه معمولاً جرمنیـان هغه وخت اســتمعالوي چې یو سطل بیر یې خوړلې وي). دې ټولو پاڼو ستاسو په وجود کې بدلون رانه وست.

ته عیناً د پخوا په شـان یوه نری، پخه او مهربانه ښـځه ښـکارېږ، ښـایي چې بې شمېره خدایان ستا دغه لومړنی فعالیت وستایي.

نیم سـاعت وروسـته مور په ډېر متانت او پټه خوله د فابریکې په دروازه کې ودرېـدله. مور د خپلو ټکریو له وزن څخه بالکل کړه وه. دوو پیره دارانو په ډېر دقیق ډول د ټولو کسـانو کالي کتل، مگر هغوی به دوی ته د همدې کار د ترسره کولو له کبله تل ډېر بد-بد الفاظ کارول او طعنې به یې ورکولې. د دروازې یوه څنگ ته یوکسـپولیس او یو سـړی چې سـور مخ او رغړندې سـترگې یې درلودې، ولاړ وو. مور خپلـه د لرگي تخته چې پر هغۀ باندې یې ټکری ایښـې وه، د یوې اوږې څخـه بلې اوږې تـه اړولـه. د سـترگو تر بېخو یې دغـه جگ سـورمخي سـړي ته کتل، ځکه دې ته دا معلومه شـوه چې دغه جگ سـړی یو حکومتي جاسوس دی او دلته مؤظف شوی دی.

یوۀ جـگ ځوان کـارگر چې خپله خولۍ یې کږه پر سر ایښـې وه، پیره دارانو ته چې دی یې تلاشي کاوۀ، وویل:

- اې، بد ذاتو! تاسې مو په سر کې ماغزۀ ولټوئ ، نه جیبونه!

یوۀ پیره دار وویل:

- ستا په ټول سر کې بې له سپږو بل شی نه لیدل کیږي.

کارگر په ډېر قهر سره وویل:

- تاسې بې د سپږو نیولو څخه د بل کوم کار اهلیت هم لرئ.

جاسوس په ډېر دقت سره دۀ ته وکتل او تف یې کړ.

مور وویل:

- مهرباني وکړئ، ماته لار راکړئ، څکه تاسو وينئ چې نژدې ده زما ملا د ډېره باره ماته شي.

يوه پيره دار وويل:

- څه لاړه شه او ډېر خبرې مه کوه!

کله چې مور خپل ځای ته ورسېدله، ټکرۍ يې پر ځمکه باندې کېښودله، د مخ خولې يې پاکې کړې او شاوخوا ته يې وکتل.

دوه ورونه چې د گوسيف په نامه وو او دواړه سوهان کاران وو، دستي دې ته راغلل. د دوی مشر ـ ورور چې واسيلي نومېده، په تروه تندي سره په لوړ آواز سره وويل:

- سمبوسې دي راوړې دي؟

مور وويل:

- سبا به يې راوړم.

کله چې دوی د مور دغه جمله واورېدله، د خوشالۍ څخه وځليدل، څکه چې دا د دوی ټاکلي رمزي کلمې وې. ايوان نژدې و چې له خوشالۍ وچوي، نو يې وويل:

- آه ته، زما مورې!

واسيلي په دوو گوتو کېناست او د ټکرۍ پای ته چې يې وکتل، نو يو بنډل پاڼې يې په گرېوان کې ومنډلې.

واسيلي په لوړ آواز سره وويل:

- ایوانه وروره، موږ کور ته نه ځو او دلې به د دې څخه ډوډۍ رانیسو!- د دغو خبرو په ویلو سره یې ژر ژر د موزو په ســاقو کې یو ممنوع کتاب ومانډۀ. وروسته یې زیاته کړه: - د دغې نوي سوداګرۍ سره به لږ څه مرسته وکړو...

ایوان په خندا سره وویل:

- حتماً به داسې وکړو.

مور په ډېر ځیر سره شاوخوا کتل او نارې به یې کولې:

- دا ده د کرم ښوروا او تودې ماچې واخلئ!

پـټ پـټ بـه یې د پـاڼو بنـډلونـه دې دوو وروڼو ته ورکول. هره پلا چې ممنوع کتابونه مور دوی ته په لاس ورکول، نو سـمدستي به د ژړمخي منصبدار څېره پـه توره کوټـه کې د اورلګیـت د لمبې په څېر د مور په ماغزو کې ور پیدا کېدله. دې به په غچ اخیستونکي توګه په زړۀ کې وویل:

- دا دی خپل کار مې وکړ.

کارګرانو به کاســې په لاس کې نیولې وې او د مور خوا ته به راتلل. کله چې بـه کـارګران رانژدې شــول، وروڼو بـه پـه خندا پیل کاوۀ، مور به هم د پاڼو ورکړه بس کړه او خپلې سـودا ته به متوجه شـوله. د دې لپاره چې د نورو توجه واوړي، وروڼو به خندل او مور ته به یې ویل:

- پلاګییا نیلوفنا، ته ډېره چالاکه سوداګره یې!

یو کارګر چې  د دوی خوا ته ولاړ و، په تروۀ تندي سره وویل:

- احتیاج به دې مجبوره کړي چې موږکان هم په چالاکۍ سره ونیسې، یو رزق پیـدا کوونکی یې درلود، هغـه هم دغو حرامزاده ګـانو بندي کړ- او مور ته

يې مخ واړواځ، ويې ويل: دا دی درې کوپیک چې ســتا د ښــوروا بیه ده. خیر دی، پروا نکوي، ډېره مه غمجنه کېږه.

مور وويل:

- ستا له مهربانو کلمه ځار.

هغه په داسې حال کې چې يوې خوا او بلې خوا ته يې قدم واهځ، مور ته وويل:

- د مهربانۍ خبرې ماته په ګران قيمت نه تماميږي.

ولاسوفا بيا خپلو نارو ته دوام ورکړ:

- دا دی رانیسئ، تود خوراک، ماچۍ، د کرم ښوروا...

او ضــمناً يې دا فکر کـاوځ چې پـه څـه ډول سره پاول ته د خپل لومړي فعـاليـت او د پـاڼو د ويشــلو مهـارت بيان کړي. مګر کله -کله به يې بيا هغه ژړ مخی منصــبدار د ډېر قهر په حال کې ور په زړځ شــو. د دځ ســپين غاښــونه به د شــونډو په منځ کې ځليدل او تور برېتونه به يې ښوريدل. د مور په زړځ خوشالي د يوځ مرغه په څېر الوتله، دې به خپل باڼوګان ژر ژر رپول، اما په فکر کې به يې د ژړمخي منصبدار سره خبرې کولې.

## «١٦»

پـه همدغه مازديګر کله چې مور چای چښــلې، لومړی يې د يوځ آس د ښونګرۍ غږ تر غوږ شو، وروسته يې بيا يو آشنا غږ واوريد. مور را ولاړه شوه، د پخلنځي له لارې و دروازې ته لاړه. د يوځ چابک سـړي د پښـو غږ يې په دهلېز

کې واورید. په سترګو یې یو تور سیوری راغی. مور دروازه په پښه سره ووهله او پر چارچوب یې تکیه وکړه.

- نېنکو، مازدیګر په خیر! - دا کلمه په یوۀ داسې غږ سره اداء شوله چې هغه دې تـه ډېر اشـــنا و. لږ څه وروســـته اوږدۀ او نري لاســـونه د دې پر اوږو راوڅرخیدل.

دې په لومړي ځل د یوه خنجر په شـان مایوسي حس کړه او وروسته یې بیـا د خوخول د لیدو سره زړۀ د خوشـــالۍ نه بال - بال شـــو. دغه دوۀ متضـــاد احساسات سره یو ځای شول او یو ډېره ورانونکې مینه یې منځ ته راوړه. دا مینه په یوه تاودۀ اهتزاز بدل شـــول، په پای کې مور بیخي بې هوښـــه شـــوله، لږ څه وروســـتـه مور حس کړه چې سر یې د آنـدري په غېږ کې پروت دی او هغه په خپلو ریږدیدلو لاسو سره د دې سر ټینګوي او د دې پر ویښتانو لاسونه تېروي. په دې وخت کې دۀ په نرم آواز سره چې د سندرې وزن یې درلود، وویل:

- نېنکو، مه ژاړه، خپل زړۀ مه خفه کوه، ډاډه اوســـه چې دوی به یې ډېر ژر خوشی کړي، تراوســـه پورې یې پر هغـۀ هېڅ شی نـه دي پیـدا کړي. ټول ملګري د ایشولیو ماهیانو په څېر خاموشه وو.

دۀ خپـل لاس د مور پر اوږو نیولی و او دا یې کوټې تـه بوتله. مور د یوۀ تور خوړلي حیوان په څېر خپلې اوښکې ژر-ژر پاکولې او د دۀ هر کلمې ته یې په ډېره لېوالتیا سره غوږ نیولی و.

- پاول تاته ډېر سـلامونه ویل، دی دومره ښۀ او خوښ و چې هېڅ حد او اندازه نه لري. هلته خلک ډېر وو. دوی تقریباً ســل تنه د ښـــار او زموږ د محلې څخه نیولي وو. په هره کوټه کې درې څلور تنه اوسـیږي. د جېل پیره داران ښه

خلک دي، دوی د ژاندارمو د فساد او شیطانت څخه تر پوزې پورې راغلي دي. د جېل آمرین هم دومره ډېر بد او د فساد څخه ډک نه دي. دوی د خلکو سره خبرې کوي او د خبرو طرز يې تقريباً شريفو خلکو ته ورته دی. نو له همدې کبله دوی موږ ته دومره ډېر زحمت نه راکاوهٔ. ملګري يو د بل سره خبرې کوي، کتابونه يو بل ته ورکوي، خپلې ډوډۍ سره شريکوي. دا يو ښه جېل دی، که څه هم زوړ او چټل دی، مګر ژوند يې دومره سخت نه دی. نورو جزايي بنديانو هم زموږ سره ښه سلوک درلود او مرسته يې راسره کوله. بوکين، زه او څلور نور ملګري له بند څخه خلاص شوو، د پاول نوبت به هم ژر را ورسيږي. ويسوفشيکوف ښايي تر ټولو وروسته وي، ځکه چې دهٔ به ټولو ته بد ويل او ډېر بد وضعيت به يې کاوهٔ. ژاندارم د دهٔ د ليدلو توان نه درلود. ښايي محاکمه يې کړي او اقلاً يو ښه لت ورکړي. پاول تل دهٔ ته ويل: «دغه وضعيت نور پريږده، ستا ښکنځل پر دوی هېڅ ښه تاثير نه کوي». مګر دهٔ به د پخوا په څېر نارې وهلې: « زه به دوی داسې د ځمکې څخه وتوږم، لکه سړی چې د خوګ پوست توږي». پاول ښه وضعيت کاوهٔ، خپل ځان متين او ثابت ساتي. زه يقين لرم چې هغه به دوی ډېر ژر آزاد کړي.

مور په خندا او آرامۍ سره وويل:

- ډېر ژر! بلې، زه پوهېږم ډېر ژر!

- اوس چې پوهېږې نو آرامه شه، ماته يو ګېلاس چای راکړه او ته راته ووايه چې ستا حال څنګه دی؟

دهٔ، مور ته په داسې حال کې چې خوله يې له خندا څخه ډکه وه، کتل او د دهٔ په سترګو کې يو مهربان او غمجن انګار ځلېدئ.

دې تر یو اسوېلي وروسته په داسې حال کې چې د دۀ په تورو ویښتانو ډک ډنګر مخ ته یې کتل، وویل:

- آندري جانه، ته پر ما ډېر ګران یې!

دی په څوکۍ کې شا او مخ ته خوځېدۀ، ویې ویل:

- ستا لږ ګرانښت هم زما د خوشالۍ لپاره کافي دی.

زه پوهېږم چې ستا زړه لوی دی او موږ ټول دربانديې ګران یو.

مګر مور ورته ټینګار وکړ:

- او تـه له ټولو نه زیات راباندې ګران یې! که چېرې تا مور درلودلای نو ټولو مېندو به پر هغې باندې ستا غوندې زوی د لرلو څخه حسـد او کینه په زړه کې حس کړي وای.

خوخول خپل سر وښوراوۀ او ډېر سخت یې په خپلو لاسونو سره ومښئ.

دۀ په ټیټه لهجه سره وویل:

- زه مور لرم، مګر نـه پوهېږم چې هغـه چېرې ژونـد کوي. - دې حیرانـه څېره ونیوله او ویې پوښتل:

- ته خبر یې چې ما نن څنګه یو عجب کار کړیدی؟ - دې په ډېرو ولولو سره د خپلو پاڼو د ویشلو کیسه وکړه او کله -کله به د خپلي مېړاني د ښودلو لپاره د خبرو په منځ کې درېدله.

خوخول په لومړي سر کې په ډېر حیرت مور ته وکتل او وروســته یې په ډېره شدیده خندا شروع وکړه.

په داســې حال کې چې خپلې پښــې یې ښورولې او خپل لاس یې په سر تېراوۀ، د خوشالۍ څخه په ډک آواز یې نارې وهلې:

- ستا دغه خدمت په هېڅکله هېر نه شي! دغه یوه حقیقي مرسته وه. پاول بـه څومره خوښ شي! نېنکو دغه یو ډېر حیرانوونکی کار دی! دا کار د پاول او ټولو ملګرو لپاره ګټور دی.

دې وویل:

- آندري، ته ډېر مهربانه یې. - د دې د زړهٔ د طوفان دروازې چې د هغو څخه د مینې او محبت د الفاظو سېلاب جاري و، خلاصې شوې. دې خبرو ته ادامه ورکړه: - ما خپل تېر ژوند را په یاد کړ، اې مهربانه عیـــسیـ! زه د څه لپاره ژوندی وم؟ ما بې له خپل مېړهٔ څخه بل څوک نه و لیدلي، بې له غم او ډار څخه مې بل شی نه پېژندهٔ. او د پاول په لوئېدو هېڅ پوهه نه شـــوم. زه نه پوهېږم چې پاول د پلار په ژوند کې پر ما ګران و او که نه. زما ټول ژوند او سرګرداني یوازې د یوه شي لپاره وه، هغه هم دا وه چې زه به خپل دغه وحـــشي حېوان په ډوډۍ سره آرام کړم، څو دی لـه مـا څخه خوشـــاله شي. ما دا کار ځکه کاوهٔ چې دی خفه نه شي او د دهٔ خفګان او زما وهل سره تړلي و. په دې ترتیب ما خپل ژوند کې د دهٔ چوپتیـا غوښـــتلـه، امـا زه هېڅکلـه د دهٔ مینه او محبت نشـــم را په زړهٔ کولای. دهٔ داسـې عادت درلود چې هر کله به یې چرت خراب شو، نو زهٔ به یې د یوه حېوان په څېر وهلم. دهٔ د هر چا سره کینه او دښـمني درلوده. په دغه ډول مې شـــل کـاله ژوند تېر کړ. ما خپل د پېغلتوب ژوند هېر کړی دی! کله -کله زه کوښـــښ کوم چې تېره زمانه را په زړهٔ کړم، مګر ګورم چې ټول شـــیان تر پنډې پردې لاندې شـــوي دي. پرون ایګور ایوانوویچ راغلی و. زهٔ او دی د یوه کلي یو. دهٔ، د کلي په باب ډېرې خبرې وکړې، ډېر شیان یې په یاد و، مګر زما څخه

هر څۀ هېر شــوي دي. زما د کلي دوه ځله اور لګېدنه په ياد ده، نور مې هر څه هېر شوي دي.

مور په دې وخت کې دا ډول ســاه وکښــله لکه ماهي چې له اوبو څخه وچې تــه وغورځي. پــه داســې حال کې چې د مخ و خوا ته يې تکيه کړې وه، آواز يې لږ څه کښته کړ، بيا يې خبرو ته ادامه ورکړه:

- زه خپل زوی ته د مېړه له مرګ وروســته ته متوجه شــوم، او ومې ليدل چې دۀ ګواښــونکې لاره غوره کړې ده. د دې درد زغمل ډېر سخت و. زۀ پر دۀ وبيرېدلم، ما فکر وکړ که چېرې کوم شی ده ته ورپېښ شي، نو زه به څنګه ژوند وکړم. آه، ما څه د شکنجو فکر وکړ. نژدې وه چې زړه مې وچوي.

مور د يو څو دقيقو لپاره خبرې بس کړې، وروسته يې سر وښوراوۀ او په ډېر عظمت سره يې بيا وويل:

- زموږ د ښــځو مينه يوه خالصه مينه ده، موږ هغه شی خوښوو چې زموږ شــخصــــي خير پکې وي، مګر زۀ چې تاته ګورم، ته دومره په خپله مور پســې غمجن يې، آيا هغه ســتا څه په درد خوړلای شي؟ ســتا همفکران د نورو خلکو لپاره غم ګالي، جېل ته ځي او يا ســايبريا ته تبعيديږي او په دې ډول قربانيږي، پېغلې او نازنينې نجونې په توره شپه کې لالهانده ګرځي. دوی په واوره، باران او يخنې کې هره ورځ ۸ کيلو مېتره مزل کوي او زموږ تر کوره پورې راځي! دوی څـه مجبوريـت لري؟ دوی ولې دا کـار کوي؟ دا ځکه چې دوی ډېره پاکه مينه پالي، دوی عقيده لري، د ټينګې ارادې خاوندان دي، مګر زه داسې مينه نه شم پيدا کولای، زه يوازې د خپل نژدې سره لېوالتيا لرم...

خوخول مخ واړوهٔ، د پخوا په شـــان يې خپل سر، باړخوګان او ســـترګې ومښلې او وويل:

- یه، تاسـې دا ډول نه یاست، هر څوک خپل نژدې شیان خوښوي، مګر که څوک یو لوی او پاک زړهٔ ولري، هر لېرې انسـان ورته نژدې دی. تاسـې ډېر فوق العاده کارونه ترسره کولای شئ. ستاسې مورنۍ مینه خورا زیاته ده.

دې په ټيټ آواز وويل:

- توکـل پر خـدای! زه فکر کوم چې دغه ډول ژوند ډېر ښــهٔ ژوند دی! آندري، تهٔ پر ما باندې حتی تر پاول هم ګران یې. دی ډېر پټ خولی دی، ماته هېڅ نه وايي. پاول غواړي چې د ساشېنکه سره وادهٔ وکړي او زهٔ په دې باره کې معلومات نه لرم.

خوخول مخالفت وکړ، ویې ویل:

دا کـار حقیقـت نـه لري. زه یقیناً پوهېږم چې دا کـار حقیقـت نلري، دا ریښتیا خبره ده چې دوی یو له بل سره مینه لري، مګر ښایي چې دوی هېڅکله وادهٔ ونه کړي. ساشېنکه غواړي چې وادهٔ وکړي، مګر پاول دا هیله نلري.

مور پـه دې وخـت کې د خوخول مخ تـه ســـترګې نیولې وې او په تریو تندي يې وويل:

- دا څنګه کیدای شي چې خلک له خپلې خوښې او نصیب څخه انکار وکړي...

خوخول وويل:

- پاول ډېر نادره سړی دی. پاول د اوسپنې په څېر کلکه اراده لري.

مور پـه داســې حـال کې چې په چرت کې ډوبه تللې وه، خبرو ته ادامه ورکړه:

- پاول اوس په جېل کې ناســت دی، دا لږ ويرونکي خبره ده او لږ خطر هم لري. اوس زمـا ژوند ځان ته بل شــکل غوره کړی دی، نو له دې جهته مې وېره هم بل ماهيت لري- اوس زۀ د ټولو څخه بيرېږم او زړۀ مې هم بدلون وموند. روح ســترګې خلاصــې کړې، دغه ســترګې د باندې ځار کوي، غم او خوښــيويني. ډېر شـيان شـته چې په هغو بيخي نه پوهېږم. تاسې ټول ښۀ خلک ياست، تـاســو ډېر ســخت ژوند د نورو لپاره منلی دی، زه پوهېږم چې تاســې ټولو د حقيقت لپاره پر ځانونو تکليفونه قبول کړي دي، اوس زه ستاسو په حقيقت پوه شـولم: تر څو چې په دنيا کې شتمن او مقتدره اشخاص موجود وي، تر هغې به خلک د هېڅ شي خاوندان نشــي، خوشالي او عدالت به ونه ويني! هېڅ شی به دوی په ژوند کې ونه ويني. زه اوس ســتاســو په منځ کې ژوند کوم، کله د تېر شوي ژوند خيال را پيدا شي، زما هغه ځوان زړۀ را په ياد شي، کوم چې د سوکانو لاندې اوبۀ شو. زه پر خپل حال باندې غمجنه شم او ټول راته تريخ ښکاري. دا اوس د ژوند په معنا پوه شـولم او ډېر آسانه معلومېږي. ورو-ورو زۀ د خپل ځان بريالیتوب ليدلای شم.

خوخول ولاړ شو او په خونه يې کې يې قدم وهل شروع کړل او کوښښ يې کاوۀ چې د پښو ترپهار پورته نشي.

دۀ په نرمۍ سره وويل:

- تاسو ډېرې ښې خبرې وکړې، ډېرې ښې! په کېرچ کې يوه ځوان يهود ژوند کاوۀ، دۀ به کله کله شعرونه ليکل، يوه ورځ يې وليکل:

*اې بې ګناه قتل شویو انسانانو-*

*د حقیقت په څواک به یوه ورځ تاسې را ژوندي شئ!..*

دی پخپله په کېرچ کې د پولیسـو لخوا ووژل شـو، خو مهمه دا نده، دلته مهم ټکی دا دی چې دی په حقیقت پوهېدلی و او د حقیقت تخم یې د خلکو په منځ کې وپاشۀ.

مور خپلو خبرو ته ادامه ورکړه:

- اوس چې خپله زه خبرې کوم او هغو ته غوږ نیســـم، نو په هغو باور نه لرم. مـا پـه خپـل ژوند کې د یوه شي په باره کې فکر کاوۀ، هغه دا و چې په څه ډول باندې یوه ورځ په بې غمۍ سره چې څوک مې ونه څوروي، تېره کړم او زه هم هېڅ شي ته متوجه نشم، مګر اوس زۀ د هر شي په باب فکر کوم. تاسې ټوله راته ګران یاست، ښایي ستاسې په شان پوهه ونلرم، خو بیا هم د ټولو خوشالي او په تېره بیا ستا خوشالي غواړم.

خوخول دې ته راغی او ویې ویل:

- منه!

دۀ د مور لاس پـه خپلو لاســو کې ونیو او پـه بیړه سره یې بل خوا ته مخ واړواړۀ. مور بې له تلواره په پټه خوله د لوښو په مینځلو پیل وکړ.

خوخول په داسې حال کې چې په کوټه کې یې قدم واهۀ، ورته وویل:

- منه، لازمه ده چې ویسوفشـیکوف ته هم مینه ور ښـکاره کړې. د دۀ پلار په جېل کې دی، ډېر بد سړی دی. کله چې ویسوفشیکوف دی ویني، ډېر ناوړه الفاظ ورته اســتمعالوي او دا کار ډېر بد دی. نیکولای ډېر مهربان دی، پر

دهٔ بـانـدې ســپي، موږکان او حېوانات لا ګران دي، مګر د انســانانو څخه ډېر کرکجن دی. يوازې وګوره چې دې سړي ته څه ورپېښېږي!

- مور په فکر کې ډوبه شوه، ويې ويل:

- د دهٔ مور بې له خبره ورکه شوه، پلار يې شراب خور او غل دی...

کله چې خوخول خپلې بسترې ته لاړ، مور په پټه سره پر دهٔ باندې په هوا کې د سپېڅلي صليب علامه وکښله. کله چې هغه څملاست او نيم ساعت تېر شو، مور ځنې وپوښتل:

- آندري، ته ويدهٔ يې؟

- يا، ولې؟

- شپه مو په خير!

- نېنکو، مننه، ډېره مننه! – له ممنونيت نه په ډک آواز دهٔ ځواب ورکړ.

## «۱۷»

بله ورځ چې مور د فابريکې دروازې ته راغله، پيره دارانو امر پر وکړ چې ټکرۍ پر ځمکه کېږدي او د دې د کاليو په تلاشـــۍ يې پيل وکړ. په هغه وخت کې چې دوی په تلوار د دې کالي لټول، دې په آرام آواز سره وويل:

- هر څهٔ به ساړهٔ شي.

پيره دار غبږ وکړ:

- چوپ شه!

يوه بل پيره دار مور په اوږه پورې وهله او باوري ډول سره يې وويل:

- ما خو ویل چې د کتارې د بهر څخه یې فابریکې ته را غورځوي.
کله چې دا فابریکې ته ننوتله، لومړی سړی سیزوف و چې دې ته راغی.
دهٔ شاوخوا ته وکتل او مور ته یې کرار -کرار وویل:
- آیا تا اوریدلي دي؟
- څه شی؟
هغه کاغدونه بیا دلته پاشل شوي دي، دوی په هر ځای کې داسې پاشلي دي، لکـه په ډوډۍ کې چې مالگه گډه کړې. د دوی تلاشـــۍ او توقیفونو هېڅ فایده ورته ونه کړه. زما وراره مازین یې هم په جېل کې واچاوهٔ، خو د څه لپاره؟ دوی ستا زوی هم بندي کړی، مگر اوس پوه شـول دا کار په دوی پورې اړه نه درلوده.
دهٔ ژر خپله ږیره په لاس کې ونیوله او په دقت سره یې ورته وکتل او یاده یې کړه:
- ته ولې زموږ کره نه راځې؟ یوازې به تنگه یې!
مور د دهٔ څخـه مننـه وکړه او د خرڅلاو نارې یې شروع کړې، په همدې وخت کې د فابریکې گډوډ حال ته هم متوجه شوه، ټول خلک وارخطا وو، چا چې به ډلې جوړې کړې وې، هغه به یې ړنگولې، خلکو به د یوه کارځای څخه بل ته ځغســتل. مور په همدې له دود نه ډکه هوا کې لږ خوشــالي او شــجاعت لیدل. دلته او هتله به تبصـــــــرې او له ملنډو نه ډکې چیغې پورته کیدلې. زړو کارگرو به پټ پټ خندل. جمادارانو به ډېر وارخطا وارخطا ځغسـتل او دوی ته بـه یې پـه ډېر دقت سره کتل، پولیســو به دې خوا او هغې خوا ته منډې وهلې.

چېرې چې به د کارګرانو ټولي دوی ولیدل، دستي به یې خبرې بس کړې او د دوی غمجنو څېرو ته به یې کتل. د کارګرو مخونه لږ څه نوراني وو.

ټول کارګران پاک او سوتره معلومیدل. د مشر ګوسیف لوږ قد دلته هلته څرګندیدهٔ. په هغه پسې یې کشر ورور د هیلۍ په څېر روان و او خندل یې.

واویلوف د نجارۍ جمادار او میرزا ایسای د مور له خوا څخه تېر شول. وړوکي ډنګر ایسای خپل سر پورته کړ، غاړه یې و کینې خوا ته کږه کړه او په داسې حال کې چې د جمادار بې حرکته او مغرور مخ ته یې کتل، په بیړه سره وویل:

- هغه دي دوی، ایوان ایوانوویچ خاندي، معلومیږي چې دوی په دې باندې ډېر خوښ دي، که څه هم دا کار لکه رئیس صاحب چې وفرمایل، د دولت د ړنګولو لپاره دی. دوی ته باید یوه سخته جزا ورکول شي.

واویلوف خپل دواړه لاسونه تر شا نیولي وو او حرکت یې کاوهٔ. دهٔ په یوه لوړ آواز سره وویل:

- اې، د سپي بچیه، هر څه چې دې زړهٔ وي، هغه چاپ کړه. زما لپاره بې تفاوته ده. مګر هېڅکله ځان ته جرئت مه ورکوئ چې زما په باب هم یوه کلمه ولیکئ.

واسیلي ګوسیف مور ته راغی او ویې ویل:

- مورې، غواړم چې نن بیا ستا ډوډۍ وخورم. ډېره خوندوره ده.

دهٔ خپل آواز ټیټ کړ، سترګې یې کوچنۍ کړې او ویې ویل:

- خپل کار مو وکړ، څومره ښه وشول.

مور په مينه سره خپل سر وښوراوۀ، دا د دې ملگري د خبرو څخه خوښه شوله، ځکه دا هلک په ټوله محله کې په شوخۍ او ټوکو مشهور و، مگر مور ته يې ډېر احترام وکړ. مور د فابريکې په شــور او زوږ هم خوښــه وه او فکر يې کاوۀ:

«که زه نه وای، دا کار به هم سرته نه وای رسيدلی...»

معمولي مزدوران د دې په مخ کې ودريدل او يوۀ د دوی څخه په تاسف سره وويل:

- هيڅ ځای مې پيدا نه کړ.

بل يې وويل:

- کاشــکې مې اوريدلي وای، که څه هم بې ســواده يم، خو بيا هم وينم چې سوچه ريښتيا يې ليکلي دي!

دريم کس شاوخوا وکتل او ويې ويل:

- راځئ چې بايلرخانې ته لاړ شو...

گوسيف مور ته سترگه ووهله او ويې ويل:

- ودې ليدل چې ټوله يې په خبرو راوستلي دي.

مور په خورا لوړه غاړه کور ته راغله.

آندري ته يې وويل:

- خلک په دې غمجن وو چې افســوس موږ پاڼې نشو لوستلای او سواد نلرو. کله چې زه ځوانه وم، شــيان مې لوســتلای شول، مگر اوس مې هر څه هېر کړي دي.

خوخول پيشنهاد وکړ:

- ولې يې بېرته نه زده کوې؟

- زما په سن؟ فقط خلک به پر ما پورې وخاندي؟

آنـدري د المـارۍ څخـه يو کتاب راپورته کړ او د هغې يوه حرف ته يې اشاره وکړه او ويې پوښتل:

- دا کوم حرف دی؟

دې په خندا سره ځواب ورکړ:

- ار.

- او دغه؟

- ئې

دا وشرميده او ناارامه شوله. مور ته داسې معلوميده چې د آندري سترگې پر دې بـانـدې خـاندي، نو ځکه يې د دهٔ له کتلو څخه ډډه وکړه. خو د دهٔ آواز ډېر نرم او لطيف و، مگر بڼه يې لږ جدي معلوميدله.

- آندري، ته په ريښتيا غواړې چې ماته څه شی راوښيې؟

دهٔ ځواب ورکړ:

- ولې نه، غواړم. که چېرې تا پخوا څه لوسـتلي وي، اوس نو لوسـتل ډېر اسانه کار دی. هغه وايي چې د هڅې په مخ کې هېڅ ډول ستونزه نشته.

- مگر يو بل متل هم شـته: سړی د سپېڅلو مجسمو په تش ليدلو نه زاهد کيږي.

خوخول سر وښوراوهٔ:

- امم، دا ډول ډېر متلونه شته. مثلاً یو متل وايي: آرامي په بې خبرۍ کې ده. مگر دا ډول شیان د نفس له تفکر څخه را پیدا شوې دي او په دې ډول دغه متلونه روح ته پړۍ ور اچوي. او دا کومه کلمه ده؟

مور وویل:

- خلک.

- ډېر ښهٔ، دا کوم توری دی؟

دې خپلې سترگې سره راوکښلې، کله به یې بانوگان سره نژدې کړل او په ډېر تکلیف سره یې هیر شوي توري ور په زړهٔ کول. ډېر ژر یې سترگې ستړي شوې. لومړی یې د ستومانۍ او بیا یې د حسرت اوښکې تویې کړې، ویې وژړل:

- دا عمر او زدهٔ کړه؟ زه څلوېښت کلنه ښځه یم او یوازې اوس الفبا زدهٔ کوم.

خوخول کرار-کرار وویل:

- مورې، مه ژاړه، تاسو د بل ډول ژوند کولو امکانات نه درلودل، خو بیا هم پوهېږئ چې ژوند مو خورا بد و. په زرگونو کسان کولای شي چې له تاسو نه ښه ژوند ولري، مگر د څارویو په شان ژوند کوي او حتی دوی لا لاپې وهي چې – مونږ ښه ژوند کوو! مگر آیا په دې کې څه ښه والی شته چې نن ورځ سړی کار کوي او ډوډۍ خوري، سبا کار کوي او ډوډۍ خوري او په دې ډول یې ټول ژوند تېرېږي.کله چې د دوی ماشوم پیدا شي، تر هغه وخته پورې یې ښهٔ ساتي چې هغه د ډوډۍ خوړل شروع کړي. د ډوډۍ تر شروع وروسته ماشوم تل ناارامه وي او تربل کیږي چې ژر لوی شه او ژر کار شروع کړه! دوی خوښ

دي چې خپل کوچنيان په اهلي حېواناتو سره بدل کړي، څو چې خپله ماشومان د خپل نس لپاره کار وکړي، ټوله پخواني حالت د سره شروع کوي. يوازې هغه کســـان د انســـان د نوم وړ دي چې خپـل ځـانونـه د نورو خلکو د آزادۍ لپاره شيندي چې تا هم دا دی اوس دغه ډول کار په خپله خوښه شروع کړی دی.

دې لږ څۀ ساه وکښله، ويې ويل:

- زۀ؟ زما دلاسه به څه وشي؟

تۀ کولای شـې! موږ د باران د څاڅکو په شـان يو، هر يو څاڅکی مو يو بوټی اوبوي. او ته هم بايد لوستل شروع کړې.

خوخول وخندل، ولاړ شو او په کوټه کې يې حرکت پيل کړ.

- تاسې بايد زدۀ کړه وکړئ! کله چې پاول راځي، لوستل به دي زدۀ وي.

مور وويل:

- آه، آنـدري! په ځوانۍ کې هر څۀ آســـانه وي، مگر چې زوړ شـــوې، غمونه زيات شي، ځواک لږ او عقل بيخي ورک شي.

«۱۸»

ماښـــام خوخول له کوره ووت، مور څراغ بل کړ او د جرابو په اوبدلو يې پيل وکړ. لږ څه وروسته له خپل ځايه څخه ولاړه شوه او بې له کوم هدف څخه يې په قدم وهلو پيل وکړ، وروسته بيا پخلنځي ته لاړه او د سرای دروازې ته يې قلف واچاوۀ او په داسې حال کې چې په ډېر شدت سره يې وروځې غورځېدلې، بېرته کوټې ته راوگرځېدله. مور چې کوټې ته راغله، د کوټې پر کړکيو باندې يې پردې راکش کړې او د الماری څخه يې يو کتاب راواخيســـت، راغله، د ميز په

خوا کې کېناستله، شاته يې نظر واچاوهٔ، کتاب ته ور کښته شوه او شونډې يې د کتاب په لوستلو سره ښورولې. هر کله چې به د بهر نه کوم غږ واورېدل شو، نو دې به سمدستي کتاب ټول کړ او د غږ لور ته به يې په ځير ځير غوږ نيولی و. تر لږ ځار وروسته به يې بيا کتاب خلاص کړ او په داسې حال کې چې خپلې سترګې يې وار په وار پټې او وازې کولې، د ځان سره زمزمه شروع کړه:

- تاسې ژوند کوئ، اژې- ژی، ځمکه، زموږ...

په همدې وخت کې کوم سړي ور وټکاوهٔ. مور سمدستي خپل کتاب په الماری کې کېښود او په وېره سره يې وپوښتل:

- څوک يې؟

- زه يم...

ربين په داسې حال چې په بړيره کې يې ګوتې وهلې، د کور په درشل کې معلوم شو چې ويل يې:

- پخوا به دې بې له پوښتنې ور خلاصاوهٔ، يوازې يې؟ هو. ما فکر کاوهٔ چې خوخول به دلې وي. ما هغه نن په کوڅه کې وليد...، داسې معلوميږي لکه په جېل کې يې چې هېڅ سختي او کړاو نه وي ليدلی.

تر پورتنی وينا وروسته کېناست او مور ته يې وويل:

- ستا په اجازه بهٔ لږ خبرې وکړو...

دهٔ په خورا عظمت مګر مخفيانه ډول سره مور ته وکتل او مور د دهٔ له دې کتلو څخه ډېره وارخطا شوه.

- د هر شي لپاره پيسې پکار دي! – دهٔ بيا په دې عجيب ډول سره خبرې شروع کړې. – زيږيدل او مړهٔ کېدل هم پيسو ته اړتيا لري. دغه کتابونه او

پیغامونه هم د پیســو په لگولو سره په لاس راځي. آیا ته پوهېږې د دې کتابو د چاپ مصرف له کومه ځایه راځي؟

زه نه پوهېږم، - په داسې حال کې چې د بدگمانۍ حس د دې په زړهٔ کې رابیداریدهٔ، مور په نرمۍ سره وویل.

- زه هم نه یم خبر، او بله پوښتنه لا دا ده، چې دا کتابونه څوک لیکي؟

- پوه خلک یې لیکي...

- بـاداران! ربین وویل او د دهٔ پر پلن او لویه ږیره لرونکي مخ باندې یوه سره لمبه راغله. – په بل عبارت دغه بډای خلک دي چې کتابونه د نورو بډایانو پر ضــد لیکي او عـامو خلکو تـه یې ورکوي. اوس تـه مـاته ووایه چې د دوی مطلب له دې کار نه څه شی دی؟ ولې دوی خپلې پیسې د دې لپاره په مصرف رسوي چې عام خلک د خپل ځان پر ضد اغتشاش ته راپاڅوي. مور په ډېر ډار سره دهٔ ته وکتل، سترگې یې ورپولې او ویې ویل:

- ته خپله په دې باره کې څه فکر کوې؟

- آهـا! مـا پـه دې بـاره کې ډېر فکر کړی دی او هر کلـه مې چې دغـه موضوع کشف کړه، نو له ډېرې وارخطایۍ څخه مې ځان بد حس کړ.

- آیا کومې نتیجې ته رسیدلی یې؟

- خطا ایسـتنه! ربین ځواب ورکړ. ـ بل شی نه دی بې له خطا ایستنې، دا ښــاغلي خپـل چلونـه کوي او مـاتـه حقیقت پکار دی. زه اوس په حقیقت پوه شــوم. د دې ښــاغلو سره زه نور ملگرتیا نشــم کولای، دوی هر وخت که لازم وگڼي، ما وړاندې پورې وهي او زما پر هډوکو باندې د پله په شــان دوی مخ ته تیریږي...

مور په ډېر غم سره وویل:

- اې مهربانه خدایه! آیا دا شونې ده، چې پاول او نور ټول ملګري په دې ټکي نه وي پوه شوي؟

مور چې د ایګور، نیکولای ایوانوویچ، ساښنکه صادقانه، شرافتمند او جدي مخونه ور په زړهٔ کړل، د زړهٔ درزا یې چټکه شول او خپل سر یې د انکار په توګه وښوراوهٔ.

- یه! یه! دا شونې نه ده، دوی ټول هغه خلک دي چې د پاک وجدان څښتنان دي.

- ستا مقصد څوک دی؟ - ربین په داسې حال کې چې په فکر کې ډوب تللی و، وپوښتل.

- دوی ټول، حتی د دوی وروستی کس، کوم چې ما لیدلی دی!

- مور، ته حقیقي ځای ته نهٔ ګورې، لږ وړاندې وګوره! – ربین په داسې حال کې چې خپل سر یې وخانډهٔ، وویل: - هغه خلک چې زموږ سره یو ځای شوي دي، ښایي دوی هم په دې خبره هېڅ پوه نه وي مګر یوازې عقیده لري چې دا ډېر ښهٔ کار دی. ښایي د دوی و شاته ځینې نور خلک وي چې هغوی یوازې په خپله ګټه پسې ګرځي؟ هېڅوک بې له کوم مقصد څخه پر خپل حق باندې پښه نه ږدي...

دهٔ د یوه بزګر په څېر په پوره باور سره زیاته کړه:

- د دې ښاغلیو خلکو څخه به هېڅ فایده ونه لیدلی شي.

- ته د څه شي په فکر کې یې؟ - مور په ډېر شک او تردید سره ورځنې وپوښتل.

- زه؟ - ربین مور ته وکتل، لږه شېبه پټه خوله پاته شو او تکرار یې کړه: - مورې باید له دې خلکو څخه لېرې اوسو او بس.

دی بیا تریو غوندې شو او د څهٔ وخت لپاره پټه خوله ناست و.

- ما غوښتل چې د دې ملګرو سره یو ځای شم او یوه لار ورسره ونیسم. زه د همدې کار وږ یم. زهٔ پوهېږم چې خلکو ته باید څه وویل شي. غوښتل مې چې په همدې مطلب پسې لاړ شم. مګر اوس زهٔ ځان د هغوی له ډلې څخه راباسم. باور کولای نشم، باید له دوی څخه بېل شم.

ربین خپل سر راکوز کړ او په یوهٔ ژور فکر کې ډوب شو.

- زهٔ به یوازې کلیو او اطرافو ته ولاړ شم، خلک به وپاروم، غواړم چې خلک پخپله پوه شي. که خلک په حقیقت پوه شي، نو دوی به حتماً یوه غوره لار پیدا کړي. خلک بې له ځانه پر چا اعتماد نشي ـ کولای، بې لهٔ خپله عقله د بل عقل پکار نه راځي.

د مور په زړهٔ کې د ربین په برخه کې مهرباني او زړهٔ سواندي ور پیدا شوه او د دهٔ په راتلونکي ژوند باندې وویریدله. که څه هم ربین مور ته تل ناخوښه ښکارېدهٔ، خو بیا هم اوس هغه مور ته نژدې شو؛ مور په نرمۍ سره وویل:

- هغوی به تا ونیسي...

ربین و مور ته په کراره وکتل او ځواب یې ورکړ:

- حکومت به ما ونیسي، بندي به مې کړي، لږ څهٔ وروسته به بېرته ما خوشی کړي او زهٔ به بیا خپل فعالیت د سره څخه شروع کړم...

- ښــايي چې پخپله دهقانان تا ونيسي ـ او د ناپوهۍ له مخې دې په جېل کې واچوي او ډېر دي په عذاب کړي...

- زه به خپل بند پوره کړم او د سر څخه به بيا خپل کار شروع کړم. بزگران به ښايي په لومړي سر کې يو وار يا دوهٔ واره ما وټري او ووهي، مگر په پای کې خو به پوه شي، چې زه دوی ته څه وايم او زما دا وينا د چا په گټه ده، وروسته به پوه شي او مـاتـه به غوږ کېږدي، زهٔ به دوی ته ووايم: «پر ما عقيده مه لرئ مگر يوازې غوږ راته کېږدئ». که چېرې يو وارې دوی ماته غوږ کېږدي، نو وروسته به اعتقاد راباندې پيدا کړي!

دهٔ به د هر لغت په باره کې فکر کاوهٔ او ډېر کرار کرار به غږيدهٔ.

- زما ټول عمر دلته تېر شو، مگر په پای کې په لږ څه باندې پوه شولم، د حق رڼا زما په زړهٔ کې پيدا شوله...

ميخائل ايوانوويچ، دا به ستا د مصـيبت سـبب شي! – مور په ډېر غم او پرېشانۍ سره وويل.

دهٔ پـه خپلو تيزو تورو ســترگو سره دې ته د امتحان په توگه وکتل، خپل پيـاوړی بـدن يې مخ ته واچاوهٔ او د څوکۍ بازوگان يې پر دواړو لاســو ټينگ کړل. توربخن مخ يې د لويې بږيرې په منځ کې سپېرهٔ معلوميدهٔ.

- آيا د حضرت عيسی دا خبره ستا په زړهٔ نه ده چې وايي:

هغـه څوک چې غواړي د دوهم ځـل لپاره ژوندی شي لازم دی چې يو وار مړ شي. ښــايي چې مرگ ډېر ژر پر مـا حمله ونـه کړي، ځکـه زهٔ د زړې گيدړې په څېر مکار يم.

ربین په خپله څوکۍ کې مخ او شاته وښوریدۀ، وروسته په ډېره آرامۍ سره ولاړ شو.

- اوس میخانې ته ځم. هلته د خلکو په منځ کې کېنم.

اوس خوخول نه معلومیږي. هغه بیا په هماغو هلو ځلو مصــــروف شـوی دی؟

- هو! – مور په موسکا سره ځواب ورکړ.

- ډېر ښه. کله چې راغی زما د راتګ په باره کې ورته ووایۀ.

دوی اوږه په اوږه ورو-ورو د پخلنځي و خوا ته روان شـول او بې له دې چې یو بل ته نظر واچوي، خبرې یې سره کولې. د کور په دروازه کې دۀ وویل:

- د خدای په امان!

- په مخه دې ښه. د فابریکې سره به کله حساب خلاص کړې؟

- خلاص کړی مې دی.

- نو حرکت به کله وکړې؟

- سهار وختي. د خدای په امان!

ربین د کور په دروازه کې خم شو او زړۀ نا زړۀ بهر ته لاړ. د یوې دقیقې لپاره مور هم هلته ودریدله، د دۀ د درنو قدمونو کښــهار ته یې غوږ ونیو. په زړۀ کې یې ډېر شک او تردید ور پیدا شو. وروسته کرار-کرار د خپلې خونې و خوا ته رهي شـــوه، خونې ته چې راغله، له کړکۍ یې پرده را پورته کړه. د باندې هم بې حرکته ډېره تیارۀ وه.

«زه په تورتم کې ژوند کوم!» دې فکر وکړ.

مور د دې مشر او ګردي بزګر په برخه کې ډېره ناآرامه وه.

اندري په خورا خوښۍ سره کور ته راغی.

کله چې مور و دۀ ته د ربين په باره کې بيان وکړ، دۀ ناره ووهله:

- خير دی، پريږده چې دی په کليو کې وګرځي، د عدالت او حق زنګونه ووهي او خلک راويښ کړي. ربين ته دا ســخته تماميږي چې زموږ سره په يوه لار لاړ شي. د دۀ سر د کليوالي نظريو څخه ډک دی، په هغه کې زموږ د نظريو لپـاره ځـای تنـګ دی... [پـه دې ځای کي ربين، د ۲۰ مي پيړۍ په پيل کي، د روســيې د بزګري نـاردونيکـانو غورځنګ نظريات خپل کړي. بلشــويکانو، د اکتوبر په انقلاب او تر هغه وروستـه عصر کي، د بزګري ناردونيکانو نظريات په تيورۍ او پراتيک کي رد کړل او د هغو ناسموالی يې په اثبات ورسوئ. ل.ل]

- ربين د ښــاغلو په باب خبرې کولې، د دۀ په ويناوو کې يو شی و. دی وايي چې دوی تاسې تېر باسئ! – مور په احتياط سره وويل.

- آه، نېنکو، پيسې! – خوخول په خندا سره ورغږ کړ- کاشکې موږ پيسې درلودای! موږ تراوسـه پورې د نورو په پيسو کار کوو. موږ څو ملګري يو، چې هر يو د خپـل توان پـه اندازه موږ ته پيســې راکوي، مثلاً نيکولای ايوانوويچ د مياشتې پنځه اويا روبله ګټي، د دغو پيسو څخه پنځوس روبله موږ ته د فعاليتونو د دوام لپاره راکوي، ټول ملګري په همدغه ډول موږ سره مرســته کوي. کله کله د پوهنتونو وږي او خوار محصلان هم موږ ته څه بسپنه راليږي. بې له شکه چې زموږ سره بـډای خلـک هم وي، مګر ځينې يې کرار -کرار له موږ څخه ځي او ځيني لا غواړي چې موږ وغولوي، مګر زموږ سره يوازې شريف او بـاوجـدانـه خلک پاتيږي.

آنـدري خپـل لاســونـه سره یو ځای کړل او په پوره ایمان سره یې خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

- که څه هم زموږ مطلق او کامل بری ډېر لېرې دی، خو سره له دې موږ غواړو چې د می د میاشــتې په لومړی ورځ کې یو ســپک جشــن جوړ کړو، همدغه سپک جشن به یوه ورځ په عظمت او لویوالي سره ولمانځل شي.

د آندري خبرو هغه شــک او اندېښــنه چې مور ته د ربین د خبرو څخه ورپیـدا شــوې وه، لـه منځـه یووړه. آنـدري پـه کوټـه کې دېخوا اېخوا تلئ، په ویښــتانو کې یې ګوتې وهلې او په داســې حال کې چې مخکې ته یې په دقت کتل، ویې ویل:

- تاسې پوهېږئ، کله -کله مې په زړهٔ کې یو عجیب شی راګرځي او فکر کوم چې چېرې لاړ شــم، د هغه ځای خلک زما ملګري دي، دوی ټول مهربانه او خوشــاله خلک دي او یو واحد تن یې جوړ کړی دی. په دې مشــترک بدن کې د هر چا زړهٔ ځانته یوه بدله وایي، مګر ټول یو مفهوم لري. د دوی بیلي-بیلي غزلې و هغو ویـالو تـه ورته دي، کومې چې یوه ســیند ته بهیږي، دا ویالې ورو ورو سره یو ځـای کیږي، لوئیږي، ســینـدونـه جوړوي او په ډېره آزادانه ډول د خوښـۍ او نوي ژوند و لور ته روانې دي او په پای کې د ښادۍ او نېکمرغۍ په بحر کې توییږي.

مور کوښښ کاوهٔ چې بې حرکته پاتې شي او د دهٔ د خبرو مخه ونه نیسي. مور بـه لـه هر چـا نـه ډېر زیـات په دقت سره د آندري خبرو ته غوږ نیولی و. د آندري خبرې تر هر چا ســاده وې او هر خبره به یې راســاً د ســړي د زړهٔ سره اړیکـه نیول. پـاول هېڅکلـه و مور ته د راتلونکي ژوند د طرز په باب څه نه وو

ویلي، مګر آنـدري لکه چې مور ته معلومیدهٔ، تل په راتلونکي ژوند کې حاضر و او د دهٔ په خبرو کې به تل د ټولو خلکو د راتلونکي جشن په هکله یوه افسانه موجوده وه. دغـه افســانـه مور ته د دې د زوی او د دهٔ د ټولو ملګرو د ژوند او فعالیتونو مفهوم په جوته روښانه کاوهٔ.

- هر کله چې پر هوښ راشم، ګورم چې شاوخوا ټول شیان ساړهٔ او کثیف ښکاري، - په داسې حال کې چې سر یې وښوراوهٔ، خوخول وویل، - ټول خلک چې ګوري ستړي او ستومانه دي او له ډېر غضب نه ډک دي...

په یوهٔ غمجن آواز سره یې ادامه ورکړه:

- کـه څـه هم غمجنـه خبره ده، خو بیـا هم باید په هر چا باور ونه شي او حتی د هغوی څخه وډار شي او کرکه ور څخه وکړي. یو سـړی دوه اړخه لري: ښــایي چې ســړی هغه دواړه خوښ کړي، آیا دا کار شــونی دی؟ که چېرې یو سړی پر تا باندې د لېوني سپي په څېر حمله وکړي، آیا هغه بخښلای شې؟ کوم ســړی چې ســتا روحي جلال ونهویني، انســانیت تر پښــو لاندې کړي، ته هغه بخښـلای نه شـې، ځکه ته پخپله انســان یې او د روح خاوند یې. دا کیدای شي چې یو ســړی د هر ډول ســختیو په مقابل کې مقاومت وکړي، مګر لازمه نه ده خلکو تـه اجـازه ورکړي، چې هغوی پر دهٔ بـانـدې ډول ډول کړاوونه راولي. یو سړی نه شي کولای چې خپل ځان د نورو د وهلو د تمرین لپاره ډالۍ کړي.

اوس د آنـدري ســترګې پـه یوې لمبې سره ســوځیدلې، سر یې لاندې ځړولی و او په ډېر ټینګار سره یې خبرې کولې:

- که چېرې یو غلط او ناوړه شی زموږ په چاپېریال کې ووینم، که څه هم ما ته یې تاوان را ونه رســیږي، زه باید هغه ونه بخښــم، زه د دې مځکې یوازینی

اوســـیـدونکی نـه یم! کـه نن زه کوم ســـړي ته اجازه ورکړم چې هغه پر ما ظلم وکړي، دا زه دغه ظالم د راتلونکي ظلم او استبداد لپاره تقویه کوم او دی سبا د نورو خلکو سره هم ظلم او تشدد کوي. سړی ټولو خلکو ته په یوه سترګه نشـي کتلای، لازمه ده چې د هر چا په اړه ډېر دقت وکړو او د هغوی په منځ کې توپیر ته قایل شـو: دا خلک زموږ دي- هغه خلک پردي دي. انصـاف ښـهٔ دی، مګر انصاف د تسلی سبب نه ګرځي!

مور ته د یوهٔ نامعلوم علت په اثر ساشـېنکه او منصـبدار ور په یاد شـول. اوسېلی یې وکېښ او ویې ویل:

- د ناپاکو او خرابو اوړو څخه باید څنګه ډوډۍ حاصله شي!..

- زموږ لویه ستونزه هم دغه ده! – خوخول وویل.

هو، دا خبره ډېره مهمه ده! – مور وویل.

پـه همـدې وخـت کې مور ته د خپل مرحوم مېړهٔ د غم او له درد نه ډکه څېره ور په زړهٔ شـــوه. وروســـته یې ځان سره فکر وکړ چې دا به څنګه وي، که خوخول د ناتاشا او پاول د ساشېنکه سره وادهٔ وکړي.

- دا ولې داســـې وي؟ - خوخول مور ته مخ راواړاوهٔ او پوښـــتنه یې ترې وکړه. – دا ډېره ساده خبره ده، دومره چورت نه غواړي. د دې قضیې اصلي علت هم دا دی چې ټول خلک یو شـان نه دي، راځئ چې د دوی ژوند سره مساوي کړو! ټول هغه شیان چې په فکر کې را پیدا کیږي او په لاس جوړیږي، د خلکو پـه منځ کې په مســـاویانه ډول وویشـــو. راځئ چې ټول خلک له ډار، کینې او غلامۍ خلاص کړو، د حرص او ناپوهۍ بندونه مات کړو!..

دوی به تر دغه وروسته ډېرې خبرې چې ټولي د ټولنې د نظام او د هغې د غړو د ژوندانه په باره کې وي، کولې.

خوخول بېرته په فابریکه کې ومنل شـــو او دۀ به خپل ټول معاش مور ته ورکـاوۀ، مور بـه هم دا معـاش داســـې مـانـۀ، لکه د خپل زوی پاول معاش چې اخلي.

کله چې به آندري په موسکا سره مور ته پېشنهاد کاوۀ:

- نېنکو، د لږ لوست سره څنګه يې؟

دې به خندل، مګر تل به يې ســخت مخالفت کاوۀ، د دۀ د ســترګو حرکت او موسکا به د دې د خوابدۍ سبب کېده او داسې فکر به يې کاوۀ:

«که خاندې، نو ولې وړاندېز کوې؟»

مګر تـل بـه دې ظـاهراً ډېر زړه نـا زړه سره د آنـدري څخـه د ځينو نويو لغتونو د معنا په باب پوښـــتنه کوله. د پوښـــتني کولو په وخت کې به يې خپلې سترګې بلي خوا ته نيولي وې او آواز به يې بې تفاوته ښکاريدۀ. دۀ اټکل وواهه چې مور پټ - پټ څه لولي. دۀ د دې د شخصيت د قدردانۍ لپاره نور د دې د درس په باب پوښتنه ونه کړه. مور يوه ورځ آندري ته وويل:

- آندري، زما سـترګې ورځ په ورځ د ليدلو ځواک له لاسه ورکوي، نو له دې امله يوه جوړه عينکو ته اړتيا لرم.

- دا خو اســانه خبره ده!- خوخول ځواب ورکړ. – د يکشــنبې په ورځ به ښار ته لاړ شو او ډاکټر به ووينو. وروسته به د هغه له لارښوونې سره سم عينکې رانيسو...

مور درې واره جېل تـه د پاول د ليدلو لپاره ورغله، مگر هره پلا د بندي خانې د مشـــــر لخوا منع شـوه. د پوليسو مشـــــر يو زوړ سپينو ويښتانو لرونکی جنرال و، باړخوګان يې سرۀ او پزه يې لوړه وه. د پوليسـو مشر به هره پلا د انکار په وخت کې داسې ويل:

- ښايي چې په بله اونۍ کې تاته د زوی د ليدلو اجازه درکړل شي، موږ به په دې اړه فکر وکړو، خو اوس تاته هېڅ اجازه نشته...

هغه ډېر چاغ او تک ســـور و او مور ته د دۀ څېرې يوه پخه الوچه ور په زړۀ کوله. دغه سړي به تل خپل سپين غاښونه په يو غاښ ټومبونې سره ټومبل، د دۀ کوچنۍ شـنې ســترګې به تل په خوښــۍ سره رپيدلې، غږ به يې تل عادي او دوستانه و.

- دی ډېر باادبه سړی دی! – مور و خوخول ته وويل. – تل خاندي...

- هو! – خوخول ځواب ورکړ. – په دې کې هېڅ شــک نشــته چې دوی ټول ځانونه شريف او خوشـــاله ښــکاره کوي، د دوی چل او هنر هم په همدې کې دی. که چېرې دوی ته ووايې:

«دغه هوښيار او شريف سړی زموږ لپاره ګواښونکی دی، بويې ځه او په دار يې کړه» دوی به وخاندي او هغه به په دار وځړوي او بيا به وخاندي.

- هغه منصبدار کوم چې زموږ کور ته د تلاشۍ لپاره راغلی و، لږ ساده و او د سپي صفت يې راساً معلومېدۀ...- مور زياته کړه.

- دوی ټول نه انسانان دي او نه هم انسانيت لري. حال دا چې نور شريف انســـانان د تعقل او تفکر له مخې د نورو ژويو څخه بيلېږي، دوی هېڅ د خپلې

ارادې او عزم خاوندان نه دي، دوی ته شرف او وقار معنا نه لري، دوی ته محبت او بشـــردوستي بې معنا کلمې دي، لنډه دا چې دوی عیناً د چګُش حیثیت لري چې د خلکو د ذهنو او سرو د پاسـه د نورو د ناجایزو هیلو د حصول لپاره پورته کېږي او د هغوی فکر او ذهن د خپل طبیعي سیر او تکامل څخه انحراف کوي. دا د ښو لباسو خاوندان د هغو ځناورانو د لاس آلې دي چې هغوی د بشـــریت او انســانیت سره ډېره زړه او اوږده دشـــمني لري، دوی خاص د بشرــ د فکر د ګوابښ او د جسم د توږلو لپاره استعمالیږي.

پـه راتلونکي اونۍ کې د جېـل مـامورینو مور تـه د پـاول د لیـدلو اجـازه ورکړه، مور د یکشـــنبې په ورځ کې و جېل ته راغله، په ډېر عجز سره د دفتر په یوه کونج کې کېناســـته. په همدې کوچني، چټله، تیټه کوټه کې نور ډېر خلک هم د خپلو بنـدیـانو د لیـدلو لپاره راغلي او د اجازې په تمه وو. د نورو خلکو د خبرو او بحثو څخـه دا معلومیدل چې دوی څو ځله نور هم دلته راغلي او یو د بل سره آشـنا شوي دي. دوی اوس بیا کرار -کرار د خپلو خبرو په واسطه د دې کوټې فضا ناآرامه کړه.

- دا خبره مو اورېدلي ده؟- یوې چاغې ښځې چې پړسیدلی مخ یې درلود او د سفر خورجین هم ورسره و، وویل. -نن د دعاء په وخت کې د کلیسا متولي د یو غزل خوان هلک غوږ پرې کړی...

یو مشـر سړي چې د یوه متقاعد منصبدار دریـشي یې اغوستې وه، دروند ټوخی وکړ او ویې ویل:

- سندرې ویوونکي ټول شیطانان دي!

یو بـل گردی پـک سـړی چې خورا لنډې پښې یې درلودې، پـه ډېر عصبانیت سره د دفتر پر شاوخوا باندې راگرځیده. بې له دې چې توقف وکړي، دهٔ به په ډېرو ولولو سره نارې وهلې:

- نرخونه ورځ په ورځ لوړیږي، ځکه نو د خلکو اعصـاب خراب دي. د غوا غوښې چې دوهمه درجه وي، پونډ یې په ۱٤ کوپیکه شـویدی، د ډودۍ قیمت بیا دوه نیم کپیکو ته راورسید...

کلـه چې به بندیان دفتر ته راتلل، دوی به ټولو خاکي کالي اغوستي او درانهٔ څرمنیز بوټونه به یې په پښو وو، نیم روښانه دفتر ته به دننه شول، سترگې به یې رپیدلې. د یوه بندي پر پښو باندې ځنځیر راپیچ شوی و.

په عمومي ډول سره د جېل فضـا آرامه او هر څه سـاده معلومېدل. داسې معلومېـده چې ټولو د دې خپـل اوسـني حالت سره له پخوا نه عادت نیولی او پخلا شـوي دي؛ ځینې خلـک کرار ناسـت دي، ځینې نور په ټنبلۍ سره پهره داري کوي، د خلکو دریمه ډله په ډېره ستونزه او سُستۍ سره د بندیانو د لیدلو لپاره راځي.

د مور زړهٔ د بې صبرۍ څخه غورځیدهٔ، دې به په ډېر حیرت سره شاوخوا ته کتل او دې نظام ته په حیرانتیا کې تللې وه.

د مور و څنگ ته یوه زړه وچ مخې ښځه ناسته وه، د دې نور ټول وجود زوړ و، مگر یوازې یې سترگې و ځوانې ښځې ته ورته وې. دې ښځې به خپله نرۍ غاړه تاو کړه او شاوخوا ته به یې وکتل، د هر چا و خبرو ته به یې غوږ نیوئ او ټولو ته به یې د غیرت په سترگو کتل.

- خورکۍ، د چا د ليدلو لپاره راغلې ياست؟ - مور په نرمۍ سره له ښځې پوښتنه وکړه.

- د زوی د ليدلو لپاره، زوی مې د پوهنتون محصل دی، - سپين سري ښځې په خورا لوړ آواز او بېړه سره ځواب ورکړ- او تاسې د چا لپاره راغلي ياست؟

- زه هم د زوی د ليدلو لپاره راغلې يم، زما زوی يو کارګر دی.

- ستا د زوی نو څه دی؟

- ولاسوف

- دا نوم راته آشنا نه دی. ډېر وخت کيږي چې بندي دی؟

- اومه اونۍ کيږي چې دلته يې راوستی دی...

- آه، زما د زوی دغه لسمه مياشت ده! – زړې ښځې په لوړ آواز د غرور په لهجه سره ووېل.

- بلې، بلې! – پک سري بوډاګۍ په بېړه سره ويل. – هېڅ ته حوصله نده پاته شوې... هر څوک په ډېر عصبانيت سره ناره وهي، د شيانو نرخونه ورځ په ورځ پورته کيږي. د بلې خوا څخه د خلکو قيمت وار په وار ټيټيږي. پخلاکوونکي آوازونه نه اوريدل کيږي.

- بالکل صحيح ده! – متقاعد منصبدار په خبرو کې ور ولوېد.

- دا څه قباحت دی! يو دروند غږ پکار دی، چې ووايي چوپ او ټوله چوپ شئ. بې له دې نه کار وران دی...

ټولو خلکو لږ جرئت پيدا کړ او په خبرو کولو يې شروع وکړه. مجلس عمومي شو. هر يوه به په ډېره بېړه سره د ژوندانه د چارو په اړه خپله نظريه

ورکولـه. دوی ورو - ورو خبرې کولې، مګر مور د دوی د مفکورو سره مخالفه وه، ځکه د دې د کور خبرو د دې ځای د بحث سره ډېر فرق درلود. هلته هر څه ساده، عام فهم او واضح وو، هر چا به په لوړ آواز سره خبرې کولې.

یوه چـاغ پهره دار چې ګردۍ مربع شـــکلـه ږیره یې درلوده، د مور نوم واخیست، مور ورغله، اول یې هغه د سر څخه تر پښو پورې معاینه کړه، وروسته بیا د باندې خوا ته ګوډ ګوډ رهي شو او مور ته یې وویل:

- په ما پسې راځه...

مور ورپســـې روانه وه او غوښـــتل یې دا ګوډ چاغ پهره دار ټېله کړي او ورته وواېي چې چابک شــه. پاول په یوه وړوکي کوټه کې ولاړ و، خندل یې او خپـل لاس یې مور تــه ور اوږد کړ. مور د دهٔ لاس ټینګ ونیو، ویې خندل او په داسـې حال کې چې د ډېرې وارخطایۍ له امله یې خپلې سترګې ژر ژر رپولې، په نرمۍ سره وویل:

- سلام... سلام...

- مورې، آرامه اوسه!- په داسې حال کې چې د مور لاس یې ټینګ ونیو، پاول وویل.

- خیر دی...

- دغه ده مور دي هم وګوره!- پهره دار تر یوه اوسـېلي وروسـته وویل. – اما ته د دې څخه لېرې ودرېږه څو چې ستاسو په منځ کې پوره واټن پیدا شي...



پهره دار د پورتنۍ جملې تر ویلو وروســته یوه اوږد اررږمۍ وکړه. پاول د مور څخه د دې د روغتیا او د کور د جریان په باره کې پوښتنه کوله. مور د یوې بلې پوښــتنې په تمه وه او د زوی و مخ ته یې ســترګې جګې نیولې وې، مګر د دې دغه تمې څه ګټه ونه کړه. پاول د پخوا په شــان آرام و مګر د مخ بڼه یې لږ څه سپیره شوې وه او سترګې یې تر پخوا غټې معلومیدلې.

- ساشینکه هم سلامونه درته ویل!- مور وویل.

د پاول بانړوګان وغورځیدل، د مخ بڼه یې نرمه شــوه او نرۍ موســکا یې وکړه. مور په دې حرکت لږ څه ناآرامه او خوابدې شوه.

- آیا فکر کوې چې دوی به تا ژر ایله کړي؟- مور په خورا عصــبانیت او خوابدۍ سره وویل. – د څه لپاره یې ته دلته بندي کړی یې؟ هغه پاڼې بیا هم په فابریکه کې پیدا شوې دي.

د پاول سترګې له خوښۍ څخه وبرېښېدلې.

- رښتیا؟- هغه په چټکۍ سره وپوښتل.

- د دې شیانو بحث دلته ممنوع دی! تاسې یوازې د خپلو کورنیو چارو په هکله خبرې کولای شئ... – پهره دار په خوب لړلي غږ سره وویل.

- آیا دا د کور چارې نه دي؟ - مور و پهره دار ته د اعتراض په توګه وویل.

- زه نه پوهېږم. مګر دا ډول خبرې دلته منعه دي،- پهره دار په بې پروایۍ سره ټینګار وکړ.

- ډېر ښه، مورې، د کور په باب وغږېږه، - پاول وویل. – دا ووایه چې ته په څه کار اخته یې؟

مور په داسې حال کې چې د خپل وجود په دننه کې یې ځوان غیرت احساساوه، ځواب ورکړ:

- و فابریکې ته دغه ټول شیان وړم...

د لږ وخت لپاره غلي شوه، بیا په خندا شوه او دوام یې ورکړ:

- ته پوهېږې چې د ماریا آش، ښوروا او داسې نور شیان چې پخوي یې، زه و فابریکې ته وړم.

پاول د مور په مطلب پوه شو. د ده مخ په شور راغی او هڅه یې کوله چې خپله خندا غلې کړي. ده خپل لاس د ویښتانو په منځ کې وواهه او په ډېر نرم او له نوازش نه په ډک آواز سره چې مور هېڅکله نه و اورېدلی، وویل:

- دا ښه کار دی چې تا خپل ځان په یوه شي مصروف کړی دی. پام به دي پر بله وي.

- کله چې هغه پاڼې بیا هلته ښکاره شولې، نو زه یې هم تلاشي کړم.- مور د لاپې په ډول وویل.

- بیا مو شروع وکړه! – پهره دار د ګیلې په ډول وویل.- ما درته وویل چې دغه خبرې دلته منع دي! دوی ســړی بندي کوي چې په دغه جریان خبر شي. تاسو ته خو معلومه ده چې کوم شی منع دی.

- مورې، بس دی، دا خبرې مـه کوه! – پـاول وویل. – ماتوئی ایوانوویچ ښهٔ سړی دی، باید خفه یې نه کړو، زه او دی دوستانه ژوند کوو. دا یوه ښه موکه ده، چې دی نن ســتا د کتنې په وخت کې حاضر دی. معمولاً د آمر معاون ولاړ وي.

پهره دار و خپل ساعت ته وکتل او ویې ویل: - وخت مو پوره شو.

- مهرباني مورې، ډېره مننه! – پاول وویل. – مورې، مه خفه کېږه، ښــایي چې دوی مې ژر ایله کړي...

مور په ډېره مینه او محبت په غېږ کې ونیو او ښــکل یې کړ. مور له ډېرې خوښۍ وژړل.

- سره بېل شئ!- پهره دار امر وکړ او په داسې حال کې چې مور یې بدرګه کوله، تر شونډو لاندې یې زیاته کړه:

- مـه ژاړه، ښــایي چې ژر یې ایله کړي!ښــایي چې ټول بندیان خوشي کړي... اوس بالکل په جېل کې ځای نشته...

کله چې مور کور ته راورســیدله، نو ټول جریان یې په ډېرې خوښــۍ او خندا سره خوخول ته نقل کړ:

ما د پاول سره په ډېر مهارت خبرې وکړې، - دی هم په مطلب پوه شو!

مور په ډېر ساړهٔ اسـویلي سره دا زیاته کړه: دی په مطلب پوه شـو! کنه دومره به یې ټینګه په غېږ کې نه وای نیولې، دهٔ هېڅکله دومره مینه نه وه ښکاره کړې.

- هی، تاسـې ډېره ظریفه ښـځه یاسـت!- خوخول وخندل. – نور خلک ډول ډول شیان غواړي، مګر میندې یوازې د خپلو ماشومانو د مینې او نوازش په لټه کې دي...

- یـه، آنـدري، - مور په حیرانتیا سره وویل. – ټول خلک یو ډول نه دي! ښایي چې تا دغه ډول خلک لیدلي وي او د هغوی تګلاره هم درمعلومه وي، د دوی ځخـه اولادونـه جلا کړي، په جېل کې یې واچوي، مګر دوی سره له هغه هم داســې ښــکاري لکه هېڅ کوم شی چې نه وي ورپېښ شــوي، دوی هلته راځي، د انتظـار پـه کوټـه کې ناســت وي، د مختلفو شــیانو په باره کې خبرې کوي... نو که چېرې پوه او تحصیل لرونکي خلک عادت نیولای شي، موږ عام خلک خو حتماً عادت نیسو...

- دا خو ځرګنده خبره ده، - خوخول په خپله عادي موسـکا سره وویل، - قانون د دوی لپاره ډېرې اســانتیاوې برابروي، ځکه چې ضرورت ورته لري. که سړی پخپله ځان په ډانګ ووهي، که څه هم ډېر ژوبل وي، دومره نه خوږېږي، لکـه بل چې یې په ډانګ ووهي او دوی خفګان نه حســوي، ځکه دوی هم و قانون ته اړتیا لري.

«۲۰»

یوه ورځ مـازدیگر مور و میز تـه نژدې نـاســتـه وه، جرابې یې اوبـدلې، خوخول یې په څنګ کې ناست و او د لرغوني روم د مریانو د اغتشاش په هکله یې یو کتاب ورته لوست. یوه سـړي په همدې وخت کې ور وټکاوه، خوخول ورغی، که ګوري ویســوفشـیکوف ولاړ دی. په څنګ کې یې یو بنډل نیولی دی، خولۍ یې شاته پریوهلي ده او پښې یې تر پنډیو پورې په خټو لړلې دي.

- زه دلتـه تېرېـدلم او پـه سرای کې مې یوه وړانګه ولیدله، نو له دې کبله راغلم چې سـتاسـو سـلام وکړم. زه د بندي خانې څخه راسـاً دلته راغلم!- دهٔ، په ډېر عجیب آواز سره وویل او په داسې حال کې چې د مور لاس یې ونیو او هغه یې په ډېر جوش او حرارت سر وښوراوهٔ، زیاته یې کړه:

- پاول ډېر ښــهٔ و، درته یې ســلام او احترام وړاندې کاوهٔ... تر دې وینا وروسـته ویسـوفشـیکوف په ډېر زحمت سره پر څوکۍ باندې کېناسـت او ټوله خونه یې د شک او تردید په سترګو وکتله.

د مور پخوا لا د دغـه ســړي څخه ډېر بد راتلل او د دهٔ په خریلي سر او وړو ســترګو کې بـه تل یو ډول وېره او وهم موجود و چې د مور د ډار ســبب کېدل، مګر په دې شپه مور د دهٔ په لیدلو ډېره خوشاله شوه او په داسې حال کې چې موسکا یې کوله، له نوازش نه په ډک آواز سره یې ورته وویل:

- ته څومره ډنګر شوی یې! آندري، راځئ چې لږ چای وایشوو...

- ما لا پخوا سماوار ایشولی دی!- خوخول د پخلنځي څخه را غږ کړ.

- ښـه، ښه، پاول څنګه و؟ آیا دوی بې له تانه بل څوک هم خوشي کړي دي؟

نیکولای خپل سر وغورځاوۀ او ځواب یې ورکړ:

- پاول هلته په ډېر صـبر او حوصلې سره ژوند کاوۀ! یوازینی کس چې د بندي خانې څخه خلاص شــو، هغه زۀ یم! - نیکولای خپلې ســترګې و مور ته پورته کړی او ورو -ورو یې تر غاښـونو لاندې وویل: - ما و دوی ته وویل- بس دی، مـا ایله کړئ!... که نه زه به کوم یوکســاو بیا خپل ځان هم ووژنم. همدغه شی لامل شو، چې زه دوی خوشی کړم.

- آه!- مور په غیر ارادي ډول سره و نیکولای ته په هغه وخت کې سترګه ووهله، کله چې یې سترګې د دۀ پر کوچنیو تېزو سترګو باندې برابرې شوې.

- فیدور مازین څنګه و؟ - خوخول د پخلنځي څخه ور غږ کړ. اشعار یې لیکل؟

- لیکل یې. زۀ د ده سلوک او طرز ته حیران پاته یم!- په داسې حال کې چې خپـل سر یې وښــوراوۀ، نیکولای وویـل. – هغه یوۀ مرغۀ ته ورته دی چې دلتـه یې قفس ته اچولی دی او هغه چونهار کوي. زه خو په یو شي پوهېږم- زۀ نه غواړم چې کور ته لاړ شم...

- ته په خپل کور کې کوم شی نه لرې.- مور په اندېښمن ډول ورته وویل.

– کور خالي دی، په بخارۍ کې اور نشته، هر څه چې وینې ساړۀ دي...

دی لږه شیبه غلی پاته شو، سترګې یې چوغې کړې. وروسته یې د جیب نه سـګرېټ راوکیښ، یوه دانه یې بې له عجلې نه ولګوله. دۀ په داسې حال کې چې د خاکي دود ومړاوي لار ته کتل، د ملنډو نه ډکه یوه موسکا وکړه.

- هو، زۀ فکر کوم چې هر څـه ســاړۀ دي. د خونې پـه منځ کې به يخې شـــوي خزدکې او مړکان پراته وي. ته، فلاګېيا نيلوفنا، ما ته به اجازه راکړې چې نن شپه دلته پاتې شم؟ - دۀ په يوه ډېره ټيټه لهجه بې له دې چې مور ته وګوري، د مور څخه وپوښتل.

- ولې نه، بې شـکه!- مور په بېړه سره ځواب ورکړ. مور په يوۀ ترتيب سره د دۀ له وجود څخه ناآرامه وه.

- اوس اولاد د خپل پلار او مور څخه شرمېږي...

- څه شی وايې؟ - مور سخت ټکان وخوړ او ورځنې يې پوښتنه وکړه.

دۀ و دې ته وکتل، وروسـته يې سـترګې پټې کړې، په همدې وخت د دۀ کورکوري مخ د يوۀ ړاندۀ سړي بڼه ځانته ونيوله.

- زۀ وايـم چې اولادونـه د خپلو پلرونو څخـه شرمېږي! – دۀ تکرار کړه او ســوړ اســويلی يې وکيښ.- پاول به هېڅکله ســتا څخه ونه شرمېږي. مګر زۀ د خپـل پلار څخـه ډېر شرمېږم. زۀ بـه بيـا هېڅکلـه د دۀ د کور په دروازه پښــه نه کيږدم. زه نه پلار لرم نه کور لرم! که زۀ د پوليســـو تر څار لاندې نه وای ښـــايي چې سايبريا ته تللی وای... ما به خلک د تبعيد څخه خلاص کړي وای، د دوی سره به مې د تښتيدلو په برخه کې مرسته کړې وای...

مور احســاس کړه چې دی ډېر روحي تکليف لري، مګر سره له هغه هم د دې په زړۀ کې د دۀ په حق کې کوم رحم او همدردي ور پيدا نه شوه.

- که ته دا ډول فکر کوې، ښۀ به دا وي چې پر خپله لار لاړ شې!- مور و مېلمه ته په داسې لهجه سره وويل چې هغه د دې په پټه خوله خواشينی نه شي.

آندري له پخلنځي راووت او په خندا سره يې وويل:

- دا څه واياست؟

مور پورته شوه او ويې ويل:

- زه به لاړه شم او د خوړلو کوم شی به درته راوړم...

ويسوف‌شيکوف و خوخول ته د څۀ وخت لپاره په ډېر دقت سره وکتل او وروسته يې په ناڅاپي ډول وويل:

- زه دا فکر کوم چې ځينې خلک بايد ووژل شي.

- بلې! خو د کوم هدف لپاره؟ - خوخول ترې پوښتنه وکړه.

- د دې لپاره چې د هغوی ريښې بيخي وکښل شي...

خوخول چې د دنگې او ډنگرې ونې خاوند و، د خونې په منځ کې ولاړ و او په داسې حال کې چې لاسونه يې په جيبو کې منډلي و، نيکولای ته په ځير سره کتل. پخپله نيکولای په څوکۍ باندې ناست و او د سگريټو په دود کې پټ و، پر خړ مخ يې باندې يې سرې لکۍ راپيدا شوي وې.

- زه به حتماً د ايسای گوربوف سر پرې کړم، - ته گوره چې زۀ څه کوم.

- ولې؟- خوخول پوښتنه وکړه.

- ځکه چې دی د حکومت جاسوس دی. همدغه سړی و چې زما پلار يې غلا تـه اړ کړ. دغـه ســړی اوس غواړي چې واقعي خفيـه پوليس شي، - ويسوف‌شيکوف د تريو تندي او خصومت په لهجه سره وويل.

- علت يې دغه دی! – خوخول ناره وکړه. – مگر د پلار په گناه تا څوک تورنوي؟ احمقان!..

- هوښــياران او احمقان فرق نه لري! – نيکولای په ټينگه سره وويل. – ته خپل ځان او پاول ته چې ځانونه هوښـياران هم بولئ، وگوره، زه ستاسې په نظر

کې د فیدور مازین یا سمایلوف په شان حیثیت نه لرم او یا تهٔ د پاول لپاره او یا برعکس هغه ستا لپاره څه اهمیت لري؟ دروغ مه وایه! زه به باور ونه کړم... تاسې ټوله ما له ځان څخه یوه علیحده ځای ته پورې وهئ...

- ستا روح ناورغه دی، نیکولایه! – خوخول د دهٔ په څنګ کې کېناست او په نرمۍ یې ورته وویل.

- بې له شکه زما روح ناورغه دی، مګر ستاسې روح هم په شدید رنځ اخته دی... فقط تاسې داسې فکر کوئ چې ستاسې رنځونه زما د رنځونو په نسبت ښهٔ دي. هغه څه چې زهٔ ویلای شم دا دي چې موږ ټول د سپیو د اولادونو په څېر د یو بل سره سلوک کوو. اوس ته څه ځواب ماته راکوې؟

نیکولای خپلې تېزې سترګې د خوخول و مخ ته نیولې وې او په داسې حال کې چې خپل غاښونه یې ښکاره کړل، د ځواب په تمه و. د دهٔ د لکیو ډک مخ بې حرکته و او پنډې شونډې یې لړزیدلې، لکه سوځیدلی چې وي.

- اوس زه تاته هیڅ نه وایم! – خوخول په داسې حال کې چې د ویسوفشیکوف د خصومت نه ډکو سترګو باندې یې خپلې آبي رنګه غمجنې سترګې برابرې کړې، وویل. – زه پوهېږم د کوم ملګري چې د زړهٔ د ټپو څخه وینې جاري وي، نو د هغه سره بحث کول کومه فایده نه لري؛ زه پوهېږم، ورو‌ره!

- زما سره بحث کول قطعاً شوني ندي، زه د بحث کولو مهارت نه لرم!- نیکولای په داسې حال کې چې خپلې سترګې یې مځکې ته وغورځولې، تر شونډو لاندې وویل.

زه داسې فکر کوم، - خوخول زیاته کړه، - چې موږ او تاسو هر یوه چې خپله د اغزیو ډکه لار وهلې ده، ستا په څېر د غم په ورځ همداسې فکر کاوهٔ...

- ته هېڅ شی ماته نشې ویلای! – ویسوف‌شیکوف ورو ورو وویل. - زما روح د یوۀ وړي لېوۀ په انګولا کوي!..

- زه خو نه غواړم چې تاته کوم شی ووایم، مګر دومره پوهېږم چې ســتا ننني حال به تېر شي او د لېوۀ انګولا به هم تمامه شي. ښایي چې بیخي تېر نشي، مګر سره له هغه هم ویلای شم چې د تیریدلو شونتیا موجوده ده!

دۀ وخندل او یو سـپک ګوذار یې ویسوف‌شیکوف ته پر اوږه ورکړه او زیاته یې کړه:

- دغه حال د کوچنیانو د شري مرض ته ورته دی، موږ ټوله په خپل نوبت سره په دې ناروغۍ سره اخته کېږو. دا ناروغي پر ځواکمنو خلکو دومره اغېزه نه کوي، خو ضـعیفو خلکو ته سـخته تمامېږي. تر څو چې موږ د ژوندانۀ په پوره مفهوم پوه نه شـو، د تل لپاره به په دې ناروغۍ اخته یو. تاته داسـې برېښي چې تـه د ځمکې پر سر یوازینی بدرنګ یې ، ټول غواړي چې تا وخوري. لږ وخت به تېر شي او تاته به دا خبره څرګنده شي چې نور خلک هم سـتا په شـان ښــې ځـانګړنې او خواص لري، نو پـه همـدې وخـت کې بـه دې زړۀ آرام او لږ څـه خجالت شي چې ولې ځان درته دومره غټ معلومیدۀ، په داســې حال کې چې ته د دریاب په مقابل کې یو څاڅکی یې او وروســته به دا هم درته معلومه شي چې په عمومي دریاب کې ته هم دریاب یې او له هغه د باندې به ستا څاڅکی ځای پر ځای وچ شي. آیا ته زما په هدف پوه شوې؟

- ښـایي چې پوه شـوی به یم!- په داسـې حال کې چې سر یې ښـوراوۀ، نیکولای وویل. – مګر باور نلرم.

خوخول وخندل، له خپل ځای څخه پورته شو او په کوټه کې یې په چټکۍ سره قدم شروع کړ.

- ما هم باور نه درلود. ته په ریښتیا د کندو یوه کوټه یې!

- ولې د کندو کوټه؟ - نیکولای په تریو تندي موسکا وکړه او خوخول ته یې وکتل.

- ځکه چې ورته والی ورسره لرې.

ویسوشیکوف ناڅاپه خپله خوله خلاصه او په عجیبه خندا یې پیل وکړ.

- څه وشول چې بې ځایه دومره خاندې؟ - خوخول د دهٔ مخامخ ودرید او په حیرانتیا یې پوښتنه ورڅخه وکړل.

- ما فکر وکړ چې په دنیا کې به هغه سړی احمق وي، چې تا وځوروي! - په داسې حال کې چې سر یې ښوراوهٔ، ویسوشیکوف وویل.

- ما به څنګه وځوروې؟- په داسې حال کې چې اوږې یې وښورولې، خوخول وویل.

- زه نهٔ پوهېږم!- په داسې حال کې چې خپل غاښونه یې د بې پروایۍ په توګه ښکاره کړل، ویسوف‌شیکوف وویل. –زما مقصد دا دی که چېرې تاته یو څوک زهیر کړي، نو هغه به وروسته ډېر وشرمېږي.

- بس، همدغه ستا فکر دی!- خوخول په خندا سره وویل.

- آندري! – مور د پخلنځي څخه ور غږ کړ.

آندري پخلنځي ته لاړ.

ویسوشیکوف په کوټه کې یوازې پاته شو، شاوخوا ته یې وکتل او بیا یې خپله پښــه چې په یوه زاړه درانهٔ بوټ کې وه، اوږده وغځوله، په دقت سره یې

معاینه کړه، بیا خم شـو او د پښـې پنډه عضله یې لمس کړه. بیا یې خپل لاس و مخ تـه پورته کړ او په دقت سره یې ورغوی وکوت. لاس یې پنډ و او ګوتې یې لنډې وې او په ډکو ژیړو ویښـتانو سره پټې شـوي وې. وروسـته یې په هوا کې خپل لاس وخوځوۀ او له خپل ځای څخه پورته شو.

کله چې آندري سماوار خونې ته راوړ، ویسوشیکوف د هندارې خوا ته ولاړ و او خوخول ته یې وویل:

- ډېر وخت مې خپل مخ نه و لیدلی...

وروسته په خندا شو او د سر په خوځولو سره یې زیاته کړه:

- ډېره وحشي څېره مې ده!

- ولې ستا خپل مخ ته پام شو؟ - آندري په پلټونکي ډول سره ورته وکتل او ورڅخه یې پوښتنه وکړه.

- سـاشـېنکه وایي چې مخ د روح هنداره ده! – ویسوفشیکوف ورو- ورو وویل.

- دا خبره حقیقـت نلري! – خوخول ور غبر کړ. – د دې پزه د چنګک په څېر ده، د بارخوګانو هډوکي یې بالکل د قینچي په شــان دي، مګر روح یې و ځلانده ستوري ته ورته دی!

ویسوف شیکوف و دۀ ته وکتل او مسک شو.

وروسته بیا چایو ته کېناستل.

ویسوشیکوف یوه غټه دانه کچالو راواخیستله، پر یوه ټوټه ډوډۍ باندې یې مالګه واچوله او د غوایي په څېر یې په خوړولو پیل وکړ.

- دلته حالات څنګه دي؟- دۀ په ډکه خوله سره پوښتنه وکړه.

کله چې آندري په خوښـــۍ سره په فابریکه کې د تبلیغاتو د ودې او د تبلیغاتي پاڼو د خپرولو په باره کې معلومات ورکړل، هغه بیا تریو تندی شـــو او ویې وویل:

- دا ډېر وخـت غواړي، خورا ډېر وخـت! موږ بـایـد پـه چټکۍ سره کار وکړو...

کله چې مور دۀ ته وکتل، نو یو ځل بیا یې د خصـومت حس په زړۀ کې ور پیدا شو.

- د ژوندانه چارې آس نه دی، چې په لښته یې وځغلوو! – آندري وویل.

ویسوف‌شیکوف په سرکښۍ سره سر وغورځاوۀ او ویې ویل:

- دا بالکل اوږده مسئله ده، بیخي اوږده، زه په دې ډول نوره حوصله نشم کولای! زۀ باید څه وکړم؟

دۀ چې د خوخول و مخ ته کتل، نو یې د ناچاریه ګوته په غاښ ونیوله او د هغه و ځواب ته منتظر شو.

- څـه چې بـایـد موږ وکړو، هغه دا دي: اول باید مطالعه وکړو، د علم او منطق په وسېله ځانونه مسلح کړو او وروسته له دې نورو ته هم پوره تعلیم او زده کړه ورکړو!- خوخول خپل سترګې ځمکې ته ټیټې کړې او ویې ویل.

ویسوشیکوف ور څخه پوښتنه وکړه:

- او څه وخت جنګ وکړو؟

- زه نـه پوهېږم چې کله باید جنګ وکړو، - خوخول په خندا سره ځواب ورکړ. - مګر دومره پوهېږم کـه اوس موږ پـه موجوده حالت کې په جنګ لاس پورې کړو، نو حتماً بـه ډېر ژوبل شـــو او ډېره شـــونې ده، چې دغه مفکوره هم

کمزورې او یا بیخي محوه شي! زما په نظر باید لومړی مغز او بیا وروسته لاسونه مسلح شي...

نیکولای بیا په خوړلو پیل وکړ. مور پټ-پټ و دهٔ ته کتل او کوښښ یې کاوهٔ، چې کوم شی د خپل زړهٔ د پخلا کېدلو لپاره د دهٔ په پراخه څېره کې پیدا کړي.

هر کله چې به د مور سترګې د دهٔ د تیزو او کوچنیو سترګو سره برابرېدلې، مور به له ډېرې وېرې نه خپلې وروځې ښورولې. آندري هم ناآرام و، - ناڅاپه به یې په خبرو پیل وکړ، بېرته به یې بس کړې، و به یې خندل او شپېلک به یې وکړ.

مور ته داسې ایسېده چې دا د آندري د تشویش په سبب پوهېږي. نیکولای پټه خولهٔ ناست و او کله چې به آندري ورڅخه د کوم شي په باره کې پوښتنه وکړه، دهٔ به زړهٔ نا زړهٔ او لنډ ځواب ورکړ.

دا وړوکې کوټه وار په وار د هغې دوو اوسېدونکو لپاره تنګېده، اول به مور او بیا آندري و خپل میلمه ته پټ-پټ کتل.

بالاخره میلمه ولاړ شو او ویې ویل:

- زهٔ غواړم چې ویدهٔ شم، نژدې و چې په بندي خانه کې لیونی شم، ناڅاپه یې زه پرېښودلم. زهٔ ډېر ستړی او ستومانه یم.

نیکولای پخلنځي ته لاړ او تر لږ حرکت او شورماشور وروسته بالکل خاموش شو. مور چوپتیا ته غوږ ونیو او وروسته یې آندري ته غلي وویل:

- دی ډېر ګواښونکي افکار لري...

- دی ډېر سـخت سـړی دی!- په داسـې حال کې چې سر یې ښـوراوهٔ، خوخول د مور له نظریې سره موافق شــو. - مگر دا حال تیریږي! زه په خپله یو وخت عیناً د دهٔ په څېر وم. دا ښــکاره خبره ده چې په زړهٔ کې پخوا له دې چې لمبې او شغلې پیدا شي، ډېر دود پیدا کیږي. نینکو، تاسې لاړه شئ، لږ استراحت وکړئ. زهٔ غواړم چې یو څه مطالعه وکړم.

مور و هغې بستره ته لاړه، کومه چې د پردې شاته پرته وه او آندري د ډېر وخت لپاره د مور سـاړهٔ اسـویلي او دعاگانې اوریدلې. آندري په چابکۍ سره د کتـابو پاڼې اړولې، په ډېرو ولولو سره یې په خپل تندي لاس تېر کړ، بریتونه یې تاوول او پښـې یې ښورولې. د ساعت د عقربې ټک - ټک و، د کړکۍ د باندې نه د شمال زوږ راتهٔ.

د مور نرم غږ واوریدل شو:

- اه، خدایه! په نړۍ کې څومره خلک ژوند کوي او د اکثرو ژوند په غم او وېره تیریږي. آیا د خوښۍ او آرامۍ خلک به هم چېرته وي؟

- په نړۍ کې خوښ او آرام خلک شــته! ډېر ژر به د دوی شــمېر زیات شي!- آندري ځواب ورکړ.

## «۲۱»

ژوند په همدې ډول سره په چټکۍ روان و. هره ورځ به یې په نویو پېښو سره پای ته رسیدله، هره ورځ به یو نوی شی پېښیدهٔ، مگر دغو نوو شیانو پر مور بـانـدې د پخوا پـه څېر ډېر تـاثیر نـه کاوهٔ. تل به د دوی و کور ته نوي خلک د آندري د لیدلو لپاره راتلل او پټې- پټې خبرې به یې کولې. تر خبرو وروســته به

یې د بـالاپوښ کالر راپورته کړ، خولۍ به یې پر تندي راکش کړه او پټه خوله به پر خپله لار باندې روان شـول. مور ته داسې معلومېده چې دوی ټوله د خندا او غزلو ویلو هیلـه لري، مگر د هغې لپـاره وخـت نلري. دوی به تل په ډېر تلوار او شــتاب گډ وو. د دوی څخه به ځینې سرکښــه ول او په پیغور ورکونکې لهجې سره به یې خبرې کولې، نور به یې ډېر خوښ وو، د ځوانۍ پیاوړتیا او نشـــاط به یې په څیرو کې لیدل کېدۀ. اما یوه ډله وه چې هغوی به چُپ او د تفکر په حال کې وو. مور ته داسې معلومیدل چې دوی ټوله ښه کامل او پوره ایمان او عقیده لري. د دوی منفرد مخونـه د مور لپـاره داســې معلومیدل لکه یو واحد مخ چې وي او د دوی مجموعي څیره و هغه عیسـی ته ورته وه، کوم چې د ایمانوس پر لور روان دی. دوی به په آرامۍ سره مشـورې کولې، سـترگې به یې خورا تودې وې چې د هغو کتنه به کله ډېره ملایمه او کله ډېره گواښونکې وه.

مور د دوی تعداد وشـــمېره او د دوی ټولو څخه یې د پاول لپاره داســې سپر جوړ کړ چې د دښمن څخه یې بیخي تشویش نه پاته کېدۀ.

یوه ورځ یوه زړوره نجلۍ چې زنگوله زنگوله ویښتان یې درلودل، د یوې کڅوړې سره د ښار څخه د آندري د لیدلو لپاره راغله. کله چې واپس و ښار ته روانه شوه، له نشاط او خوشالۍ نه په ډکو سترگو سره یې مور ته وویل:

- ملگریه! د خدای په امان!

- په مخه دې ښه! – مور ورته په خندا سره وویل.

کله چې نجلۍ د سرای څخه ووتله، مور و کړکۍ ته ورغله او خپلې نوې ملگرې ته یې کتل؛ دا نجلۍ چې د پســــرلي د گل په شان ښایسته او د بورا په څېر ځلانده وه، په ډېرې چټکۍ سره د کوڅې په منځ کې روانه وه.

- ملګرې! - کله چې نجلۍ د مور د نظره څخه لېرې شـوه، نو مور وویل.

–اخ، مهربـانـه نجلۍ! خدای دې وکړي چې تاته یو ډېر صـــادق او ریښـــتونی ملګری پیدا شي چې د ژوندانه تر پایه پورې درسره ملګری وي.

مور به تل د ښـار په خلکو کې یو ماشـومانه شی لیدۀ او پر هغوی باندې یې د بې پروایۍ په ډول خندل. مګر یو شی چې د مور زړۀ یې قانع کاوۀ، دا وو چې دې خلکو پوره ایمان او عقیده درلوده او د دوی خلوص او صمیمیت ورځ پـه ورځ و مور تـه پـه جوتـه څرګندیدل. د مور زړۀ به د دوی په هغو پلانو سره پیـاوړی کېـدۀ کوم چې بـه دوی د عـدالـت، نېکمرغۍ، د جهـل او نـاپوهۍ د ورکیدو او د خپل همنوع انسـانانو د ښه والي لپاره یو د بل سره څېړل. مګر کله -کله به مور د دوی د خبرو په وخت کې د یوه نامعلوم علت په اثر سوړ اسویلی وکیښ. مور د دوی و سـاده ژوند او هغې بې پروائۍ ته چې دوی د خپلې ګټې په باره کې ښودله، په حیرت کې تللې وه.

مور پـخوا لا هم د هغوی پـه خبرو پوهېدله، مور داســـې حس کاوۀ چې دې خلکو د ټولو انسـانانو د بدبختۍ او مصیبت اصلي ریښې کشف کړي دي. مور هم د دوی د دغو نظریو او عقیـدو پلویتوب کـاوه، مګر یوازینۍ خبره چې دې نشوای منلای هغه دا وه: ښایي دوی دومره واک ونلري چې د خلکو په دغه ژونـد کې کوم بـدلون راولي او خپلو صــفونو ته ټول کارګران جذب کړي. نن ورځ هر ســړی د خپـل نس د ډکولو پـه هڅه کې دی. هېڅوک نه غواړي چې خپله نننۍ ډوډۍ ســبا ته پریږدي، پدې شرط چې نن یې خوړلای شي. ښــایي چې ډېر لږ خلک پیدا شي چې هغوی پر دغه اوږده او ګواښــونکې لار باندې روان شي، ډېرې لږې سترګې به د دغې لار په پای کې د بشـــریت د اخوت او

ورورګلوی معجزه منظره ووینې. لـه همدې کبله دغه ټول شریف خلک دې ته د مـاشـــومـانو پـه څېر معلومیـدل، که څه هم لویې ږیرې او ســـترې مخونه یې درلودل.

«زما ګرانو خلکو!»- په داســې حال کې چې سر یې ښــوراوهٔ، مور د دغو خلکو د نصیب په هکله فکر کاوهٔ او په زړهٔ کې به یې ویل.

دوی ټولو اوس ښهٔ، جدي او هوښیار ژوند کاوهٔ، دوی به تل د ښو اعمالو په باره کې خبرې کولې او هېڅکله به یې خپل ځانونه نه سپمول تر څو چې نور خلک وپوهوي. مور پوهیدله چې دا ډول ژوند د مینې وړ دی، سره له هغه چې دغه ژوند ډېر ګواښـونکی و. مور به په اسـویلي سره یو ځل بیا د خپل تیر شوي غمځپلي ژونـد خـاطره ور پـه یـاد کړه. ورو -ورو پخپلـه په مور کې دا حس او عقیده پیدا شوه چې د دې وجود د راتلونکي نوي ژوند لپاره ډېر ارزښت لري، - مګر پخوا هېڅکلـه مور تـه دا فکر نـه ورپیـدا کېدهٔ چې دې ته به هم څوک اړ وي. اوس دا پوره ورته څرګنده شـــوه چې ډېر خلک ورته اړ دي. دا یو نوی او ډېر خوشـګواره احساس و. همدا سبب شو، چې مور به تل په لوړه غاړه او ویاړ سره ګرځیدله...

مور به په منظم ډول سره و فابریکې ته د پروپاګنډ پاڼې وړلې او دا کار به یې خپله وظیفه ګڼله. حکومتي مخبران د دې سره عادي شول او ډېره لږه توجه به یې ورته کوله. مخبرانو او مؤظفو کســانو ډېر ځله دا تلاشي کوله، مګر سره له هغـه هم یوه ورځ نـه بـل ورځ به په فابریکه کې پاڼې پیدا کیدې. په هغه وخت چې بـه د مور سره کوم شی نـه و، نو پـه عجیب ډول سره به یې مخبران پر ځان باندې بدګمانه کول، څو چې هغوی به مجبور شول چې دا راوګرځوي او تلاشي

يې کړي. مور به تل د دوی سره خورا سخته مباحثه کوله او دوی ته به يې تل دا خبره کوله چې تاسې زما په حق کې ډېر سپکاوی کوئ. مور چې به دوی وغولول او خپل ځان به يې خلاص کړ، نو به ډېره خوشاله شوه او په خپل لياقت به يې وياړ کاوه. همدې بازۍ و مور ته ډېر خوند ورکاوۀ.

ويسوفشيکوف يې بيرته په فابريکه کې قبول نه کړ، نو دی هم مجبور شو چې د يوۀ لرگي خرڅونکي مزدور شي.دۀ به تل کندې، تختې او د سونگ لرگي چلول او مور به هم تقريباً هره ورځ د بارو سره ليده: په لومړي سر کې يوه جوړه آسونه چې خورا زاړۀ او ډنگر وو، تر بارو لاندې کاږۀ واږۀ تلل او سرونه به يې د سترگو د رپولو په وخت کې ښوريدل. پر دې آسونو باندې به کله کله يوه لويه کُنده او کله به څو دانې تختې تړل شوي وې او زوږ به يې کاوۀ. د آسانو پر څنگ به نيکولای روان و او جلو به يې نيولی و. زاړۀ، خيرن کالي به يې اغوستي وو او درانۀ بوټونه به يې کشول، خولۍ به يې شاته پرته وه. دۀ به په داسې سختۍ او تريو تندي سره پښې کشولې لکه يو سړی چې کومه لويه ونه د خپله ځايه له ريښو باسي. هغه هم د آسونو په شان خپل سر ښوروي او ځمکې ته گوري. د دۀ آسونو به په ناڅاپي ډول سره د کومې کراچۍ سره تصادف وکړ، نو خلک به پر راټول شول، نارې او قسمونه به کښته او پورته اوريدل کېدل، مگر نيکولای به دې ټولو خلکو ته هېڅ پام نه کاوۀ. هغه بې له دې چې خپل سر پورته کړي او خلکو ته کوم شی ووايي، خپل شپيلک به يې کاوۀ او آسونو ته به يې ويل:

-مخ په وړاندې ځئ!

کله چې به د آندري په کور کې د تازه خارجي ورځپاڼې د لوستلو لپاره ملګري راټول شول، نیکولای به هم راتلۀ او په یوه کونج کې به یې ځان ته ځای ونیو، دی به بالکل پټه خوله د ډېر وخت لپاره ناست و او د نورو خبرو ته به یې غوږ نیولی و. د اخبار تر بیان وروسته به ځوانانو خورا تود بحث شروع کړ، اما نیکولای به په هغه کې هېڅ برخه نه اخیستله. دی به تر هغه وخته پورې ناست و څو چې ټول ملګري به لاړل، وروسته به دۀ د آندري سره خبرې شروع کړې او په تریو تندي سره به یې غوښتنه ور څخه وکړه:

- په ټولنه کې تر ټولو ملامت څوک دی؟

- د ټولنې خورا لوی مجرم او ګرم سړی هغه څوک دی، چې د لومړي ځل لپاره یې وویل- دا زما مال او ملکیت دی! دا سړی څو زره کاله پخوا مړی شوی دی او د هغه څخه اوس ګیله کول بې ځایه کار دی! – آندري په خندا مګر د سترګو په ناآرامۍ سره ځواب ورکړ.

- آیا شتمن خلک او هغه کسان چې د دوی ملاتړ کوي، ملامت نه دي؟

خوخول به په خپلو ویښتانو کې ګوتې وهلې او خپل بریتونه به یې تاوول، داسې ښرګندیده چې دی د کوم ساده لغت په لټه کې دی او غواړي چې د هغه په واسطه خپل ټول معلومات کوم چې د ژوند او حق په باره کې درلودل، دۀ ته بیان کړي. مګر داسې ځنې ښکاره شوه، چې ګواکې ټول خلک د ملامتۍ وړ و، لیکن نیکولای پر هغه قناعت نه کاوۀ. دۀ به خپلې پنډې شونډې کښېکښلې او د انکار په توګه به یې خپل سر وښوراوۀ او ویل به یې دا حقیقت نه دی او وروسته له دې به یې تندی تریو ونیو او په چوپه خوله به ووت.

ویسوفشیکوف یوه ورځ وویل:

- ځينې خلک شته چې هغوی باید ملامت شي. هغه خلک په خپله دلته موجود دي! زه تاته داسې وايم- ټول ژوند باید د اضافي وښو لرونکي ځمکې په شان یوې شي، - بې له کوم رحمه!

- عیناً په دغو الفاظو سره یو ورځ میرزا ایسای ستا په هکله ویلی و! – په دې وخت مور ور غبر کړ.

- ایسای؟ نیکولای تر ځنډ وروسته پوښتنه وکړه.

- هو، دی ډېر مضر سړی دی! هر چېرې څار کوي او له خلکو څخه راز -راز پوښتني کوي. دهٔ اوس زموږ و خوا ته هم توجه کړې ده. هره ورځ راځي، پټ پټ د کړکیو تر شا څار کوي...

- تر کړکیو گوري؟- نیکولای تکرار کړ.

په همدې وخت کې مور په بستره کې پراته وه، نو ځکه یې د دهٔ د مخ بڼه نه شوای لیدلی، مگر د خپلې وینا په غلطۍ پوه شوه، ځکه چې په دې وخت کې خوخول چالاکي وکړه او په پخلاکيدونکي لهجه سره یې وویل:

- پریږدهٔ چې دومره بیکاره دی، زموږ څار دي وکړي...

- یه، ته صبر وکړه!- نیکولای په ټیټ آواز سره وویل. – ایسای هغه سړی دی چې باید ملامت شي!

- د څه لپاره باید ملامت شي؟ - خوخول په چالاکۍ سره وپوښتل. – د حماقت له کبله؟

نیکولای بې له دې چې و خوخول ته څه ووایي، لاړ.

خوخول په ډېره ستومانۍ سره د کوټې په منځ کې حرکت پیل کړ. د نریو او اوږدو پښو آواز یې اوریدل کیدهٔ. خوخول به تل د گرځېدلو په وخت کې

خپل بوټونه کښېل، د دې لپاره چې مور ناآرامه نه شي، مگر نن شپه مور هېڅ نه ويده کېدله. کله چې نيکولاى لاړ، مور په ډېر غم او خواشينۍ سره وويل:

- زه د دهٔ څخه ډېره وېرېږم!

- هام! – خوخول ورو -ورو وويل. – دى تر ډېر روحي فشار لاندې دى. تاسې نينکو، بل وار بيا و دهٔ ته ايساى مه يادوه، هغه يو حقيقي جاسوس دى.

- دا خو دومره عجيبه خبره نده. يو د دهٔ له خپلوانو څخه ژاندارم دى! - مور ځواب ورکړ.

- شايي چې نيکولاى په دې ورځو کې و ايساى ته خورا لت ورکړي!- خوخول په وهم سره خپلو خبرو ته دوام ورکړ.

- تاسې د دې اشرافو خلکو فکرونه وگورئ. دوى عادي خلک د همدې ټيټ کار لپاره تربيه کړي دي. کومه ورځ که د نيکولاى په شان خلک د حوصلې څخه ووځي، نو البته په دې وخت کې به ځمکه او آسمان دواړه په وينو رنګ شي...

- آندري، دا کار څومره خطرناک دى! – مور په بيري او حيرانتيا سره وويل.

- که مچان يې نه واى خوړلي، نو استفراق به يې نه واى کړى! – خوخول تر لږ ځنډ وروسته وويل. – دا هم بايد ومنې چې د جمادارانو يو څاڅکى وينه به د هغو وينو په درياب کې نرئ او منحل شي، کومې چې د عامو خلکو د وژلو څخه بهيږي...

دهٔ ناڅاپه وخندل او زياته يې کړه:

- دا خو انصاف دى، مگر زړه پرې نه تسلي کيږي!

«۲۲»

مور یوه ورځ، تر لږې سودا وروسته له بازار څخه و کور ته راغله. دروازه یې خلاصه کړله. په همدې وخت کې دې ته داسې خوښې ورپیدا شوله چې د سرای په درشـــل کې حیرانه ودریدله، ځکه چې دې د کوټې څخه د پاول ځواکمن غږ واورید.

- دا ده راغله! – خوخول نارې کړې.

مور ولیدل چې پاول په چابکۍ سره ور ته راوګرځید، د دهٔ په مخ کې روښنایي ځلېدله او هره پلوشه یې د مور لپاره د تهعد او وفادرای زیری ورکاوهٔ.

- بالاخره... کره راغلی یې!- مور په داســې حال کې چې د ډېرې وارخطایۍ څخه پر څوکۍ کېناسته، تر شونډو لاندې یې وویل.

دهٔ خپل سپېرهٔ مخ و دې ته راکوز کړ او وچې شونډې یې ریږدیدلې، د سترګو په کونجونو کې یې اوښـکې ځلیدلې. پاول د یوې شیبې لپاره هېڅ ونه ویل. مور یې هم خاموشه وه او دهٔ ته یې په آرامۍ سره کتل.

خوخول مور او زوی سره پرېښـــودل، د سرای و انګړ تـه راووت او کرار کرار یې له ځان سره شپېلک واههٔ.

- مور، ډېره مننه! – پاول په ټیټ آواز سره په داســې حال کې چې ګوتې یې هم لړزیدلې، وویل. – ډېره مننه، مورجانې!

مور د هغې خوښـــۍ په واسـطه چې د دهٔ په څېره کې ښــکاریده او هغه ملایمت چې یې په لهجه کې پروت و، ډېره متحیره شـــوه، د خپل زوی پر سر

باندې يې لاس واهۀ او كوښښ يې كاوۀ چې د خپل زړۀ سخت ټكان ودروي او پټ -پټ يې ويل:

- عيسى دي ملګرى اوسه، د څه شي مننه كوې؟

- دا د دې لپاره چې لـه مورږ سره په دې لوى كار كې مرسته كوې!- دۀ وويل. – دا يوه ډېره ستره او نادره خوښي ده چې كله يو سړى دا ويلاى شي: زما مور او خپله زۀ دواړه روحاً او قلباً سره تړلي يو!

مور پټه خوله ناسته وه او په ډېره لېوالتيا سره يې د زوى و هرې كلمې ته غوږ نيولى و. مور ته زوى ډېر ګران او تر هر څۀ ور تېر و.

- مورې، په دې پوهيدلم، چې دا كار تاته څومره سخت و. ما دا فكر كاوۀ چې تـه به يې هېڅكله ونه منې او هېڅكله به له مورږ سره پخلا نه شې او يوازې په پټه خوله به يې د تېر شوي ژوند په څېر وزغمې. دا خورا سخت فكر و!

- آندري زما سره د ډېرو شيانو په زده كړه كې مرسته كوله! – مور د زوى خبره پرې كړه.

- خبر شوم، هغۀ ماته كيسه وكړه!- پاول په خندا سره وويل.

- ايګور هم څـه راته ويلي دي، زه او ايګور دواړه د يوه كلي يو، آندري كوښښ وكړ چې ماته لوستل را زده كړي...- مور بيا وويل.

- او تۀ شرميدې او په مخفي ډول دي په زده كړو پيل وكړ؟

- دۀ پـه پټـه دا معلومـه كړه!- مور وويـل. بيا يې د خپل زړۀ د ناآرامۍ په حال كې پاول ته وړانديز وكړ: - زويه، آندري دننه راوغواړه! دى قصداً د باندې ولاړ دى چې زمورږ مزاحم نه شي. دى خو خپله مور نلري...

- آندري!... – پاول په داسې حال کې چې د دهليز دروازه يې خلاصه کړه، ور غبږ کړ. – ته چېرته يې؟

- زه دلې يم. غوښتل مې چې لږ لرگي مات کړم.

- دننه راشه!

آندري سمدستي خونې ته رانغی، کله چې پخلنځي ته ننوت، د هغه ځای څخه يې د کور په باره کې په خبرو پيل وکړ:

- زۀ بايد د نيکولای څخه يو څه بوټي وغواړم، ځکه زموږ د بوټو ذېرمه هم نژدې ده چې خلاصه شي. نينکو، پاول خو هم وينې؟ معلومېږي آمرانو د دې پرځای چې پاڅونوالو ته سزا ورکړي، خواړه ورکوي...

مور وخندل. دا لا تراوسه پورې په هغې خوښۍ سره چې په زړۀ کې يې موجونه وهل، نشه وه. مگر په دې کې د غرور او لويوالي حس پيدا شو، دې غرور غمجنه کړه، ځکه چې مور خپل زوی د پخوا په شان غوښتل آرام ووينې. مور له ډېرې خوشالۍ څخه په کاليو کې نه ځائيده او غوښتل يې چې د خپل ژوند دا تر ټولو لويه خوشالي د تل لپاره په خپل زړۀ کې وساتي. مور د خپلې دغه خوشالۍ د لړيدو څخه وويريدله، نو تلوار يې وکړ چې دا خوشالي پټه کړي، لکه يو مرغۀ نيونکی چې نادر مرغۀ ونيسي او په قفس کې يې واچوي.

- راځئ، ډوډۍ وخورو! ښايي چې پاول څه شی نه وي خوړلي...- مور په تلوار سره وړانديز وکړ.

- يه، پرون منصبدار راته وويل چې دوی پريکړه کړېده چې ما خوشې کړي، نو له همدې کبله ما کوم شی نشوای خوړلای او نه مې شوای څښلای...

- لومړی سړی چې ما د جیل نه د باندې ولید، هغه سپین ږیری سیزوف و، - پاول خپلو خبرو ته دوام ورکړ. - هغه د کوڅې څخه تیریدهٔ، کله چې یې زهٔ ولیدم، نو ستړي مه شي یې راته وویله. ما و دهٔ ته وویل چې «زهٔ په دې ورځو کې خطرناک یم، تاته لازمه ده چې محتاط اوسې. زهٔ د پولیسو تر څار لاندې یم». - «پروا نه لري»، - دهٔ وویل. د خپل ورارهٔ په باب یې یوه عجیبه پوښتنه وکړه. دهٔ له مانه وپوښتل چې «آیا فیدور په جېل کې ښه سلوک درلود؟» - «په جیل کې ښه سلوک لرل څه معنا لري؟» - دهٔ ځواب ورکړ: «فیدور به د خپلو ملګرو په حق کې کوم خیانت نه وي کړی؟» او کله چې ما سیزوف ته وویل چې فیدور ښه صادق او هوښیار ملګری دی، نو دهٔ خپله ږیره وښوروله او په غرور سره یې وویل: «زموږ په پښت کې بد خلک نشته!»

- دا سپین ږیری هوښیار سړی دی!- په داسې حال کې چې سر یې ښوراوهٔ، خوخول وویل. - ما د دهٔ سره ډېرې خبرې کړې دي، - خورا ښه سړی دی. آیا دوی به فیدور ژر خوشی کړي؟

- زه فکر کوم چې خوشی به یې کړي، ټول بندیان به خوشي کړي! د جیل منصبداران بې د ایسای له شهادتونو څخه بل کوم شی د بندیانو په اړه نه لري او د ایسای شاهدي به نو څه وي؟

مور دې خوا ایخوا تلله، مګر د خپل زوی څخه به یې سترګې نه لیرې کولې. آندري تر شا لاسونه نیولي وو، و کړکۍ ته ولاړ و او د پاول خبرو ته یې غوږ ایښی و. پاول د خونې په منځ کې قدم واههٔ. پاول ږیره لویه کړې وه، پر بارخوګانو باندې یې تور، نرې او زنګوله ویښتان پیدا شوي وو او دې ویښتانو د پاول د مخ د پوست توروالی لږاوهٔ.

- راځئ، کېنئ! – مور په داسې حال کې چې ډوډۍ یې دننه راوړه، دوی دواړو ته وویل.

د ډوډۍ پـه وخـت کې آنـدري و پـاول تـه د ربین نقـل وکړ. کله چې د آندري بیان خلاص شو، پاول په تاسف سره وویل:

- کـه زهٔ دلته وای ما به دی نه وای خوشی کړی چې لاړ شي! دهٔ د خپل ځان سره څه شی یوووړ؟ هېڅ شی مگر د تردید نه ډک سر او یوه پلنډه ستونزمن فکرونه.

- کله چې یو سړی څلوېښت کلنۍ ته ورسېږي، او خپله یې د خپلي اروا د شـکونو او بدگومانیو سره مبارزه وکړه، د هغه بدلول ستونزمن دي- خوخول په موسکا سره وویل.

وروســته یوه داســې مباحثه شروع شــوه چې د هغې اکثره لغاتونه مور ته نوي او نامعلوم ول. ډوډۍ خلاصه شوه او د دوی بحث لا دوام درلود، مگر کله کله به یې ساده خبرې هم کولې.

- موږ باید پر خپله لار مستقیم لاړ او یو گام هم شـاته وانخلو! – پاول په متانت سره وویل.

آندري یې په خبرو کې ور ولوېد او زیاته یې کړه: - او که په دې لاره کې مو پـه لس گونو میلیونـه خلک هم په مخه راشي او هغه مو د دښــمنانو په څېر ووینې هم...

څرنگه چې مور د دوی و خبرو ته غوږ نیولی و، دې ته ورمعلومه شــوه چې پاول پر بزگرو اعتماد نه لري، مگر خوخول د هغوی پر پله دی او کوښــښ کوي چې دا ثابته کړي چې دوی باید بزگرو ته د حق او عدالت مفهوم واضــح

کړي. مور، د آندري په خبرو ښه پوهېدله او دې ته داسې ایسیده چې خوخول سـمي خبرې کوي. اما هره پلا چې بـه خوخول پـاول ته څه ویل، دا به متوجه شـوه، چې مبادا پاول د خوخول په خبرو خفه نه شي. مگر دوی بې له دې چې خفگان منځ ته راولي، یو پر بل نارې وهلې.

مور به کله- کله د خپل زوی څخه وپوښتل:

- آیا دا حقیقت دی؟

پاول به په موسکا سره ځواب ورکړ:

- هو، دا خبره ریښتیا ده.

- تاسـو، ښـاغلي، ښـه خواړه وخوړل، -خوخول د ټوکې په ډول وویل، - مگر هغه دې ښـه ونه ژووله: په ستوني کې دې ښخه شوه، ښه به دا وي چې یو گیلاس اوبه وڅښې.

- ټوکې مه کوه!- پاول وویل.

- زهٔ ټوکې نه کوم، لکه په فاتحه کې جدي ناست یم!..

مور په نرمۍ سره وخندل او سر یې وښوراوهٔ.

## «۲۳»

پســـرلی را نژدې کیدهٔ، واورې ویلې کیدلې، د واورو نه د لاندې ځمکو ختې ښـــکـاریـدلې. د هرې ورځې په تیریدلو سره خاوري د خلکو پام ځان ته اړاوه. په همدې موســم کې د کارگرو محله پریشــانه او زاړه شــانته معلومیده. د

ورځې په وخت کې به د بامو واورې ویلې کیدلې او له دیوالونو څخه به بهیدلې اما په شپه کې به د یخ وړې-وړې ټوټې غورځیدلې.

د مې د میاشتې د لومړۍ ورځې د لمانځلو لپاره تیاری نیول کیده.

هغه پاڼې چې د دې سترې ورځې عظمت او اهمیت یې تــــــشریح او توضیح کاوۀ، په فابریکه او ټوله محله کې ویشل شوي وې او حتی هغه ځوانان چې تراوســـه پورې د دې مفکورې څخه لیرې وو، سره له هغه هم د دې پاڼو د لوستلو په وخت کې به یې ویل:

- دغه جشن حتماً باید پرځای شي.

ویسوفشیکوف به په تریو تندي سره ویل:

- اوس یې وخـت رارســـیـدلی دی! دا د ماشــومانو لوبه باید نور پای ته ورسوو.

فیدور مازین د غیرت نه ډک و او د قفس د مرغۀ په څېر نرۍ شوی و. د خبرو په وخت کې به ډېر عصبي کیدۀ او ټول بدن به یې ریږدیدۀ. یاکوف اوس په ښـار کې کار کاوۀ. سـمائلوف چې د هغه ویښتان تر پخوا نه په جیل کې ډېر سرۀ شـوي وو، واسـیلیي گوسـیف، بوکین، دراگنوف او ځینو نورو به تل ټینگار کاوۀ چې باید وســله وال مارش وکړي. مگر پاول، خوخول، ســوموف او ځینو نورو به د دوی سره مخالفت کاوۀ.

ځینې وختونه به ایگور راتۀ او په داسې حال کې چې له ډېرې ستومانۍ څخـه بـه یې تنفس بندیدۀ او خولې به هم پر جاري وې، د ټوکې په ډول به یې ویل:

- ملگرو، زمونږ دغه زحمت چې غواړو ټولنيز سيستم ته بدلون ورکړو، د حقيقت له مخې که وګورو ډېر عالي او د ستاينې وړ دی! مګر د دې لپاره چې دا کار په چټکۍ او بريـاليتوب سره مخ تـه لاړ شي، لازمه ده چې زه ځانته يوه جوړه نوي موزې رانيســم!- په همدې وخت کې دۀ و خپلو لنډو او زړو بوټونو ته اشاره وکړه. –زما کلوشې هم سړی د تکليف نه نـــــشي خلاصولای، ځکه هغه هم څيري دي او اوبه ور ننوځي. زۀ تر هغه وخت پورې د ځمکې په ګيډه کې کوم ځای د ځان لپاره نه نيســم، څو چې مونږ د دغه زاړۀ، نه رغېدونکي او ګواښونکي نظام د بدلون لپاره کومه عمومي جبهه جوړه نه کړو. نو له دې کبله، ملګرو، زه د وسـله والې مظاهرې په هکله د ســمائلوف وړانديز ردوم او داســې هيله کوم، چې زۀ بايد په يوه جوړه نوو موزو سره مجهز شـــم، ځکه زۀ دا ټينګه عقيده لرم چې دغه کار به زمونږ د ســوســياليزم برياليتوب ډېر ژر پر مخ بوځي، نســبت و هر ډول مظاهرې ته، چې په هغې کې غاښــونه مات او د پزو نه وينې جاري شي!..

په همدې عجيبو کلمو سره به يې کارګرو ته د مختلفو هيوادونو د خلکو د خپل ژوند د هوسايۍ او ښېګړې په منظور د مبارزې په هکله کيسه کوله. مور به د دۀ د خبرو د اوريدلو څخه ډېر خوشاله کېدله او د دۀ خبرو به پر دې باندې ډېر عجيـب تـاثير کـاوۀ. مور تـه د دۀ د خبرو له برکته دا معلومه شــوه چې دې خلکو ته هغه کسان بد ښکاري کوم چې دوی ته دوکه ورکوي، ډېر ظلم کوي. دغـه ظـالمان، ســورمخي او چاغ خلک هغه کســان وو چې ډېر مکر، حيله او شــيطـانـت يې زدۀ و. کله چې به تزار پر دغو فريب کارو خلکو باندې ظلم او اســتبداد کاوۀ، نو دوی به عام خلک د تزار په مقابل کې پورته کړل. کله چې به

دوی د تزار واکمني د عـامو خلکو پـه لاس د منځ څخـه يووړه، پـه ډېر چـل او تقلـب سره بـه يې بيرتـه خپلو خوارو اســتوګنځيو تـه وليږل. کـه دوی بهٔ د دې مکارانو په مقابل کې مقاومت وکړ، نو دې ظالمانو به په ډېر بې رحمانه ډول سره په سلګونو او زرګونو خلک ترې مړهٔ کړل.

يوه ورځ مور خپل ټول ځواک راټول او زړهٔ يې راغونډ کړ او د خپل زړهٔ ټولې غوټې يې په ډېرو سـاده او بسـيطو الفاظو سره و ايګور ته خلاصـې کړې. مور په خجالت سره وخندل او ورڅخه يې وپوښتل:

- ايګور ايوانوويچه، آيا دا حقيقت دی؟

دهٔ ډېر سـخت وخندل، دواړه لاسـونه يې پر ځيګر باندې ومښـل او ويې ويل:

- هو، مورې، دا بالکل حقيقت دی! تا د تاريخ غويي تر ښکر نيولی دی. دلتـه ټول حقـايق پر خپـل ځـای دي، همـدغـه حقايق دي، چې وايي: دغه پنډه پړســيـدلي خلـک خورا لوی ګنـاهګاران دي. فرانســويان په حق سره دوی ته «بورژوازي» وايي. مورې، تاســې دغه نوم په ياد ولرئ، - «بورژوازي». همدغه بورژوازان دي چې د عامو خلکو وينې زبيښي.

- ستا مقصد شتمن کسان دي؟ - مور ترې وپوښتل.

- هو، د دوی بدبختي هم په همدې شـتمنۍ کې ده. تاسـې پوهېږئ، که موږ د يوه وړوکي ماشوم په خواړو کې مس ورګډ کړو، نو دغه مواد به د ماشوم عـادي وده ويجـاړه کړي او د هغـه د قد د ټيټوالي لامل به وګرځي او که يې په طلا سره مســموم کړو، نو د هغه روح به د ربړي توپ په څېر وړوکی شي، چې ټول تر پنځه کپيکه زيات نه ارزي...

یوه ورځ چې دوی د ایگور په باره کې خبري کولې، نو پاول وویل:

- ته پوهېږې، آندري، رښتیا خبره دا ده: هغه کسان چې ډېرې ټوکې او ټکالې کوي، د هغوی زړهٔ همېشه د غمه ډک وي...

خوخول تر لږ ځنډه وروسته په داسې حال کې چې سترگې یې چوغې کړې، ځواب ورکړ:

- که چېرې ستا دا خیال حقیقت وای، نو ټوله روسیه به له خندا نه مړه شوې وای...

په دې ورځو کې ناتاشا بیا معلومه شوه. که څه هم دا په بل ښار کې بندي شوې وه، خو سره له هغه هم داسې معلومیده چې دغې تجربې په ناتاشا کې کوم بدلون نه دی راوستی. مور ته دا څرگنده شوه چې خوخول د ناتاشا په حضور کې ډېر خوښ دی، پر هر چا باندې به یې ټوکې ټکالې کولې چې د ناتاشا له نشاط نه ډکه خندا یې پاروله. مگر کله چې به ناتاشا د کور څخه لاړه، دهٔ به خورا یو په غم لړلی شپیلک شروع کړ او په ډېره ناامیدۍ سره به د کوټې پر ځمکه باندې کښېنته او پورته تلئ.

ساشېنکه به هم تل د ډېر لږ وخت لپاره راتلله، دا به تریوتندي او عاجله وه او د یوه نامعلوم لامل په اثر به تېره او قهرجنه وه.

یوه ورځ چې پاول د ساشېنکه د خدای پامانۍ لپاره د باندې ووت، ور یې ځان پسې پورې نکړ. مور د دوی چټکه مکالمه واوریدله.

- تاسې بیرغ وړئ؟- نجلۍ په ټیټ آواز سره وپوښتل.

- هو.

- آیا دا قاطع پرېکړه دی؟

- هو، دا زما حق دی.

- یعنې، مفهوم یې دا دی چې تاسې به بیا بندي شئ؟

پاول هېڅ ونه ویل.

- آیا تاسې کولای شئ...- نجلۍ بیا پوښتنه وکړه، مگر خپله پوښتنه یې پوره نکړه.

- څه شی؟- پاول ترې پوښتنه وکړه.

- دا چې بیرغ و بل چاته ورکړئ...

- یه! – دهٔ په متانت سره وویل.

- تاسې په دې باره کې فکر وکړئ، تاسې دلته ډېر نفوذ لرئ او هرچاته گران یاست!.. تاسې او آندري دواړه یوازیني کسان یاست چې دلته په آزادۍ کې دومره ستر فعالیتونه مخ ته بېولای شئ. تاسې پوره فکر وکړئ! که تاسې بیرغ واخلئ، نو حتماً به دوی تاسو و یوه ډېر لیري ځای ته د ډېر وخت لپاره ولیږي!

مور هم هغه وېره او غم چې د نجلۍ په غږ کې پروت و، حس کړ. د ساشېنکه خبرې د مور په زړهٔ باندې د یخو اوبو د غټو څاڅکو په څېر ولگیدلې.

- ما په دې باره کې فکر کړی دی! – پاول په ټینگار سره وویل. – هېڅ شی نه شي کولای چې ما له دې کار څخه واړوي.

- آیا که زهٔ هم خواهش درڅخه وکړم؟..

پاول ناڅاپه په ډېرې چټکۍ مگر په غیر عادي ټینگار سره وویل:

- تاسې باید زما څخه دا ډول خواهش ونکړئ. تاسې یې باید ونکړئ!

- زهٔ هم یو انسانه یم!- نجلۍ کرار کرار وویل.

- زښت زیات ښۀ انسان! پاول کرار -کرار په یوه خاصه لهجه لکه چې ساه یې بندیده، وویل. – پر ما باندې ګران انسان! لهذا... لهذا دا ډول خبرې مه کوه...

- د خدای په امان!- نجلۍ وویل.

مور د نجلۍ د پښو له دربهار څخه پوه شوه، چې نجلۍ په چټکۍ سره د باندې لاړه او نژدې وه چې وځغلي. پاول هم په دې پسې انګړ ته ووت.

د مور زړۀ له ډېره غمه منجمد شو، مور د دوی په خبرو پوه نه وه، خو دا یې حس کړه چې په راتلونکي کې یوه لویه بلا د دې په تمه ده. مور فکر وکړ: «هغه څه هدف لري؟»

پاول او آندري دواړه یو ځای راوګرځېدل؛ خوخول په داسې حال کې چې سر یې ښوراوۀ، وویل:

- آه ایسای، ایسای،- مورې باید څه ورسره وکړو؟

- مورې باید دی پوه کړو چې خپل اعمال بس کړي! – پاول په سرکښۍ سره وویل.

- پاوله، ته څۀ پلان لرې؟ - مور خپل سر ځړولی و او ورځنې یې وپوښتل.

- کله؟ اوس؟

- د مۍ په لومړۍ ورځ؟

- آه!- پاول په ټیټ آواز سره وویل. – زۀ غواړم چې په دغه ورځ د ټولو په مخ کې بیرغ یوسم. له همدې جهته فکر کوم چې دوی به مې بېرته په جېل کې واچوي.

د مور سترګې له اوښکو ډکې شوې. خوله يې وچه شوه. پاول د دې لاس ونيو او ناز يې ورکړ.

- مورې، زه مجبور يم چې دا کار وکړم. ته باور وکړه!

- زۀ خو اعتراض نه کوم!- مور په داسې حال کې چې خپل سر يې پورته کړ، وويل. کله چې د مور سترګې د زوی د سترګو د سرکښـي رڼا سره برابرې شوې، بېرته يې سر وځړاوۀ.

پاول د دې لاس خوشی کړ او سوړ اسويلی يې وکيښ. کله چې يې بيا په خبرو پيل وکړ، نو د دۀ په لهجه کې ګيله او خواشيني موجوده وه:

- تاته لازم و چې د دې غم او انديښـني پر ځای دي فخر کړی وای. آه، کله به داسې ميندې پيدا شي چې خپل ماشـومان په خندا او خوشالۍ سره و مرګ ته ولېږي؟..

- زۀ خو څه نه وايم! آيا څه شی مې تر خولې وتلي دي؟ - مور وويل. - زه به هيڅکله ستا په لار کې ونه دريږم. خو د دغې حال تصور ماته ډېر سخت دی، ځکه چې زۀ يوه مور يم.

پاول ورڅخه لېرې شو او مور يې د دۀ سخت الفاظ واوريدل:

- دا څنګه مينه او محبت دی، چې يو سړی د خپل عزم څخه راګرځوي!..

مور سـخت ټکان وخوړ او له دې ويرې څخه چې د زړه پرهار يې نور زيات نه شي، په بيړه سره وويل:

- هيڅ مه وايه، پاوله! زه پوهيږم چې ته بايد د ملګرو په خاطر دا کار وکړې...

- يه! – پاول په ټينګه وويل. – زما د ملګرو لپاره نه، بلکې د ځان لپاره.

آندري په هغه ور ننوت کوم چې دهٔ ته ډېر تیټ و، نو ځکه یې په عجب ډول سره ځان کوږ او یوه اوږه یې په ور باندې تکیه کړه. سـترګې یې د پاول و مخ ته نیولې وې او ویې ویل:

- ښاغلیه، خپلې بې عقله خبرې بس کړه! په همدې وخت کې یې داسې وکتل، لکه چرمښکۍ چې د دیوال په غار کې ګوري.

مور پـه تکلیف سره د اوښـکو مخنیوی کـاوهٔ. پـه دې وخت کې په یوه بهانه سره د باندې ووتله، په یوه کونج کې یې مخ دیوال ته ونیو او اوښکو ته یې لاره خلاصه کړه. د اوښکو په توئیدو سره دومره ضعیفه شوه لکه د زړهٔ وینې یې چې د اوښکو سره یو ځای تویې شوي وي.

په نیمکښه دروازه کې مور د دوی خبرې واوریدلې.

- آیا د مور د آزارولو څخه خوند اخلې ؟ - خوخول وویل.

- ته د دې وینا حق نه لرې! پاول وویل.

- کـه زهٔ تـاته پټه خوله کېنم او ته خپلو دغو چټې خبرو ته دوام ورکړې، نو زهٔ به ځان ښـه ملګری ونشم ګڼلای! ته څه اړتیا لرې چې دا ووایې؟ آیا ته نه پوهېږې چې څه پیښیږي؟

- سـړی باید تل په عزم او متانت سره د لزوم په وخت کې «یه» او «هو» ووایي!

- و دې ته؟

- و هر چاته! زه د هیچا داسې مینه او ملګرتیا نه غواړم چې هغه زما پښې راوتړي...

- څه عجیب اتل یې! خپله پزه دې پاکه کړه! ساشېنکه ته په دې لهجه ووایه، چې دا وینا د هغې پکار ده...

- ما پخوا لا هغې ته ویلي دي.

- ریښتیا؟ درواغ وایې! تا له هغې سره په نرمۍ او مینې سره دا خبرې کړې دي. که څۀ هم ما ستاسې خبرې نه دي اوریدلي، مگر زۀ دا گومان کولای شم، چې تا په ډېره نرمه لهجه ورته ویلې دي، مگر د مور و مخ ته دې د اتلولۍ کیسې شروع کړې. دا ډول اتلولي په یوه پیسه نۀ ارزي.

مور په چټکۍ خپلې اوښکې پاکې کړې، وویرېدله چې خوخول پاول ته کوم سخت شی ونه وایي. په تلوار سره یې دروازه خلاصه کړه او پخلنځي ته ننوتله. مور په لوړ آواز سره په داسې حال کې چې د درد او غم څخه یې غږ ریږدیدۀ، وویل:

که څه هم پسرلی دی، خو بیا هم څومره ساړۀ دي!

مور به مختلف شیان د یوه ځایه څخه و بل ځای ته بې له کوم هدف نه وړل او کوښښ یې کاوۀ، چې غږ یې و هغې کوټې ته ورسیږي، مور بیا په زوره وویل:

ټول شیان بدل سول، خلک تودیږي مگر هوا سړیږي. په دې وخت کې باید آسمان شین او تود لمر وای...

په بله کوټه کې زوږ مات شو. مور د پخلنځي په منځ کې ودریده، غوږ یې نیولی و.

- وا دې وریدل؟ - د خوخول نرم او ټیټ آواز پورته شو. هغه وخت رارسیدلی دی چې تۀ ځان پوه کړې، دې تر تا ډېره مېړانه موندلې...

مور په ریږدیدلي آواز سره وویل: - غواړئ چې چای وڅښو؟

او بې له دې چې ځواب ته په تمه سي او د دې لپاره چې خپل ریږد پټ کړي، ناره یې کړه:

- زۀ بیخي یخ شوم.

پاول ورو -ورو مور ته ورنږدې شو. سر یې ټیټ کړ او د ملامتی خندا یې پر شونډو ځلېدله.

- مورې، بخښــنه راته وکړه!- پاول په ټیټ غږ سره وویل. – زۀ لا تراوســه پورې کوچنی او ناپوه یم...

- یوازې مې پرېږده!- مور د دۀ سر و سینې ته ورچوخ کړ او ویې ویل. – هېڅ راته مه وایه! خدای پوهېږي چې ته د خپل ژوند مالک یې، هر څه چې په کوې، زما زړۀ یوازې پرېږده! آیا یوه مور چې د هغې زړه له مینې څخه مالامال وي، هغه له مینې سره څه کولای شي؟ تاسې ټول پر ما ګران یاست او زما زړۀ ته راتېر یاسـت، تاسـې ټول د دې وړ یاست چې سړی مینه او لېوالتیا درسره ولري! کـه تـه زمـا مینـه د لاســـه ورکړې، بـل څوک شـــتـه، چې هغـه د ځان محبوب وګرځوې؟ ته مخ په وړاندې ځې، نور درپسې روان دي، ټول شیان یې پرېښودل او راستانه شول... پاوله!

د مور په سر کې ډېر لوی او سوځوونکي فکرونه کښته او پورته کېدل. د دې زړۀ د داسـې غم په خوښۍ سره پورته غورځېدلی و چې د هغې د بیان لپاره یې کوم لفظ نشوای موندلای. مور په غیر محسوس ډول سره په تکلیف وه. دې خپل زوی ته د غم او حسرت نه په ډکو سترګو سره ورکتل...

- خیر دی، موري! موري، ته به ما ته عفوه کوې، - زهٔ اوس په اصلي مقصد پوه شوم!- پاول تر شونډو لاندې وويل او په داسې حال کې چې سر یې کښته ځړولی و، په خندا مګر په لږ خجالت سره زیاته کړه:

- زهٔ به دا هیڅکله هېر نه کړم، قسم خورم چې دا به هېر نه کړم!

مور پاول له ځانه ایله کړ او په داسې حال کې چې د کوټې ور ته یې کتل، په نرمه او ملایمه لهجه یې آندري ته وويل:

- آندري! تاسې پر دهٔ مه په قهر کېږئ، ځکه چې تاسې مشر یاست...

خوخول په داسې حال کې چې مور ته یې مخ را وانه ړاوهٔ او بې له دې چې کوم حرکت وکړي، په عجیبه او خنداوره ډول ناري کړې:

- او- او- او- ولې نه؟ حتماً به پر هغه باندې په قهر شم او حتی و به یې وهم!

مور ورو -ورو د خوخول و خواته روانه شوه، خپل لاس یې اوږد کړ او ویې ویل:

- پر ما ګرانه انسانه...

خوخول راوګرځید، سر یې ور چوخ کړ او په داسې حال کې چې لاسونه یې شاته نیولي وو، راساً پخلنځي ته لاړ. مور واوریدل چې خوخول په ډېره سخته او استهزاآمیزه لهجه سره خبرې کوي:

- پاوله، له سترګو مې لېرې شه، کنه سر به دې مات کړم! نېنکو، ته ډېره مه جدي کېږه، زه د دهٔ سره ټوکې کوم! زهٔ به سماوار ولګوم، دا څه سکارهٔ دي، چې ټوله لاندهٔ شوي دي!

دی غلی شو. کله چې مور پخلنځي ته ننوتله، خوخول پر غولي ناست و او سماوار يې پوکاوۀ. دۀ بې له دې چې پورته وګوري، وويل:

- تاســې مه وېرېږئ، زه به ګوتې هم ور نه وړم! زۀ د پاخۀ شــلغم په څېر ملايم يم! ما غوښــتل چې دی پوه کړم مګر په حقيقت کې پر ما ډېر ګران دی! اما دغه واسکټ چې دۀ اغوستی دی، زما خوښ نه دی! تاسې پوهېږئ چې هغه نوی واســکټ اغوســتی وي او خپله خېټه را باسي او پر لاره ځي او ټول خلګ ټيله کوي، تر څو هغوی وګوري چي ده څومره ښـۀ واســکټ اغوســتی دی! په حقيقت کې دغه واسـکټ ښـۀ دی، مګر سره لۀ هغه هم ولې ټول خلک دا ټيله کوي؟ تر اوسه خو هيڅ نه دي سوي او د ده ځای دومره تنګ شوی دی.

پاول په خندا سره وويل:

- لا د خبرو څخه نه يې ستړی شوی؟ څومره ډېري خبرې دې زدۀ دي!

خوخول دواړه پښــې له سماوار را چاپېره کړې او پاول ته يې په ډېر دقت سره کتل. مور په دروازه کې ولاړه وه او په ډېره مينه يې د آندري ګردې شـــا او کړوپې اوږدې غاړې ته ســترګې نيولي وې. آندري خپل اندام شـاته وغورځاوۀ او پـه داســې حـال کې چې دواړه لاســونه يې پر ځمکه تکيه کول، د رپولو په وخت کې يې په خپلو سرو سترګو مور او زوی ته وکتل او په ټيټ آواز سره يې وويل:

- تاسې ډېر ښۀ انسانان ياست، هوکې!

پاول خم شو او د خوخول لاس يې ونيو.

- مه کشـــوه!- خوخول په ډډ آواز سره وويل. – په دې ډول به مې ژوبل کړې...

- ولې داسې شرمېږې؟ - مور په ډک آواز سره وويل. – ښۀ به دا وي چې يو بل ښکل کړئ او کلک يو او بل په غېږه کې سره ونيسئ.

- غواړې؟ - پاول له خوخول څخه وپوښتل.

- ولې نه! – په داسې حال کې چې پاڅېدۀ، ځواب يې ورکړ.

دوی خورا کلک، کلک يو او بل سره غېږ کې ونيول او د هغوی په ليدلو سره داسې منظره منځ ته راغله، چې دوی دواړه يو روح لري او هغه هم د دوستۍ په رڼا کې روښانه دی.

د مور پر مخ بيا اوښکې جاري شوې، خو دا اوښکې د خوشالۍ اوښکې وې. مور چې خپلې اوښکې پاکولې، پر مخ يې د خجالت پرده غوړيدلې وه، نو ځکه يې وويل:

- ښځې ژړا خوښوي، دوی د غم او خوښۍ په دواړو حالتو کې ژاړي!..

خوخول په احتياط سره پاول لږ ټېله کړ، دۀ هم خپلې اوښکې پاکې کړې او ويې ويل:

- دغه کار کافي دی. د سخندرکي د خندا وخت تېر شو، راځئ چې اوس يې کباب کړو! لعنت پر دغو سکرو! ما دومره پو کړل چې بيخي مې سترګې له لوګي ډکې شوې...

پاول په داسې حال کې چې سر يې ځمکې ته ځړولی و، د کړکۍ څنګ ته کېناست او په نرمۍ يې وويل:

- لزوم نه دی چې د دا ډول اوښکو څخه وشرميږې...

د پاول مور ورغله او د دۀ په څنګ کې کېناسته. د دې زړۀ د نوي لېوالتيا او مېړاني سره ډک شو. همدغه مېړانه وه، چې دی يې لږ څه آرامه او راضي کړ.

- زهٔ به لاړ شم او د چایو لوښي به دننه راوړم، - خوخول په داسې حال کې چې کوټې ته وردننه شو، وویل. - نېنکو، تاسې لږ استراحت وکړئ او د خپل زړهٔ غم بیخي هېر کړئ!..

د خوخول د پیاوړي غبږ انعکاس دوی ته بېرته راغی:

- موږ د ژوند په پوره خوند پوهېدلي یو، اوس زموږ ژوند واقعاً د انسانیت وړ دی!..

- هو!- پاول مور ته وکتل او ویې ویل.

- همدغه شی دی چې د هرڅه بنه یې اړولې ده! - مور زیاته کړه. - زموږ ستونزو هم بل شکل ځان ته نیولی او زموږ خوشالي هم بله بڼه ځان ته غوره کړې ده...

- ژوند باید دغه ډول وي!- خوخول خبرو ته دوام ورکړ. - ځکه چې، زما مهربانې نینکو، په موږ کې نوی زړهٔ پیداکېږي، سړی مخ پر وړاندې ځي او د دلیل او عقل پلوشې شاوخوا ته پر نړۍ باندې استوي او د خپل تګ په وخت کې داسې نارې وهي: «اې، د ټولې نړۍ خلکو، سره یو شئ او یوه کورنۍ جوړه کړئ!» د دهٔ د غږ په ځواب کې ټول پاک زړونه سره یو ځای کېږي او داسې یو لوی زړهٔ جوړوي چې د هغهٔ غږ د کلیسا تر غږ پیاوړی او اغېزمن دی...

مور خپل شونډې د دې لپاره سره ټینګې کړې، څو چې نور خلک د هغې ریږدیدل ونه ویني او همدرانګه یې د اوښکو د پټولو لپاره سترګې پټې کړې.

پاول خپل لاس پورته کړ او غوښتل یې چې کوم شی ووایي، مګر مور هغه ورکش کړ او ورته یې وویل:

- د دهٔ په خبرو کې مه ورلوېږه...

- تاسې خبر یاست؟ - خوخول په داسې حال کې چې په دروازه کې ودرید، وویل.- خلک ښایي په غم او مصیبت اخته شي او ډېرې ویني به یې توی شي. مګر ټولې ویني او ستونزي د هغو شیانو په مقابل کې چې زما په مغز او فکر کې دي، هېڅ قیمت نه لري. زهٔ هر شی زغملای شم، ځکه چې زهٔ د داسې خوښۍ خاوند یم چې هېڅوک یې نشي راڅخه اخیستلای. همدغه خوښي ده چې زما ټول ځواک تشکیلوي.

دوی چایو ته کېناستل او تر نیمې شپې یې د ژوند، خلکو او د هغوی د راتلونکي په باب خبرې وکړې.

کله چې به کومه مفکوره مور ته روښانه وه، مور به په سوړ اسویلي سره د خپل تېر شوي ژوند څخه د دې مفکورې د ثبوت لپاره کومه یوه درنه خاطره ور په زړهٔ کړه.

د دې وېرې د دوی د مباحثې په اثر ویلې شوه، دې هغه ورځ چې ډېره پخوا تېره شوي وه او پلار یې پکې ورته ډېرې ترخې خبرې کړي وې، ور په زړهٔ کړې چې ورته ویل یې:

- که چېرې یو احمق سړی پیدا شو چې غواړي له تاسره وادهٔ وکړي، نو بې له کوم شک او تردید څخه یې مېړه جوړ کړه. ټولې پیغلې ودونه کوي، ټولې ښځې بچیان زیږوي، مګر بچیان بې له ستونزي څخه بل کوم شی دوی ته نه راوړي. ته او هغه کوم توپیر نه لرئ!

د خپل پلار تر وینا وروسته دې یوه حتمي او ډاریدونکي لار ولیدله چې هغه هم په توره تیارهٔ او بیدیا کې وه. د دغې لار وهل په دې کې یو غیر

محسوس درد ایجاداوۀ. په همدې شیبه کې د مور په زړۀ کې یو مشابه حس پیدا شــو، نو یې په غیر ارادي ډول سره د کینې او بدبینۍ له مخې مجهول ســړي ته داسې بیان کاوۀ:

«دغه واخله!»

په دې خبرو سره به د دې زړۀ چې د یوه کش شــوي تار په څېر څړیدۀ، لړ خوړ شو.

## «۲۴»

یوه ورځ سهار وختي چې پاول او آندري کار ته لاړل، کورسونووا دروازه وټکوله او نارې یې کړې:

- دوی ایسای مړ کړی دی! راځه چې لاړ شو او ویې وینو.

مور سخت ټکان وخوړ او سمدستي د دې په سر کې د قاتل نوم د یوې جرقې په څېر ور معلوم شو.

- چا وژلی دی؟ - مور په داسې حال کې چې پر اوږو یې شال اچاوۀ، په بیړه سره وپوښتل.

- څوک چې کس وژني، طبیعي ده چې سر ته یې نه کېني!- کورســونووا وویل.

په کوځه کې یې زیاته کړه:

- ښــایي چې اوس بیا د قاتل د پیداکولو لپاره نوې تلاښــي وکړي، دا ښــۀ خبره ده چې برایي شــپــه ســـتا زوی او د هغه ملګري په کور کې وو او زۀ به د

ضرورت په وخت کې شاهدي ورکړای شم. زۀ برابي شپه ډېر ناوخته تیریدلم، ستا په کړکۍ کې مې وکتل، تاسې ټول د میز پر شاوخوا ناست واست...

- ماریا، دا څه وایې؟ آیا څوک پر دوی باندې دا ډول بدګماني کولای شي؟ - مور په ډار سره وویل.

- ښه، هر چا چې ایسای وژلی دی، هغه حتماً ستا له زوی سره اړیکې لري!- کورسونووا په پوره ایمان سره وویل. – هر څوک پوهېږي چې ایسای په دوی پسې څار کاوۀ...

مور ودریده او د تنفس واک یې نه درلود. لاسونه یې پر سینه کېښودل.

- څۀ کیسه ده؟ مه ویریږه! دۀ د خپلو اعمالو بدله ترلاسه کړه! ژر شه، که نه وي اوس به یې چېرته یوسي!..

د مور ګمان د ویسوفشیکوف په باب ډېر ټینګ و.

«دی و خپل وروستي پړاو ته رسیدلی دی»- مور فکر کاوۀ.

په یوه داسي ځای کې چې له فابریکې څخه لېرې نه وو او د یوه سوځیدلي کور خنګ ته وو، د خلکو لویه ډله راټوله شوې وه او د غالبوزو په څېر یې بوزه هار کاوۀ. یوه سوځول شوي کنده کښته پورته کېدله او ایرې یې هم هوا ته پورته کېدلې. په دې ځای کې ډېرې ښځې، کوچنیان، دکانداران، د میخانو شاګردان، پولیس او د محلي ژاندارم پتلین چې یو جګ زوړ سړی و او په په ببره بږیره کې یې سپینې زلفې ځلیدلې او پر سینه باندې یې ډېر مډالونه ځړولي وو، دلته لیدل کېدل.

د ایسای نیم بدن د کېناستلو په حال کې او نور یې په پر ځمکه باندې پروت و او یوې سوي کندې ته یې تکیه کړې وه. لوڅ سر یې ښي اوږې ته

کوز و. د دهٔ ښــی لاس د پټلون په جیب کې و او بل لاس یې د ځمکې په پستو خاورو پورې ټینګ کړی و.

مور د ایسای و مخ ته وکتل، که ګوري ایسای داسې معلومیږي، لکه دی چې و خلکو ته ګوري او خوله یې داســې خلاصــه نیولې ده، لکه د کوم شي په بـاب چې فکر کوي. سره بږیره یې یوې خوا ته کږه وه. د دهٔ ډنګر بدن، تېرهٔ سر او کورکوری مخ سره داسې وچ شول چې تر پخوا کوچني معلومیدل. مور دعاء وکړه او اسویلی یې وکیښ. ایسای چې ژوندی و، مور ډېره ورڅخه کرکجنه وه، مګر اوس یې د دهٔ پر حال باندې ډېر افسوس کاوهٔ.

- هېڅ ویني نهٔ لیدل کیږي!- یوه سړي په غلي آواز سره وویل.- حتماً یې په سوک وهلی دی...

د کوم چا قهرجن او له غضب نه ډک آواز واوریدل شو:

- د غماز خوله بنده شوه...

ژاندارم ښځې سره پورې وهلې او په ګواښمن ډول سره یې وویل:

- څوک دا ډول خبري کوي؟

خلکو ورته لار ورکوله، ځینې په ډېر تلوار وتښتېدل. یوه سړي په خوشاله کېدونکي ډول وخندل.

مور هم خپل کور ته روانه شوه.

«هېچا د ایســای په حق کې زړهٔ ســوی نهٔ کاوهٔ!» - مور لهٔ خپل ځان سره فکر وکړ.

د مور مخ تـه د نیکولای پلن انـدام د یو ســیوري په شــان ولاړ و. د دهٔ سترګې ډېرې تېرې او سختي وې، خپل لاس يې داسې ښوراوهٔ لکه په کوم شي چې ژوبل شوی وي...

کله چې د مور زوی او آنـدري کور ته راغلل، دې فوراً د پیښــې په اړه ترې وپوښتل:

- آیا تراوسه پورې يې څوک نیولی دی؟

- تراوسه پورې مو څهٔ نه دي اوریدلي! – خوخول ځواب ورکړ.

مور ته معلومه شوه چې دوی دواړه غمجن او پرېشان دي.

- آیا د نیکولای په اړه چا څه ویلي دي؟- مور په نرمۍ سره وپوښتل.

د دې زوی په داسې حال کې چې په سترګو کې يې سرکښي او په لهجه کې شهامت ښکاریدهٔ، وویل:

- یه، هیڅ نه وايي او زهٔ داســې فکر کوم چې ښــايي دوی حتی د هغه په حق کې ناســم ګومان ونه لري. هغه لېرې دی. ما معلومات وکړل چې هغه پرون د سیند غاړې ته تللی دی او تراوسه پورې ندی راغلی.

- خدایه، شکر دی!- مور سپک اسویلی وکړ او ويې ویل: -الحمدالله!

خوخول دې ته وکتل او سر يې وځړاوهٔ.

مور په فکر کې ډوبه تللې وه او د پېښې په باره کې يې کیسه کوله: -هغه په داسې ډول پروت و چې ګوندې د کوم شي په هکله حیران وي-دومره عجیبه بڼه يې درلوده! پـه ایســای هېڅوک غمجن نـه و، هېچا د دهٔ په حق کې کوم د مهربانۍ لفظ نه وايهٔ. ډېر کوچنی او بې عظمته و. داســې معلومیده لکه ســړی چې لرګی پرې کړي او ويې غورځوي.

د ډوډۍ په وخت کې پاول په ناڅاپي ډول سره خپله کاچوغه وغورځوله او چیغې یې کړې:

- زه په دې هېڅ نه پوهېږم!

- څه خبره ده؟ - خوخول ترې پوښتنه وکړه.

- موږ پســـونه د خواړو لپاره وژنو، البته زموږ دا کار هم بد دی، موږ باید هغه وحشـــــــي حیوانات چې ګواښــونکي دي، ووژنو. زه پخپله حاضر یم، یوکسچې د خلکو لپاره ځناور ګرځېدلی وي، مړ کړم، مګر پر دغه بیچاره باندې څه ډول د چا لاس پورته شوی دی؟..

خوخول خپلې اوږې وښورولې او ویې ویل:

- دی د یوه وحـــــــــشي حیوان په څېر و، دی ټولنې ته مضر و. موږ له غوماشو سره زاړه دښمني لرو، ځکه چې وینې مو څښي.

- ستا خبره حقیقت لري او زما مقصـد هم دا نه دی، بلکه وایم د ایسـای وژل سړی له ژوند څخه کرکجن کوي.

- هېڅ چاره نشته! – آندري بیا خپلې اوږې وښورولې او ځواب یې ورکړ.

- آیا تا به دا ډول سـړی وژلی وای؟ - پاول په فکر کې ډوب شـو او له لږ ځنډ وروسته یې پوښتنه وکړه.

خوخول په خپلو ګردو سترګو سره و پاول ته وکتل او بیا یې په تېزۍ سره مور ته مخ راواړاوه او په ټینګار او غم سره یې وویل.

- د خپلو ملګرو په احترام او زموږ د ستر کار لپاره زه تیار یم چې هر کار وکړم. د لزوم په وخت کې حاضر یم چې حتی خپل زوی مړ کړم.

- توبه، توبه آندري!- مور په نرمۍ سره وویل.

دۀ په موسکا سره مور ته وویل:

- بله چاره نشته! ژوند دا ډول دی!..

- بلې!- پاول ورو -ورو وویل. – زموږ ژوند دا ډول دی...

ناڅاپه آندري وغورځېد او په څېره کې یې ډېر اضطراب ور پیدا شو. دۀ خپل بازوګان وښورول او په ولولو سره یې په خبرو پیل وکړ:

- موږ پـه دې اړه څـۀ کولای شــو؟ موږ مجبور یو چې د خلکو څخـه کرکجن اوسو، تر څو داسې وخت ډېر ژر راشي چې له دوی ټولو سره زموږ مینه او محبت پیدا شي. موږ باید هر هغه څوک چې د ترقۍ مانع ګرځي، د خلکو د ارواحو په له منځه وړلو او خرڅلاو سره خپل عزت او سلامتي ټینګوي، له منځه یوسـو. که چېرې زۀ دغه ډول خلک له منځه یونسم، نو زۀ به په خپله خاین یـم! آیـا زۀ حق نه لرم؟ او دوی زموږ جمادارانو دا حق لري چې خلک غرغره کړي، په جېل کې یې واچوي، تېښــتې ته یې اړ باسي او نور څۀ او څۀ دي چې دوی یې د خپل هوسا ژوند او ښېګړې لپاره نه کوي؟ ځینې وختونه زۀ مجبورېږم چې د دوی د لاس ســوټي پـه خپل لاس کې واخلم، - بله چاره نشــته. حتماً به یې راواخلم، انکار به ونه کړم! دوی زموږ څخه په زرو-زرو وژلي دي، - دا ماته حق راکوي چې په دښـمن خپل لاس پورته کړم، پر هغه دښمن چې ترټولو ډېر ماته را نژدې شوی او تر ټولو ډېر مضـــر دی. ژوند همدا ډول دی، مګر زۀ پخپله له دغـه ډول ژونـد سره جوړ نـه یم، هېڅکله نۀ غواړم چې دغســې ژوند وکړم. زۀ پوهېږم چې د دوی له وینو به هېڅ شی ترلاســه نه شي، ځکه چې د دوی وینې چټلې دي. کـه زموږ وینې توی شي، نو حقیقـت به د باران د څاڅکو په څېر د ځمکې پر مخ وپاشل شي. مګر که د دوی وینې توی شي، ښکاره ده چې بې له

کوم اثر څخه به وچې شي. البته د دې ډول فکر مجرم به زه یم. بنایي زۀ دا ډول کـار وکړم. فکر وکړه، زۀ یوازې د خپلې ګناه په باره کې درته غږیږم. زما ګناه به لـه ماسره یو ځای مړه شي. او په راتلونکي نســل باندې به کوم اثر ونه کړي. دا ګناه به بې له ما څخه بل هېڅوک لکه داره نه کړي.

خوخول د کوټې پـه منځ کې کښــته پورته کېدۀ او لاســونه یې داســې ښـورول لکه یو سړی چې کوم شی مات کړي او بیا هغه له ځانه غورځوي. مور دۀ تـه پـه ډېر غم او درد سره کتل او داســې فکر یې کاوۀ چې د دۀ په بدن کې کوم شی مات شـوی دی او اوس ډېر سخت درد کوي. د وژلو خطرناک او تور افکار له مور څخه لاړل: «که چیرې ویسـوف‌شیکوف د ایسای په مرګ نه وای مرتکب شــوی، نو د پاول بل هېڅ ملګری نشــته، چې پۀ هغه کې برخه ولري»- مور داسې فکر کاوۀ. پاول په داسې حال کې چې سر یې ځړولی و، د خوخول و اوریدۀ او لـه ګوانښ نـه ډک بیان ته غوږ نیولی و. هغه په ټینګ آواز سره خپلو خبرو ته ادامه ورکړه:

- کلـه چې ســړی وغواړي مخ تـه لاړ شي، پـه خپله باید پخپله لار کې ودریږي. ته باید وتوانیږي چې هر څه قربان کړې، حتی خپل زړۀ هم، دا آسانه خبره ده چې یو سـړی د کومې موضـوع لپاره د خپل ژوند څخه تېر شي، اما ته باید دا واک هم ولرې چې تر روح ګران شی وښندې. په دې حقیقت سره به ته هغـه هدف تقویه کړې، د کوم چې هیله لرې. حقیقت یو داســې ګران او عزیز شی دی چې په ټوله دنیا کې ساری نلري!

خوخول د کوټې په منځ کې ودرید. د مخ بڼه یې الوتې وه او سترګې یې نیمې پټې کړې او یو لاس یې د وفا په ډول پورته کړ:

- زۀ پوهېږم چې خلک به و خپلې هغې ښکلا ته چې ستوري ورته عاجزه وي، پـه حيرت کې ولويږي. ځمکـه بـه د خپلواکو خلکو څښتـــنـه شي او ډېر خلـک بـه پـه آزادۍ سره ژونـد وکړي. ټول زړونه به د يوه او بل پر مخ خلاص شي، دا زړونـه به د حســـد او بدبينۍ څخه بيخي پاک وي، وروســـته به د ژوند مفهوم د انسـانانو په چوپړ کې ولټول شي. هر سـړی به د عظمت څښتن شي او روحي ښـکلا به پيدا کړي. دی به د آزادۍ په رڼا کې هرڅۀ ويني، خلک به د خپل شخصيت د ښکلا لپاره د آزادۍ او انسانيت ژوند ځانته غوره کړي. د دوی په منځ کې به ځلانده او له ښـکلا مالامال شـخصيت هغه وي چې نړۍ په پراخ زړۀ سره ځانته ور کش کړي، له هغې سره د زړۀ له کومې مينه وکړي. هر څومره چې خلګ پوره او کامله آزادي ولري، په هماغه اندازه به دوی د عالي شخصيت خاوندان وي او پوره انساني کرامت به لري...

خوخول غلی شو، وروسته پورته شو او په لوړ آواز سره يې وويل:

- د دغه شرافتمند او د انسانيت وړ ژوند لپاره بالکل تيار يم، چې هر ډول قرباني ورکړم...

په همدې وخت کې د دۀ پر مخ د تشنج حمله راغله او پر زنه يې اوښکې جاري شوې.

پاول په داسې حال کې چې د مخ رنګ يې الوتی و او سترګې يې راوتلې وې، سر راپورتـه کړ او پـه ځير سره يې خوخول ته وکتل. مور له څوکۍ پاڅيده او داســې معلوميـده لکـه په زړۀ کې يې چې د يوه ډېر لوی غم اور د بليدلو په حال کې وي.

- آندري، په تا څه شويدي؟ - پاول په نرمۍ سره وپوښتل.

خوخول سر وښــوراوۀ او خپـل ځـان يې پوره راپورتـه کړ او مور تـه يې مستقيماً وکتل:

- ما وليدل... زه يې پيژنم...

مور د دۀ و خوا ته ورغله او دواړه لاسونه يې ځنې ونيول. دۀ کوښښ وکړ چې خپل ښــی لاس ځنې خلاص کړي، مگر مور هغه ډېر ټينگ نيولی و. مور ورته وويل:

- اې زما گرانه! آرام اوسه، زما گرانه...

- پرېږدئ! – خوخول تر شــونډو لاندې په ډډ آواز سره وويل. – زۀ به د پيښې پوره خصوصيات تاسو ته ووايم...

- مه وايه، اړتيا نشـته!- مور په داسـې حال کې چې سـترگې يې له اوښکو ډکې وې، وويل. – مه وايه، آندري...

پاول ورو- ورو دوی ته نژدې شـو، د مخ رنگ يې الوتی و او سترگې يې لندې وې. پاول په خندا او ټيټ آواز سره وويل:

- مور وبيريدله چې ښايي دغه کار ستا په لاس شوی وي...

- زه نه يم بيريدلي، زه باور نه کوم، که زۀ يې په خپلو ســترگو هم ووينم، نه يې منم!

- صبر وکړئ! – خوخول بې له دې چې هغوی ته وگوري، خپلو خبرو ته دوام ورکاوۀ او کوښــښ يې کاوۀ چې خپل لاس خلاص کړي. – که څه هم دا کار ما ندی کړی، خو د ايسای د وژلو مخه مې هم ونه نيوله...

- آندري، خولۀ دې پټه کړه!- پاول ورته وويل.

پاول په یوه لاس د خوخول لاس ونیو او بل لاس یې د هغه پر اوږه باندې کېښود، کوښښ یې کاوۀ چې دا لوی او پیاوړی سړی آرام کړي. خوخول خپل سر ورښکته کړ او په ټیټ او مات شوي آواز سره یې وویل:

- پاوله، ته باور وکړه چې ما د هغې حادثې پېښېدل نه غوښتل. خو پېښه پـه دې ډول وه: کله چې زۀ تا په کونج کې د دراگنوف سره پرېښــودلم، لږ څۀ وروسته راغی. موږ ته یې په پټه کتل او غوږ یې نیولی و. دراگنوف ما ته وویل: «دی وینې؟ ټوله شـپه زما په تعقیب تېروي، ښـایي چې زۀ دۀ ته یو سخت لگاو ورکړم». وروســته تر هغه زۀ دۀ پرېښــودلم او ما فکر وکړ چې هغه خپل کور ته لاړ... په دې وخت کې ایسای زما خوا ته راغی...

خوخول سوړ اسویلی وکړ.

- زۀ په ټول ژوند کې بل هېڅ‌ا د دۀ په څېر نه وم سپک کړی.

مور دی د یوه میز و خوا تـه روان کړ او کېنـاســتلو تـه یې مجبور کړ. دا پخپله داســې نژدې د دۀ و څنگ ته کېناســتله چې اوږې یې سره لگېدلې. پاول په ډېره ناآرامۍ سره وچ ولاړ و او پخپله ږیره کې یې لاس واهۀ.

- ایسای ما ته وویل چې دوی ته ټول زموږ ملگري ور معلوم دي او زموږ ټول نومونه د ژاندارمو په لســت کې شــته او دوی غواړي چې موږ ټول پخوا له دې چې د مۍ د لومړۍ ورځې جشـن تجلیل شي، ونـــیســــي. ما و دۀ ته کوم ځواب ور نه کړ، بس یوه خندا مې ورته وکړه. مگر ټول بدن مې ویشــید. دۀ ما ته وویل چې زۀ ډېر هوښیار ځوان یم او په ناحقه سره ما دغه لار نیولې ده، دا به ډېره ښه وي که زۀ...

خوخول ودرید، په کینې لاس سره یې خپل مخ پاک کړ، په ســترګو کې یې یوه ساړه غوندې روښنایي ځلیدله.

- زه پوهٔ شولم! - پاول وویل.

- دهٔ راته وویل چې دا به ښهٔ وي چې زهٔ د قانون په خدمت کې ودرېږم!

خوخول خپل لاس پورته کړ او د سوک په ډول یې وښوراوهٔ، تر شونډو لاندې یې وویل:

- قانون! اې د دهٔ لعنتي روحه! دا به ماته آســانه وه که زهٔ یې پر مخ وهلی وای، ښــایي دهٔ ته به هم ګټوره وای. مګر دا چې دهٔ په دې ډول سره زما په زړهٔ کې راتف کړل، د دهٔ دې چټلو ناړو زما حوصله خلاصه کړه.

خوخول په ډېر عصبانیت سره خپل لاس د پاول څخه کش کړ او په ټیټ آواز چې په هغه کې کرکه او اکراه موجوده وه، وویل:

- ما ایسـای پر دا مخ په سوک وواههٔ او ځنې لاړم. تر شا مې د دراګنوف غږ واورید چې ویل یې: «پوره دې خپل حق ته ورسـاوهٔ؟» ماته دا معلومه شـوه چې دی ایسای ته په کونج کې پټ ولاړ و.

له لږ ځنډ وروسته خوخول بیا وویل:

- کـه څـه هم د بـدګمانۍ حس مې درلود او حتی د یوه ګوذار غږ مې واورید، خو بیا مې هم شاته و نه کتل او سیده پر خپله لار لاړم. کله چې د سهار له خوا فابریکې ته راغلم، ټولو خلکو نارې وهلې: «ایسای یې وژلی دی!» ما نه منل. مګر زما په لاس کې داسـې درد پیدا شـو چې په ډېره سـختۍ سره مې کار کاوهٔ. لاس مې دومره درد نه درلود، مګر داســې معلومیده لکه لنډ شــوی چې وي...

خوخول پڅ و خپل لاس ته وکتل او ويې ويل:

- زه فکر کوم چې پـه خپل ټول ژوند کې به دومره واک پيدا نه کړم چې دغه چټله لکه له خپل لاسه ومينځم...

- تر هر څـهٔ مهمـه دا ده چې تـهٔ د يوه پاک زړهٔ خاوند يې- مور په نرمۍ سره وويل.

- آه، زهٔ هم ځـان گرم نهٔ گڼم!- خوخول په ټينگار وويل. – يوازې دا کار لږ ســړی ناهيلی کوي، زهٔ مجبور نه يم چې په هغه ځان ککړ کړم او دا کار زما لپاره بالکل اضافي و.

- زهٔ ســتا پـه مقصـــد پوه نشـــولم!- په داســې حال کې چې اوږې يې وښورولې، پاول وويل. – تا ايسای ندی وژلی، مگر که تا وژلی هم وای...

- وروره، غوږ ونيســه! دا څنگه ســخت تماميږي چې د چا د وژلو په اړه پوره خبرتيا ولرې، مگر هېڅ مخه يې ونه نيسي...

پاول په متانت سره وويل:

- زهٔ په دې بيخي پوه نشوم...

له لږ فکر وروسته يې زياته کړه:

- البته پوهېدلای شم، مگر احساسولای يې نشم.

پـه دې وخـت کې د فابريکې توله ووهل شـــوه. خوخول خپل سر يوې خوا ته کوږ کړ او د تولې امرانه احضارې ته يې غوږ ونيو او بيا يې سر وغورځاوهٔ او ويې ويل:

- زهٔ کار ته نهٔ ځم...

- زهٔ هم کار ته نهٔ ځم، - پاول ځواب ورکړ.

- زهٔ حمام ته ځم!- آندري يوه لنډه خندا وکړه او بيا يې خپل کالي په بيړه سره ټول کړل او په ډېر غمجن حالت سره له کوره ووت.

دی د مور لهٔ خوا د مينې او الفت په ســترګه تعقيب کېدهٔ. مور و زوی ته وويل:

- پـاوله، هر څه چې مو زړهٔ غواړي، هماغســې وکړئ! زه پوهېږم چې د ســړي وژل ګناه ده، مګر زهٔ هېڅوک نه ملامتوم. زهٔ د ايســای په باره کې ځکه غمجنه يم چې هغه ولې دومره پست و. کله چې ما نن د دهٔ جنازې ته وکتل، نو داسې را په زړهٔ شول: دا هغه سړی و چې تل يې په دار کولو ګواښلو. مګر اوس يې زما په زړهٔ کې کومه کرکه را وا نه چوله او زهٔ د دهٔ په مرګ خوشاله نه شوم.

دا غلې شوه، تر لږ فکر وروسته يې بيا په حيرانتيا سره په خبرو پيل وکړ:

- اخ خدايه، رحم راباندې وکړه، - پاوله، زما خبره دې واوريده؟..

- ښايي د پاول غوږ هم د دې و خبرې ته نه و، دهٔ سترګې د قدم وهلو په وخت کې کښته اچولي وې او په تريو تندي يې وويل:

- دا څنګه يو ژوند دی! وګوره څنګ خلک د يو بل مخالف دي؟ سړی مجبور دی چې کوم کس ووهي! او څوک وهي؟ يو داسې غريب موجود چې هغـه هم تر تـا زيـات حق نلري. په داســې حال کې چې هغه ښــايي تر تا هم بدبخت وي، ځکه چې احمق او نادان دی. پوليس، ژاندارم، عســکر، مخبران- ټول زموږ دښـمنان دي، که څه هم دوی ټول زموږ په څېر غمځپلي انسانان دي او د دویويني يې هم څېښــلي دي. موږ د ژونـدانه په لحاظ ټول يو ډول يو. ناپوه خلک يې يو د بل په مقابل کې پورته کړيدي، دوی د ويرې او ناپوهۍ په واسـطه ړندوي، د دوی لاسـونه او پښـې ورتړي، وينې يې څېښي، يو د بل سره

يې په جنګ اچوي او د لزوم په وخت کې يې يو په بل وژني. دوی ناپوه انسانان په ټوپکو، سوټيو، ډبرو بدل کړل، بيا نو خپل دغه جنايت ته داسې لقب ورکوي: «دا دولت دی!..»

پاول و مور ته ورنژدې شو.

- مورې، دا کار په ريښتيا سره لوی جنايت دی. دوی په ميليونونو خلک په ډېري سختۍ سره وژني، دوی د انسانيت روح وژني، دوی ټول د انساني روح دښمنان او قاتلان دي. مورې، ته زموږ او د دوی په منځ کې ډېر توپير ليدلای شې، ځکه که موږ سړی يوازې ووهو، ناآرامه، شرمنده، مايوسه او کرکجن يو؛ اما دوی په زرګونو خلک په بې رحمۍ سره بې له کوم ډېري او ناهيلۍ وژني او په دې کار سره د خپل روح رضايت حسوي. د دې فاجعې يوازينی دليل دا دی: دوی غواړي چې د خلکو په وژلو سره خپل سرۀ او سپين زر، آرامي او نور پليت شيان چې په هغه سره يې موږ خپل مريان کړي يو، پر خپل ځان باندې وساتي. مورې، دې ته فکر وکړه: دا چې دوی خلک وژني او د هغوی روح قبضوي، دا د دوی د ژوند د ساتنې تقاضا نه ده، بلکه د دوی مال او منوال دا تقاضا لري...

پاول د مور لاسونه کلک ونيول، مور ته ورټيټ شو او ويې ويل:

- کۀ ته يوازې پوه شې چې د دوی دغه اعمال څومره پليت او له شرمه ډک دي او هغه شی چې موږ يې د ترلاسه کولو لپاره جنګيږو، څومره لوړ او عالي دي، نو به دا درته څرګنده شي چې زموږ طريقه څومره ښه ده!..

مور ولاړه شـــوه او پـه ډېر خفگـان سره یې سر وښـــوراوۀ او دا هیله یې درلوده، چې د خپلې سینې بل شوی اور د زوی د اور سره یو ځای کړي او یوه لمبه ترېنه جوړه کړي.

- صـبر وکړه، پاوله، لږ صـبر وکړه!- مور په داسـې حال کې چې نفس یې بندیدۀ، تر شونډو لاندې وویل:- زۀ دا ټوله حسوم، - تۀ لږ صبر وکړه!..

## «۲۵»

یوه سړي په ډېر شورماشور سره د سرای په دهلیز کې پښه کېښودله، مور او زوی دواړو په حیرانتیا سره وکتل.

په همدې وخت کې ور خلاص شو او ربین په سرای راننووت.

- زۀ خو بیا راغلم!- په داسې حال کې چې سر یې پورته کړ، دۀ په موسکا سره وویل.

ربین یو پوســتینچه اغوســتې وه چې په قیرو لړلې وه، یوه ببره د پســه د پوســت خولۍ یې پر سر وه او یوه جوړه تورې دســتشــکې یې په کمربند کې منډلې وې. دۀ وویل:

- تاسـې څنگه یاسـت؟ پاوله، ته یې اخېر هم خوشی کړې؟ ښه، ډېر ښۀ. پلاگېیا، ته څنگه یې؟ - په داسـې حال کې چې سـپین غاښـونه یې ښکاره کړل، ربین په پوزخند سره وول. د دۀ آواز تر پخوا ملایم شوی و، مگر پر مخ یې ډېره گڼه ږیره شنه شوې وه.

مور د دهٔ په ليدلو خوشـاله شوه، ور نژدې شوه او د دهٔ غېږ تود لاس يې په خپل لاس کې ونيو او په داسې حال کې چې د قير توند بوی يې تنفس کاوهٔ، ور ته يې وويل:

- ښه، ښه، څومره خوشاله شوم چې تا دلته وينم!

پاول په داســې حال کې چې ربين ته يې په ځير- ځير کتل، په خندا سره وويل:

- بالکل يو سوچه کليوال درنه جوړ شويدی!

د دوی ميلمه ورو -ورو خپل پوستين وکيښ او ويې ويل:

- هو، زه بېرته بزگر شوم. تاسې خپلې د ښاغليو لار ته دوام ورکوئ، مگر زهٔ پر بله لار روان شوم.

کلـه چې دهٔ خپـل ککړ کميس پر غاړه برابراوهٔ، کوټې ته دننه شـــو او په دقت سره يې کوټه معاينه کړه. وروسته يې وويل:

- بې له کتابه بل نوی مال او منوال ندی زيات شـــوی، -ها! نوي خبرونه راته وواياست!

دی کېناست او پښې يې وغځولې، په لاسو يې خپل زنگنونه ټينگ کړل او د پاول و مخ ته ځير شو چې اوس به څهٔ ډول ځواب واوري.

- کارونه مو چست او چابک مخ په وړاندې ځي!- پاول وويل.

- مور، يوې کوو، تخم پاشـو او بيا د هغې و لوئيدلو ته گورو، وروسـته بيا خپـل شراب جوړوو، کـال هم تيريږي، دغه دی زمونږ ژوند... – ربين د ټوکو په ډول وويل.

- ستاسې څۀ حال دی، میخائلو ایوانوویچه؟ - پاول دۀ ته مخامخ کېناست او ورځنې یې پوښتنه وکړه.

- ډېر ښۀ! اوس د ایګیل دیوو په کلي کې اوسم. زما اوسنی ځای ډېر ښۀ کلی دی. په کال کې دوه عمومي بازاره لري. نفوس یې له دوو زرو ډېر دی، - ډېر قهرجن خلک دي. ډېره بې وزلې سیمه ده، ځمکه د اصلي اوسیدونکو نه ده، خلک مجبور دي چې ځمکه په اجاره واخلي. په دې ځای کې د ټولو آسمانو او ځمکو غریبان راټول شوي دي. هلته دومره ډېر غریبان راټول شوي دي، لکه د مرداری چنجي. هلته سکاره سوځوو او قیر ځنې جوړوو. که څۀ هم زۀ دوه برابره هلته کار کوم، مګر معاش مې څلور برابره لږ دی. موږ اوه تنه یوه خونخوار ته کار کوو. ټول ښۀ ملګري دي، د دې محل اوسیدونکي دي، یوازې زۀ بیګانه یم. ټول ځوانان دي، د ټولو لیک او لوست زده دی. په دوی کې یو تن چې یفیم نومیږي، ډېر ښۀ فکر لري، نۀ پوهېږم چې څۀ ورسره وکړم.

- څنګه تاسې د دوی سره بحث کوئ؟ - پاول په ډېر اشتیاق سره وپوښتل.

- تاته معلومه ده چې زه خپله ژبه نۀ ساتم. دغه دی ټولې تبلیغاتي پاڼې چې ۳٤ دانې دي، لۀ ما سره موجودې دي، مګر زۀ تل انجیل کاروم. په انجیل کې ډېر ښۀ شیان پیداکیږي. انجیل یو پنډ کتاب دی، د کلیسا د ریاست رسمي خپرونه ده.

پاول ته یې سترګک وکړ او په پوزخند سره یې خبرو ته دوام ورکړ:

- صرف دغه انجیل کفایت نه کوي. زۀ راغلی یم او ځینې نور کتابونه له تا غواړم. موږ دلته دوه تنه یو، یفیم مې ځان سره راوستلی دی. دوی موږ د قیرو سره دلته راوستلي یو، اما موږ خپله اصلي لار چپه کړه او دلته ستا د لیدلو لپاره

راغلو، مگر کتابونه د مخه د يفيم تر راتگ څخه راکړه، ځکه چې دۀ ته حاجت نشته چې په دې موضوع وپوهيږي...

مور و ربين ته کتل او داسې خيال يې کاوۀ چې هغه نه يوازې پوستين بلکه کوم بل شی هم له ځانه څخه وکيښ. له بهر نه ساده معلوميدۀ او سترگې يې د پخوا پڅېر نه برېښيدلې، ليکن په هغو کې د حيلې او مکر نښې معلوميدلې.

- مورې، - پاول وويل، - تاسې کتابو پسې لاړه شئ او دلته يې راوړئ. دوی هلته پوهيږي چې کوم کتابونه پکار دي. يوازې و دوی ته ووایاست چې کتابونه د کلي لپاره پکار دي.

- ډېر ښۀ! – مور ځواب ورکړ. – هر کله چې سماوار وايشېږي، زۀ به لاړه شم.

- پلاگېيا، ته هم په دغه دنده کې شريکه شوي يې؟ - ربين په پوزخند سره ورځنې پوښتنه وکړه. – هو. ډېر خلک موجود دي چې د کتابونو هيله لري. يو محلي ښوونکی د عامو خلکو دا هيله تشويقوي. خلک وايي چې دغه ښوونکی سره له دې چې د روحانيونو له طبقې راوتلی دی، خو ډېر ښۀ او هوښيار سړی دی. هلته يوه بله ښوونکې شته چې اته کيلومتره لېرې د دې ځايه څخه اوسي. هېڅ يو يې انقلابي کتابونه نه راوړي، هر يو پر خپلو وظيفو باندې ويريږي. دا انقلابي کتابونه چې زه يې غواړم، زه به يې د هغوی په اختيار کې ورکړم... زۀ به د هغوی څخه د ستر اخفاء په توگه کار واخلم... که دا کتابونه د پوليسو، ملايانو او پلټونکو په لاس کې ولويدل، دوی به څوک ملامت کړي، بې له هغه ښوونکي؟ په دې ډول به خپله زۀ تر يوه وخته پورې آزاد وگرځم.

دی پخپله د دې نقشې څخه ډېر خوښ شو او په ډېرې خوشالۍ سره یې غاښونه سپین کړل.

مور لـه ځانه سره فکر وکړ: «ته په ظاهر کې و یوۀ یږ ته ورته یې، مگر په حقیقت کې تر زرې گیدړې هم چالاکه یې...»

- تـاسـو څۀ فکر کوئ، - پاول ځنې پوښـتنه وکړه، - که چېرې دوی پر ښـوونکو باندې بدگمانه شي چې دوی دغه انقلابي کتابونه خپروي، آیا هغوی به بندیان کړي؟

- یقیناً به یې بندیان کړي، - هدف دې څۀ دی؟- ربین وپوښتل.

- دا خو ښۀ کار ندی، محرک ته یې، دوی ولې بندیان شي، تۀ باید بندي شې...

- تـه عجیب سـړی یې!- ربین خپل زنگون وټپاوۀ او په پوزخند سره یې وویـل. – هېڅوک بـه پر مـا بـانـدې دا گمان ونه کړي، ځکه دوی پوهېږي چې ساده بزگر هېڅکله په دې کارو پسې نه گرځي. کتابونه د اشرافو خلکو کار دی، دوی مجبور دي چې ځواب یې هم ورکړي...

مور ولیدل چې پاول د ربین په اصلي هدف پوه نه شو او دا یې هم ولیدل چې پاول خپلې سـترگې چوغې کړې او دا کار د قهر او عصـبانیت نښه وه. مور په احتیاط او نرمۍ سره وویل:

- میخائل ایوانوویچ غواړي چې کار وکړي او مسـؤلیت یې پر بل چا ور وغورځوي.

- هو، مقصـد مې دا دی!- ربین په داسـې حال کې چې په ږیره کې یې لاس واهۀ، وویل. – تر څو چې زما نوبت راورسیږي.

- مورې! – پاول په ســاړه خوا سره وویل. – مثلاً آندري کوم کار وکړي، ځـان زمـا تر شــا پـټ کړي او زۀ د هغـه پـه عوض بندي شــم، آیا ته دغه کار خوښوې؟

مور ســخـت ټکـان وخوړ، خپل زوی ته یې په ډېره حیرانتیا سره وکتل، وروسته یې د انکار په ډول سر وښوراوۀ او ویې ویل:

- هېڅوک داسې چل له خپلو ملګرو سره نه کوي!

- هام-م! – ربین ورو -ورو وویل. – پاوله، زۀ اوس ستا په هدف پوه شوم! دۀ په ملامت ډول مور ته سترګک وواهۀ او ورته مخاطب شو:

- مورې، دغه یوه مغلقه او پیچلې دنده ده.

او بیا یې و پاول ته مخ واړاوۀ او ویې ویل:

- وروره، ته د یوه ماشــوم په څېر فکر کوې! که یو ســړی په پټه کارونه کوي، نو طبعاً دا کار د کرکې وړ دی. ته خپله قضـاوت وکړه: لومړی سړی چې جېـل تـه بـه واســتول شي، هغـه څوک دی چې کتـاب ورسره ونیول شي، نـه ښـوونکی! دوهم ټکی دا دی: که څۀ هم ښـوونکي رسمي کتابونه خپروي، خو بیـا هم هـدف یې یو شی دی، یوازې پـه عبارت کې توپیر راځي. یعنې د دوی کتابونه به ډېر حقایق ونلري. دا په دې معنا ده چې دوی زما په څېر عین شــیان غواړي، صرف دوی فرعي کږه لاره غوره کړي او زۀ په اصلي سړک باندې روان یم، حقیقـت دی؟ دریم: وروره، زۀ د دوی سره هېڅ کار نه لرم، - پلي د ســپرو سره نۀ ملګري کیږي. ښایي چې زۀ هېڅکله دا ډول کار د یوه بزګر سره ونه کړم، مګر یو یې د یوه ملا زوی دی، او یوه بله نجلۍ ده چې پلار یې ډېر شــتمن او لوی ځمکوال دی. ولې بـه دوی د عامو خلکو د پارولو هیله ولري؟ - زۀ خبر نه

يم. د دوی د ښــاغلو افکار زما لپار بيخي مبهم دي. هغه ټول کارونه چې زۀ يې سرتــه رســـوم، زۀ د هغوی په مطلب او مفهوم پوهېږم، مګر راته معلومه نده چې دوی کوم هــدف تعقيبوي. د زرو کــالو پــه موده کې دوی د عامو خلکو سره د ښــاغليو په توګه رفتار کاوۀ او د بزګرو وينې يې وځبېښلې. اوس دوی په ناڅاپي ډول سره راويښ شــوي دي او غواړي چې د عامو خلکو د سترګو پرده په خپلو لاســـو واخلي. زۀ پخپله د جادوګرو په نکلو هېڅ باور نه لرم، مګر دا کار د دوی و نکلو تــه ورتــه دی. زمــا او د اشرافو پــه منځ کې ډېر اوږد واټن دی. کلــه چې ســـړی پــه ژمي کې د واورو نــه ډک ډګر څخــه تيرېږي، هلتــه بــه ځيني ژوندي موجودات وي. آيا سړی پوهېدلای شي چې هغه کوم ټاکلی شی دی؟ يو لېوۀ، ګيدړه او يا عادي سپی؟ سړی هېڅ نشي ويلای، ځکه چې ډېر لېرې دی.

مور و زوی ته وکتل. د دۀ ښه غمجنه وه.

مګر د ربين ســترګو د رضايت له مخې روښنايي کوله. دۀ په داسې حال کې چې پــه خپلــه ببره ږيره کې يې ګوتې وهلې، په ولولو سره يې خپلې وينا ته دوام ورکاوۀ:

- موږ د ښــو لارو او چارو د لټولو وخت نه لرو. ژوند ډېر ســخت دی، د سپيو ګله د پسو په رمه نۀ بدلېږي...

- ځينې اشراف خلک شــته، - مور په داسې حال کې چې د خپلو ملګرو مخونــه يې ور پــه زړۀ کړل، پــه خبرو کې ور ولوېــده، - چې د عــامو خلکو د ښېګڼې په خاطر تر خپل ژوند تيرېږي او ټول عمر په جېل کې تېروي...

- دا ډول کسان مستثناء دي او عليحده ډله تشکيلوي چې د وياړ لايق هم دي!- ربين وويــل. – کــه چېرې بزګر شـــتمن شي، د اشرافو ډلې تــه ځي او کــه

چېرې شـــتمن بې وزله شي، مجبوراً د خوارانو ډلې پورې مبتــلي. هر کله چې جیب تش شي، روح پاکیږي. پاوله، ستا په زړهٔ دي چې دغه موضـوع دي ماته په څهٔ ډول بیان کړې وه؟ تا ویلي وو چې هر څوک د خپل دستور سره سم فکر کوي او کـه چېرې یو کـارګر ووایي چې «هو»، کارفرما به حتماً ووایي چې «نه» او برعکس! عینـاً بزګر او ځمکوال هم دا ډول اړیکـه لري. معلومـداره خبره ده چې په هره ډله کې راز-راز خلک شته، زهٔ د ټولو بزګرو په باره کې نشم ویلای. که چېرې بزګران ماړهٔ شي، باداران به یې هېڅ خوب ونه کړي...

ربین ولاړ شـو. له ظاهره دی ډېر غښتلی او توررنګه معلومیدهٔ. د دهٔ ږیره وښـوریدله لکه غاښـونه یې چې چیچلي وي. تر لږ ځنډ وروسته یې بیا خبرو ته دوام ورکړ:

- زهٔ د پنځو کـالو لپـاره د یوې فابریکې څخه و بلې ته تلم، اطرافي ژوند مې هېر کړی دی! امـا کله چې بیا کلي ته لاړم، پوه شـــوم چې زهٔ نور د دوی په څېر ژوند نشـم کولای! ته پوه شـولې؟ نشـم کولای! تاسې چې دلته په ښار کې ژوند کوئ، طبعاً د دې ځای ورانې او ویجاړې نشـــــی لیدلای. په اطرافو کې لوږې د هر چـا سره د خپـل سـیوري پـه څېر په هر ځای کې ملګرې وي او د ډوډۍ هېڅ هېله نه لري! لوږې د خلکو روح خوړلی، د انســانانو مخونه یې یو ډول جوړ کړي دي او د دوی په منځ کې هېڅ ډول توپیر نشته. دوی اصلاً ژوند نلري، یوازې د وحشـــــي ځناورو په څېر د لوږې څخه لیوني کیږي. حکومتي مـامورین د مرغانو په شـــان ګردچاپیره راګرځیدلي او څارنه کوي، تر څو دوی کوم اضافي شی د خپل لاس د حاصل څخه وانخلي. که دوی د بزګرو سره کوم شی ووینې، دستي ورباندې حمله کوي او په دا زامه یې وهي...

ربین شاوخوا وکتل او بیا د پاول و خوا ته ورچوخ شو.

- کله چې ما دې ژوند ته وکتل، استفراق مې راغی. ومې لیدل چې د زغملو وړ ندی! وروسته ما له خپل ځان سره وویل: زهٔ کولای شم چې دغه وږي او بې وزلي خلک په ولولو راولم! زهٔ کولای نشم چې هغوی ته ډوډۍ ورکړم او شوله ورته پخه کړم! خلکو ډېر کړاوونه لیدلي. دا عذاب زما په زړهٔ کې د خنجر په څېر وهل کیږي.

د ربین تندی د خولو څخه ډک و. هغه ورو ورو د پاول و خوا ته ورنژدې شو او یو لاس یې د پاول پر اوږه باندې کېښود. لاس یې ریږدیدهٔ.

- زهٔ ستا مرستې ته اړ یم، ماته داسې کتابونه راکړه چې د هغه لوستونکي تر مطالعې وروسته بیا ویدهٔ نه شي. زهٔ غواړم چې د دوی تر ماغزو زیږگی (یو ډول حیوان چي پر ملا باندي تېره څوځان لري -ل.ل) ور لاندې کړم! هغو خلکو ته چې ستاسو لپاره پانې لیکي، وواېه چې د کلیوالو لپاره هم یو څهٔ ولیکي! پریږدئ چې له موږ څخه په زرگونو مړهٔ شي، څو د ځمکې له مخه تیارهٔ ورکه شي! په همدې دلیل سره مرگ د خلکو د ژوندي کولو لپاره آسان دی، خو په دې شرط چې خلک راویښ شي!

مور سماوار دننه کوټې ته راوړ او تر څنگ یې و ربین ته وکتل. مور د دهٔ د الفاظو د وزن او قوې په اثر د شیانو ماتیدل حس کړل. د دهٔ په څېره کې داسې شیان وه، چې دې ته یې خپل مېړهٔ ور په زړهٔ کړ. د دې مېړهٔ به هم د ربین په څېر غاښونه چیچل، لاسونه به یې ښورول او هغه هم د دهٔ په څېر په ډېره اسانۍ سره په قهر او غضب سره راتلئ. ربین به د خپلو افکارو د تشریح په وخت کې ډېر

بې حوصلې او فصيح و، مګر د دې مرحوم مېړۀ به تل پټه خولۀ و. ربين به ډېري خبري کولې، نو له همدې جهته دومره خوفناک نه ښکاريدۀ.

- موږ به حتماً دا کار وکړو!- پاول په داسې حال کې چې سر يې وښوراوۀ، ځواب ورکړ. – موږ ته پوره او صحيح معلومات راکړئ، موږ به ستاسو لپاره يوه ورځپاڼه چاپ کړو...

مور په موســکا سره زوی ته وکتل، سر يې وښــوراوۀ، وروســته يې خپل کالي واغوستل او د باندې ووتله.

- موږ به تاسو ته مواد درکړو، تاسې صرف داسې ساده او عام فهمه شيان وليکئ چې حتی خر هم پرې پوه شي! – ربين چيغه کړه.

د پخلنځي ور خلاص شو او يو سړی سرای ته ور دننه شو. کله چې ربين ور تــه وکتــل، نو يې وويل: - يفيم دغه دی! يفيم دلته راشــه! دغه ســړی پاول نوميږي، ما د دغه سړي په باب تاته خبرې کړي دي.

د پاول و مخ ته يو جګ سـړی چې ګڼ ښـکلي ويښتان يې درلودل او د پسـۀ د پوسـت يو ببر کوټ يې اغوسـتی و، ودريد. د دې سـړي د څېرې څخه داســې معلوميـدل چې دی ډېر غښــتلی دی. دۀ و پاول ته په ډېر حرارت لاس ورکړ او ويې ويـل: - ډېر خوښ يم چې تـا وينم!- تر هغه وروســته يې په خپلو ويښتانو کې لاسونه ووهل او په کوټه کې يې په شاوخوا کتلو شروع وکړه. دستي يې پر کتابونو باندې سترګې ولګيدلې او د هغو و خوا ته ور رهي شو.

- پيدا يې کړل!- ربين پاول ته سترګک وواهۀ او ويې ويل.

يفيم راوګرځيد، ربين ته يې نظر واچاوۀ او په داسې حال کې چې کتابونه ته يې په ځير سره کتل، وويل:

- څومره ډېر کتابونه! يقيناً تاسې ښايي د دې کتابونو د لوستلو لپاره پوره وخت ونه لرئ، مګر که په کليو کې واوسئ، ډېر وخت پيدا کولای شئ...

- په کليو کې وخت ډېر دی، مګر د کتاب ويلو هيله ډېره لږه ده؟ - پاول ورځنې پوښتنه وکړه.

ولې؟ ډېره هيله شـــته! – ځوان په داســـې حال کې چې زامه يې وموږله، ځواب ورکړ. – اوس خلـک غواړي چې خپـل مغز پـه کـار واچوي. يفيم د جيولوژۍ کتاب له المارۍ څخه را واخيســت او ويې ويل: - «جيولوژي»- يعنې څۀ؟

پاول د ځوان پوښتني ته مفصل ځواب ورکړ.

- موږ و دغه کتاب ته ضرورت نه لرو! – نوي راغلي ميلمه په داسې حال کې چې کتاب يې بيرته کېښود، وويل.

ربين تر يوۀ اسويلي وروسته وويل:

- بزګر پروا نۀ لري چې ځمکه په کوم ډول پيدا شــوې ده. دوی يوازې د ځمکې د ملکيــت د تنوع او ډول سره لېوالتيـا لري. دوی غواړي پوه شي چې ځمکوالو دغه طبيعي شــتمني څنګه ځان ته راټوله او نور خلک يې په څۀ ډول د هغه څخه محروم کړل. که دا ځمکه ثابته ده او که څرخي، دا دومره مهمه نده. مقصد چې خلکو ته خواړه ورکړي.

- «د مريتوب تاريخ»، - يفيم بيا د بل کتاب عنوان ولوست او د پاول څخه يې پوښتنه وکړه: - آيا په دغه کتاب کې زموږ په باره کې څۀ ليکل شوي دي؟

پاول دۀ ته یو بل کتاب ورکړ او ويې ويل:- په همدې کتاب کې د سرواژ په هکله ويل کيږي. يفيم دا کتاب واخيست، کښته او پورته يې کړ او بيرته يې يوې خواته کېښود. وروسته يې په آرامۍ سره وويل.

- د سرواژ زمانه تېره شوه. اوس په درد نه خوري!

- آيا تاسې کومه ټوټه ځمکه لرئ؟ - پاول ورځنې پوښتنه وکړه.

- څوک؟ موږ؟ هو! زۀ او زما دوه ورونړه يوه ټوټه ځمکه لرو، مگر ټوله ځمکه ريگي ده. زموږ ځمکه يوازې د لوښو د مينځلو لپاره ښه ده، مگر د کرهڼې هيڅ ډول شی نه شين کوي!..

تر لږ ځنډ پس يې بيا خپلې وينا ته دوام ورکړ:

- ما خپله ځمکه ايله کړيده. سړی داسې ځمکه څۀ کوي؟ زموږ د ټولې ځمکې په حاصل يو کس هم ښۀ نه مړيږي اما که يې سړی ځان مالک وبولي، مجبور دی چې هلته پښې ورته وغځوي. څلورم کال کيږي چې زۀ د بل چا مزدوري کوم. په سږ کال مني کې زۀ بايد عسکري خدمت ته تللی وای، مگر ربين کاکا راته وويل چې تۀ مه ځه، ځکه چې حکومت عسکر د خلکو او مظلومانو د وژلو لپاره راټولوي او دوی ناجايزې وظيفې ته ليږي. او زۀ غواړم چې عسکرۍ ته لاړم شم، ځکه چې عسکرو خو د ستيپان رازين او پوگاچيف په وخت کې هم خلک ټکول. او اوس زۀ فکر کوم، هغه وخت رارسيدلی دی چې دې کار ته خاتمه ورکړل شي. ستاسې نظريه په دې باره کې څه ده؟- هلک په داسې حال کې چې پاول ته يې په ځير سره کتل، ورځنې وپوښتل:

- بلې، وخت یې رارسیدلی دی!- پاول په موسکا سره ځواب ورکړ.- مگر اول بـایـد زده کړو چې پـهٔ څـهٔ ډول سرتیري او عســکر پدې موضــوع باندې وپوهول شي...

- زده کړه بـه وکړو او دا کـار به هم سرته ورســوو! – یفیم په متانت سره وویل.

- که چېرې آمران په دې موضـوع باندې پوه شي، نو حتماً به تا ووژني!- پـاول پـه داســې حـال کې چې په پلټونکي ډول سره یې و هلک ته کتل، خپله خبره خلاصه کړه.

- معلومـداره خبره ده چې دوی به رحم راباندې ونکړي!- هلک په نرمۍ سره د پاول د نظریې سره موافقه وکړه او بیا یې د کتابونو په کتلو شروع وکړه.

- وروره، چای دې ژر وچښه، موږ باید پر وخت ځانونه ورسوو!- ربین و یفیم ته وویل.

- ډېر ښــهٔ، اوس به یې وچښـم! – هلک و دهٔ ته ځواب ورکړ او بیا یې د پاول څخه پوښتنه وکړه: - آیا انقلاب یو بغاوت دی؟

پـه دې وخـت کې آنـدري له حمامه څخه بېرته راوگرځید. ډېر جدي او تریو تنـدی معلومیـدهٔ. یفیم تـه یې بې لـه کومې خبرې لاس ورکړ او د ربین و څنگ ته کېناست، ربین ته یې په دقت سره وکتل او موسکا یې وکړه.

- ولې غمجن ښـکارې؟ - ربین په داســې حال کې چې د آندري زنگون یې وټپاوهٔ، ورځنې پوښتنه وکړه.

- هسې همداسې ښکارم، بس. - خوخول ځواب ورکړ.

- آیـا تـه هم کـارگر یې؟ - یفیم د آنـدري و خوا ته اشـــاره وکړه او ویې پوښتل.

- هو، - آندري ځواب ورکړ. – هدف مو څهٔ دی؟

- یفیم تراوســـه پورې د فابریکې کارگر نه دی لیدلی! – ربین موضـــوع تشریح کړه. – خو سره لهٔ هغه هم وایي چې د فابریکې خلک غیر عادي دي...

- موږ له تاسو نه څهٔ فرق لرو؟ - پاول د یفیم څخه وپوښتل.

یفیم په دقت سره و آندري ته وکتل او ویې ویل:

- ستاسې هډوکي نري دي، مگر د بزگرو هډوکي پنډ او گردي دي...

- بزگر ثابت پر خپلو پښـو باندې پر هغه ځمکه چې د دهٔ مال هم نه دی، ولاړ دی! – ربین د یفیم پر خبره ور زیاته کړه.

- مگر کارگر د یوهٔ مرغهٔ په څېر ناآرامه دی، نن دلته، سبا هلته دی! حتی ښځې هم نشـــي کولای چې یو کارگر په یوه معین ځای کې ټینگ کړي. مگر بزگر بې لـه دې چې د خپل ســـکونت ځای بدل کړي، غواړي په همدې ځای خپل ژوند ښـــهٔ کړي. ربین د دروازې خوا ته وکتل او ویې ویل: - هغه ده، مور هم راورسیدله!

یفیم پاول ته راغی او دی یې وپوښت:

- آیا کولای شې ماته کوم کتاب راکړې؟

- حتماً، ولې نه! – پاول په لېوالتیا سره ځواب ورکړ.

د هلک سترگې له خوښۍ نه غټې راووتې او په بیړه یې وویل:

- زهٔ به یې بېرته راولېږم، زموږ ملگري دې خوا ته قیر راوړي، د هغوی په واسطه به یې راولیږم.

- راځه چې ځو!

- زه به حتماً دا ټول کتابونه ولولم! – يفيم په داسې حال کې چې و کتابو ته يې اشاره وکړه، په خوښۍ او خندا سره وويل.

کله چې دوی لاړل، پاول په ولولو سره آندري ته مخاطب شو:

- شيطانان دې وليدل؟..

- هام-م! – خوخول ورو -ورو وويل. – دا خلک د طوفاني وريځو په څېر دي...

- ربين داسې معلوميږي لکه په ژوند چې يې په فابريکه کې کار نه وي کړی، بيخي يو بزگر او ډېر خطرناک غوندې و!

- کاشکې ته مخکې راغلی وای!- پاول و آندري ته وويل چې د ميز په څنگ کې ناست و او په تريو تندي سره يې د چايو ډک گيلاس ته کتل. – ته تل د خلکو د زړونو په باره کې خبرې کوې، مگر تاته لازمه وه، چې تا يو وار و دغو زړونو ته کتلي وای! ربين زه بيخي بې حوصلې کړم، حتی هېڅ بحث مې نشوای کولای! دی هېڅ انسانانو ته عقيده نه لري او هغو ته په هېڅ قيمت قايل نه دی! مور ريښتيا وايي چې دغه سړی د يوې خوفناک ځواک څښتن دی!..

- دا مې وليدل! – خوخول په تريو تندي سره وويل.- حاکمانو د خلکو افکار په زهرو ککړ کړي دي! هغه وخت چې دوی مبارزې ته راپاڅيږي، ټول شيان به بې تفاوته سرچپه کړي! دوی ته لوڅه ځمکه پکار ده او يقيناً به دوی ځمکه لوڅه کړي!

خوخول ډېرې ورو -ورو خبرې کولې او داسې معلومیده چې د دهٔ مغز د بل کوم شي څخه ډک دی. مور آندري ته ورغله او په احتیاط یې وښـــوراوهٔ او ویې ویل:

- آندري، خپل ځان دې را ټول کړه!

- زما ګرانې نینکو، لږ صـــبر وکړه! – آنـدري په نرمۍ او له ناز نه په ډک آواز سره وویل.

ناڅاپه د دهٔ مخ وځلیدهٔ، مېز یې په سوک وواههٔ او ویې ویل:

- دا حقیقـت دی چې بزګر به ځمکه د خپلې ګټې لپاره لوڅه کړي، خو په دې شرط چې دی یو وار پر پښـــو ودرېږي! دوی به هر څهٔ د طاعون په څېر محوه کړي او په ایرو به یې واړوي...

- تر هغـه وروســـته به نو زموږ په مقابل کې ودرېږي!- پاول په نرمۍ سره وویل.

- دا کار په موږ پورې اړه لري، موږ باید دوی له نظره لېرې نه کړو، پاوله، پر موږ لازمه ده چې دوی د خپلو ځانونو ملګري کړو. موږ تر هر څهٔ و دوی ته نژدې یو، دوی به پر موږ اعتماد وکړي او په موږ پسې به روان شي.

- ربین لـه موږ خواهش وکړ، چې د کلیو لپـاره اخبـار خپور کړو!- پـاول وویل.

- دا کار حتمي او ضروري دی!

پاول پوزخند وکړ او ویې ویل:

- کاشکې ما ورسره بحث کړی وای!

خوخول سر وموږهٔ او په کراره یې وویل:

- تراوســه پورې د بحث کولو وخت ندی رارســیدلی! ته شــپیلک وهه، ښــایي هغه خلک چې پښــې یې کلکې پر ځمکه باندې ندي ولاړي، تاته نڅا وکړي! ربین ریښتیا وویل چې موږ تر خپلو پښو لاندې ځمکه نه حسوو. لېکن موږ مجبور نـه یو، چې هغـه حس کړو، ځکـه چې دا زموږ دنـده ده چې هغـه وښــوراوو. موږ باید په یوه وار سره هغه ولړزاوو، څو خلک د مریتوب کړۍ لږه سسته کړي او په دوهم وار به ټول خلک آزاد شي!

مور په خندا سره وویل:

- آندري، تاته هر څه ساده ښکاري!

- طبیعي خبره ده!- خوخول ځواب ورکړ.- د ژوند په څېر هر څۀ ســاده دي!

لۀ لږ ځنډ وروسته یې وویل:

- زۀ د قدم وهلو لپاره د باندې ځم...

- اوس باد چلیږي، حمام دې هم کړی دی، ښــایي چې یخ دې وشي! – مور په اخطاریه ډول وویل.

- زۀ و تازه هوا او تنفس ته اړ یم! – دۀ ځواب ورکړ.

- د سـړې هوا تنفس هم ښۀ نه دی، زما په خیال که استراحت وکړې، ښۀ به وي!- پاول په مینه سره وویل.

- یه، زۀ ځم!

کالي یې واغوستل او غلی د باندې لاړ...

- د ایسای وژل ورته سخت تمامیږي! – مور سوړ اسویلی وکیښ او ویې ویل.

- زۀ ډېر خوښ شـــوم ته پر دۀ باندې تر دې پېښـــې وروســـته ډېره مهربانه شوي يې او ورته د «ته» په کلمه غږ کوې! – پاول مور ته وويل.

مور په حيرانتيا سره زوی ته وکتل او ځواب يې ورکړ:

- ريښـــتيا چې زۀ خپله هم نه پوهېږم چې څنگه دا کار وشـــو، هغه پر ما گران شو!

- مورې، ته ډېر مهربان زړۀ لرې!- پاول په نرمۍ سره وويل.

- که زما په وسه ستا او ستا له ملگرو سره مرسته وشي!

- مورې، مه بېرېږه، هرومرو به ستا لۀ لاسه دا مرسته وشي!

مور په خندا سره وويل:

- زۀ بايد لومړی داســـې يو شی زده کړم چې په هغې سره خپله وېره ورکه کړم!

- مورې، خير دی، نور به پدې باره کې نه غږيږو!- پاول وويل. – مگر يو شی په ياد ولره چې زۀ له تا ډېر منندوی يم!

مور پخلنځي ته لاړه، څو چې زوی يې اوښـــکې ونه ويني. خوخول ډېر ناوخته کور ته راستون شو. راساً په بستره کې پرېوت او ويې ويل:

- ما تقريباً څو کېلومتره مزل وکړ...

- څۀ گټه يې وکړه؟ - پاول ورځنې وپوښتل.

- لطفاً خبرې مه کوه، زه بيديږم!

خوخول نور څه ونه ويل لکه مړ شوی چې وي، آرام پرېوت.

لږ شـيبه وروسـته ويسـوفشيکوف راغی، خيري خيري کالي يې اغوستي وو او د پخوا په څېر مضطرب او ناآرامه و.

- آیا خبر یې چې ایسـاى چا وژلى دى؟ - دۀ په داســې حال کې چې په ډېره ناآرامۍ سره یې په خونه کې قدم واهۀ، د پاول څخه پوښتنه وکړه.

پاول په تېزۍ سره ځواب ورکړ: - یه!

ویسوفشیکوف وویل: - یو سړى پیدا شو چې د ده څخه کرکجن نه و! ما پخپله د دۀ و مرگ ته تیاري نیوله، مگر ډېر د تاسف ځاى دى چې بخت یاري ونه کړه. زۀ د دې کار لپاره بالکل جوړ وم!

- نیکولاى وروره، داسې خبرې مه کوه! – پاول د دوستۍ په لهجه سره و دۀ ته وویل.

مور په ډېره نرمۍ سره وویل: - نیکولاى، تۀ څۀ وایې؟ ته د وري زړۀ لرې، مگر د زمري په څېر غړومبېږې، ولې تۀ باید دا ډول اوسې؟

مور د نیکولاى په لیدلو سره ډېره خوشاله شوه، حتى د دۀ کورکورى مخ تر پخوا ډېر جذاب و.

نیکولاى خپلې اوږې وښورولې او ویې ویل: - زۀ یوازې د همدې کارونو لپاره تیار یم! زۀ تل فکر کوم – زما ځاى چېرته دى؟ زما لپاره هېڅ ځاى نشته! زۀ نه پوهېږم چې خلکو ته باید څنگه خبرې وشي، زۀ خو پوهېږم چې صـــحیح او غلط شـیان څنگه سره بیلیږي، مگر دغه مقصـد په الفاظو سره نشم ویلاى. زۀ د یوه وحشي حېوان په څېر گنگ یم!

ویسوف‌شیکوف پاول ته رانژدې شو، سر یې ځړولى و او په داسې حال چې میز یې په گوتو ټکاوۀ، د گیلې په ډول یې و پاول ته وویل:

- ماته یوه ډېره سخته دنده راکړئ، زۀ نور دا ډول ژوند نشم کولاى. تاسې پخپلو کارونو کې ډوب یاســت او زۀ په ښــکاره وینم چې ســتاســې فعالیتونه په

اغېزمن ډول خپلـه لمن پراخوي، مګر زۀ بـالکـل ورڅخـه بې برخې يم، يوازې کندې او تختې چلوم. آيا د دې لپاره يو سـړی خپل ژوند قرباني کولای شي؟ تاسې ماته يوه سخته وظيفه راکړئ!

پاول د هغه لاس ونيو او ويې ويل:

- حتماً به ستا لپاره يوه وظيفه پيدا کړو!

د شا څخه د خوخول غږ واوريدل شو چې ويل يې:

- نيکولای، زۀ بـه تـاتـه د مطبعې حروف‌چيني در زده کړم او تۀ به د يوۀ مطبوعـاتي کارکوونکي په توګه زموږ سره کار وکړې، څنګه دا کار سـتا خوښ دی؟

نيکولای و خوخول ته نژدې شو او ويې ويل:

- که تۀ دغه کار وکړې، زۀ به تاته خپل چاقو هم په ډالۍ کې درکړم...

خوخول په لوړ آواز سره وخندل او ويې ويل: - زۀ ستا په چاقو څۀ کوم؟

- دا ډېر ښۀ چاقو دی!- نيکولای ټينګار وکړ. پاول هم وخندل.

نيکولای د خونې په منځ کې ودريد او ويې پوښتل:

- پر ما خاندئ؟

- البته پر تا خاندو!- خوخول ځواب ورکړ او د بسترې څخه راووت.

- راځه چې د باندې لاړ شو، نن شپه ښه سپينه سپوږمۍ ده، آيا ځئ؟

- ډېر ښۀ! – پاول وويل.

- زۀ بـه هم لاړ شـم!- نيکولای وويل. – ماته د خوخول خندا ډېر خوند راکوي...

- زما هم ستا خبرې خوښېږي، بيا چې د ډاليو ژمني هم پکې وي!- خوخول په خندا سره ځواب ورکړ.

خوخول و پخلنځي ته لاړ او کالي يې واغوستل. مور ورته وويل:

- هوا سړه ده، لږ تاوده کالي وغوانده...

کله چې دوی درې سره د باندې لاړل، مور د کړکۍ څخه ور ته وکتل، وروسته يې مذهبي تصويرونو ته نظر واچاوه او له خپل ځان سره يې زمزمه وکړه:

- اې مهربانه خدايه، ته له دوی سره مل شې!..

## «۲۶»

راتلونکي ورځې داسې په چټکۍ سره تېرېدلې، چې مور د مۍ د لومړۍ ورځې د راتگ او د جشن د لمانځلو د فکر کولو وخت نه درلود. مگر د شپې لخوا چې به دا په بستره کې پرېوتله، ډېره ستړې او ستومانه به وه او په خپل زړه کې به يې ډېر سخت غم احساساوه. دې فکر کاوه:

«کاشکې دغه ورځ ژر راغلې وای...»

د فابريکې توله به پر سپيده داغ باندې ووهل شوه، زوی او آندري به تر چټک سباناري وروسته و کار ته لاړل او مور ته به يې ډېرې سپارښتنې پرېښودلې. مور به ټوله ورځ لالهانده گرځېدله، ډوډۍ به يې پخوله، د تبليغاتي پاڼو د چاپ لپاره به يې رنگ برابراوه او سريښ به يې تيارول. د دې کور ته به

ځینې مجهول کسان راغلل، د پاول لپاره به یې یاداښتونه پرېښودل او بیا به ورک شول. مور د دغو خلکو د حیرانتیا څخه ناآرامه او له تشویش نه ډکه وه.

تقریباً هره شپه به د کارګرانو لپاره پیغامونه په دېوالونو او حتی د پولیسو د آمریت سره ځړېدل. په دې پیغامو کې به د خلګو څخه غوښتنه کېدله چې د مې د لومړۍ ورځې په جشن کې برخه واخلي، همدرانګه په فابریکه کې به هره ورځ نشریې خپرېدلې. سهار وختي به پولیس د کارګرانو په محله کې ګرځېدل او د پیغامو د څیرلو په وخت کې به یې ډېر ناوړه الفاظ استعمالول. اما د غرمې د ډوډۍ په وخت کې به نوي پاڼې وپاشل شوې او د لارویانو تر پښو لاندې به کېدلې. په پای کې حکومت مجبور شو چې له ښار څخه خفیه پولیس و دې محلې ته راولېږي. د ښار پولیس راغلل او په کونجونو کې یې ځای ونیو، د کارګرانو د خوښۍ نه ډکو څیرو ته به یې په ډېر دقت سره کتل. ټول به د دې څخه خوښ وو، چې پولیس دومره نالایق او بې کفایته دي او د دوی پر جریان باندې هېڅ ډول تسلط نه شي موندلای. حتی ځینو زاړو کارګرانو به په ملامت ډوله الفاظو سره داسې ویل:

- یوازې وګورئ چې څۀ کیږي!

په هر ځای کې به د کارګرانو ډلو د جشن د وړاندیزونو په باره کې په ډېر جوش او حرارت سره خبرې کولې. په هر ځای کې یو نوی شور موجود و، ټولو خلکو د دې نوي پېسرلي د ژوند سره ډېره لېوالتیا ښودله. ځینې خلک موجود وه، چې هغوی تر پخوا ډېر غمجن معلومېدل او دوی به د نوي ژوند و محرکینو ته ډېر سخت او غلیظ الفاظ کارول. ځینې نور خلک وو چې د نوي پسرلي په راتګ که څه هم دغه پسرلی له اندېښنو او هیلو څخه ډک و، ډېر خوشاله وو.

اما یوه ډله چې شـمېر یې تر ټولو لږ وو، تر ټولو ډېر خوشاله وو، ځکه چې دا د خلکو د ویښولو او ولولو سبب شوي وو.

پـاول او آنـدري بـه په دې ورځو کې تقریباً هېڅ خوب نه کاوۀ. د دواړو مخونه سـپېرۀ شـوي وو او تل به سـتړي او ستومانه پر سپیده داغ کور ته راستانه شول. مور ته دا معلومه وه چې دوی په ځنگلو او لېرې ځایونو کې جلسې کوي، مور ته دا هم معلومه وه چې دغه محله په شپه کې د سپرو پولیسو تر څار لاندې ده. د محلې په دننه کې هم پولیس هر ځای گرځي او د خلکو ټولنې او اجتماع گانې ماتوي. کله -کله خلک هم حبسوي. مور ډېره ښه پوهېدله چې د دې زوی او آندري هم تل د نیولو په گواښ کې دي، خو بیا یې هم حتی دا غوښــتل چې دوی ډېر ژر حبس کړل شي، ځکه چې دا کار به د دوی لپاره ښۀ وي او دوی به مجبوراً په جشن کې برخه وا نه خلي- مور داسې فکر کاوۀ.

د ځینو عجیبو عواملو په اثر د ایسای د مرگ مسئله بیخي مړه شوه. د دوو ورځو لپاره محلي کوټوالو سخت فعالیت شروع کړی و، مگر کله چې یې د لسو او شـلو کسـانو څخه تحقیق وکړ، کومې نتیجې ته ونه رسـیدل، نو وروسته یې د تحقیق موضوع بالکل هېره کړه.

یوه ورځ ماریا کورسـونووا چې د پولیسو او نورو حکومتي مامورینو سره یې د نورو عادي خلکو په شـــان ښـــې اړیکې درلودلې، د هغوی یوه نظریه یې مور ته څرگنده کړه:

- اوس د قاتل د پیدا کولو چانس بیخي کم شـوی دی، په سلهاوو خلکو ایسای په هغه ورځ لیدلی و او په سلو کې نوي تنه د دۀ څخه کرکجن وه او هغه

يې وژلای شــوای، ځکه چې دهٔ پدې اوو کلونو کې د دې محلې و ټولو خلکو ته ډېر تکليف او زجر ورکړی و.

د خوخول پـه څېره کې عجيـب تـحول ليـدل کيدهٔ: مخ يې ورځ په ورځ نری کېـدهٔ، د ســترګو ځيږمې يې وپړســيـدلې، نو له همدې جهته د دهٔ راوتلي ســترګې پټې غوندې معلوميدلې. د دهٔ د سږمو څخه نری نری ګونځې د خولې تر کونجو پورې ليدل کېدلې. دهٔ به د پخوا په څېر د عادي او معمولي شــيانو په باره کې لږې خبرې کولې، ډېر- ډېر به يې داســې شــيان تر څېړنې لاندې نيول چې د هغو په واســطه به يې په خلکو کې خپل نفوذ ډيراوهٔ، اوريدونکي به يې کاميابی او بري ته ډېر هيله من کول.

کلـه چې د ايســای د مرګ تحقيقـات ودرېدل، خوخول په يوه کرکجنه خندا سره وويل:

- حکومـت نـه يوازې د عـامو خلکو په تباهی نه خفه کيږي، بلکه دوی حتی د خپـل خـادم ســپي پـه ضــايع سره هم چې زموږ د لټې لپاره يې په کار ګمارلی وي، تاسـف نه ښيي. دوی د خپل وفادار خادم په ضـايع کېدلو سره نهٔ خفه کيږي، بلکه د خپلو پيسو په مصرف غمجن دي...

او له يوه ځنډ وروسته يې زياته کړه:

- هر څومره ډېر چې د دې سـړي په باره کې فکر کوم، هغومره ډېر مي د دهٔ پر حال زړهٔ سوځي. زه حاضر نه وم چې دی ووژنم، نه، حاضر نه وم.

- (آندري! د همدې موضوع اړوند همدغه بحث کفايت کوي). پاول په متانت سره وويل.

مور په نرمی ور زياته کړه:

- وروست دېوال مو پورې واهۀ.

- دا خو انصاف دی، مګر د زړۀ تسلي پرې نه کيږي!- خوخول په غمجن انداز وويل.

خوخول به تل پورتنۍ جمله کاروله او دې جملې د خوخول په خوله کې يو مستثناء او ځانګړی مفهوم درلود چې په عين وخت کې ډېر تريخ او تريو و.

... بالاخره هغه ورځ- د مۍ لومړۍ ورځ راورسيدله.

د فابريکې توله د پخوا په شـان په آمرانه ډول سره ووهل شـوه. مور چې ټوله شـپه ويښـه وه او سـترګې يې نه وې پټې کړې، د بسترې څخه راپاڅيده او هغـه سـماوار چې مـازديګر يې لا تيـار کړی و، ولګـاوۀ. مور د پخوا پـه څېر وغوښتل چې د پاول او آندري د کوټې ور وټکوي، مګر تر لږ فکر وروسته يې خپل لاس وښـوراوۀ او د کړکۍ و څنګ ته کېناسـته، لاس يې تر زامې لاندې کېښود، لکه غاښونو يې چې درد نيولی وي.

باد وريځې سره وپاشـلې، دې ورېځو د داسې مرغانو سره شباهت درلود لکه هغوی چې د فابريکې د ماشينونو له نارو څخه بيريدلي وي. مور ورېځو ته د چرت پـه حـال کې کتـل. سر يې درونـد و او سـترګې يې د بې خوبۍ په اثر سـوځيـدلې او بيخي وچي وې. د دې پـه څېره کې يوه عجيبـه خاموشي ليدل کېده. زړه يې په عادي ډول سره رپيدۀ او په سر کې يې سـاده افکار پيدا کېدل. له ځانه سره يې وويل:

«ما سـماوار بيخي وختي ولګاوۀ، ښـايي چې ټولې اوبه يې وچې شي! دوی دواړه ډېر ستړي او ستومانه دي، پرېږده چې لږ خوب وکړي...»

د لمر لـه خوښــې نـه ډکې وړانگې لـه کړکۍ څخـه و خونې ته ور دننه شـوې. مور خپل لاس د وړانگو سره برابر کړ او کله چې تودو روښـانه پلوشو د مور په لاس کې ځای ونیو، د بل لاس په وســیله یې لمس کړ او کرار -کرار یې موسـکا وکړه. وروسـته راولاړه شـوه، د سـماوار څخه یې نل وکیښ او په داسې حال کې چې خپل ځان یې پرې مینځۀ، هڅه یې وکړه چې شــور ترې پورته نه شي. وروســتـه یې پـه ډېره خاموشــۍ او زړه ورتیا سره دعاء وکړه. د لمانځه په وخت کې د دې مخ تر پخوا روښــانه کېدۀ او ښــې وروځه یې کښــته او پورته کېده.

دوهمـه توله ډېره لوړه او آمرانه نه وه. دغه پلا د دې لړزیدونکي آواز لړ شـانته غیر مطمئن ښـکاریدۀ. مور ته دا معلومه شوه، چې نن توله تر پخوا اوږده ده.

د کوټې څخه د خوخول لوړ غږ واوریدل شو چې ویل یې:

- پاوله، توله اورې؟

د دوی څخـه یوۀ په لوڅو پښــو د کوټې په منځ کې قدم واهۀ او بل یوه یې یوه اوږده اررمې وکښله...

- سماوار تیار دی! – مور پر دوی غږ وکړ.

- مور، دستي پورته کېږو!- پاول له خوښۍ نه په ډک آواز سره وویل.

- لمر راخېژي!- خوخول وویـل.- بـاد وریځې وپـاشــلې. مگر نن وریځ پکار نده.

خوخول که څۀ هم د خوب له وجې ببر او گونځې- گونځې ښــکاریدۀ، خو بیا هم په ډېر ښۀ حال سره و پخلنځي ته ننوت.

- نېنکو، سهار دې پخير! آيا برائي شپه دې ښه خوب وکړ؟

مور و آندري ته نژدې راغله او ويې ويل:

- آندري، ته به حتماً د پاول ترڅنګ حرکت کوې!

- حتماً به ستا نصحيت پر ځای کړم!- خوخول وويل. – مورې به هرې خوا ته يو ځای لاړ شو!

- تاسې څۀ پټې -پټې خبرې کوئ؟ - پاول ور غږ کړ.

- هېڅ زويه! – مور ځواب ورکړ.

- مور وايي چې خپل ځان ښۀ پاک پريمينځه! ښايي چې نن ټولې نجونې مورې تـه متوجـه اوسي!- خوخول وويـل او د خپـل ځان د پريوللو لپاره دهليز ته لاړ.

- راپورته شئ، کارګرانو!، راپورته شئ!»- پاول په نرمۍ سره دغه سندره له ځانه سره وويله.

هر څومره چې ورځ پخيدله، په هماغه اندازه سره هوا شــفافه او روښــانه کېدله، ورو -ورو وريځې د باد په واسـطه د آسـمان له زړۀ خوارې وارې شوې. مور د ســبانـاري د ميز په جوړولو پيل وکړ او په داســې حال کې چې سر يې ښوراوۀ، له ځان سره يې فکر کاوۀ چې دا ټوله څومره عجيبه او د حيرت وړ ده: اوس دوی د سهار په وخت کې يو د بل سره ټوکې او ټکالې کوي، خو هېڅوک نـه پوهېږي چې د ورځې په پای کې به څه پر دوی باندې راشي؟ په يو نامعلوم علت سره مور هم خورا ناآرامه او هم خوشاله وه.

دوی د چايو په چښــلو ډېر وخت ضــايع کړ، ځکه دوی غوښــتل چې وخت ډېر ژر تېر شي. پاول د پخوا په څېر د يوې کاچوغې په واسطه ورو -ورو

او پـه دقـت سره د چـایو په پیاله کې بوره اچوله، پر یوې مړې ډوډۍ باندې یې مـالگـه واچولـه او ویې خوړل. خوخول تر مېز لانـدې پښـــې خوځولې، - هغـه هېڅکله په لومړي سر کې نشوای کولای چې خپلې پښې په مناسب حالت کې اوږدې کړي- او پـه داســې حال کې چې پر چت او دېوال باندې یې د چایو د گیلاس په واسطه د لمر منعکسه پلوشه تعقیبوله، کیسه یې شروع کړه:

- زه چې لس کلن وم، یوه ورځ مې وغوښـــتـل چې لمر پـه پیـالې سره ونیسـم. یوه پیاله مې راواخیسـته، دیوال ته پټ پټ ورنژدې شوم او کوښښ مې وکړ چې د لمر منعکسه شوي پلوشه ونیسم، پیاله مې ماته او لاس مې ژوبل کړ، نو له همدې کبله د کور مشـــرانو هم ښه ووهلم. تر وهلو وروسته انگړ ته لاړم، هلته هم د لمر وړانگې د ډنډ د اوبو په واسـطه منعکسـې شـوي وې، ما په خپل ټول زور سره د لمر وړانگې د اوبو پر مخ پـه پښـــو وهلې، دا پلا مې کالي چټل شول، نو ځکه یې بیا یو ښه په زړه پورې لت راکړ. ما د لمر څخه د غچ اخیستلو په غرض خوله خلاصه کړه او څه چې مې په خوله راتلل، هغه ته مې وویل. ما و لمر ته د سرهٔ شیطان په نامه خطاب وکړ او ورته مې وویل: «زه خو ستا په واسطه د لت خوړلو څخه هېڅ نه یم وېریدلی». په دې ډول مې خپل زړه تش کړ.

- ولې دې لمر تـه د سرهٔ شـیطـان لقـب ورکړی و؟ - پـاول په خندا سره پوښتنه وکړه.

- زموږ کور تـه مخامخ یو پښ و چې ســور مخ او سره بږیره یې درلوده. دی ډېر خوشـاله سړی و. ما داسـې فکر کاوه چې لمر هم و هغه سړي ته ورته دی...

د مور خوله خلاصه شوه او داگه یې وویل:

- تاسې ولې د خپل مارش په باره کې خبرې نه کوئ؟

- که مور اوس د پريکړل شوي موضوع په باره کې خبرې وکړو، نو ښايي چې راځخه ګډه وډه شي! – خوخول په نرمۍ سره وويل. – که چېرې دوی مور ونيولو، نو تـاســو تـه بـه نيکولای ايوانوويچ راشي او تاســو ته به ټول ضروري لارښووني درکړي.

مور په حوصلې سره وويل: - ډېر ښۀ!

پـاول چې پـه چرت کې ډوب تللی و، وويل: غواړم چې ژر د باندې لاړ شم!

- اوس لا وخت ندی رارسيدلی، ښۀ به دا وي چې دلې پاتې شو!- آندري وويـل. – ولې پوليس د وخـت ترمخـه بېځايه وځوروو؟ دوی مور په تمامه معنا پېژني!

په همدې وخت کې فيدور مازين په منډه په داسې حال کې چې سترګې يې بـل - بل لمبې وهلې، راغی. د دۀ خوښـــۍ او ولولو د دوی د تمي ملامتيا له منځه يووړه.

دۀ وويـل:- عمليـات پيـل شــوې دي! خلـک په ډېرو ولولو او متانت له کورونو راوتلي دي. ويسوفشيکوف، واسيليي ګوسيف او سمائلوف درې سره د فابريکې په دروازه کې ولاړ وو او وېناوي يې کولې.ډېر شــمېر کارګران و خپلو کورونو ته بېرته راســتانه شـول! راځئ! اوس سـم وخت رارسـيدلی دی! همدا د تګ وخت دی، لس بجې دي!

پاول په متفکرانه ډول وويل: - زۀ هم رهي کيږم!

فيدور مازين د منډې په وخت کې وويل: - غرمې ته به ووينئ، چې ټوله فابريکه راپورته شي!

- دی په یخ باد کې د ډیوې په څېر لګیږي!- مور وویل، وروسته یې له ځایه څخه راپاڅېده، پخلنځي ته لاړه او کالي یې بدل کړل.

- نېنکو، تاسې چېرې ځئ؟

- له تاسو سره ځم! – مور ځواب ورکړ.

آندري خپل برېتونه تاو کړل او پاول ته یې وکتل. پاول ژر خپل ویښتان سم کړل او د مور خوا ته ورغی.

- مورې، زه هېڅ تاته نه وایم، مګر ته هم ماته څه مه وایه! آیا دا خبره منې؟

- ډېر ښه، ډېر ښه، خدای دې مل شه!- مور د شونډو لاندې وویل.



**پاول: ژوندي دې وي مظلومه خلک! نن ورځ موږ خپل بیرغ چې د حقیقت او آزادۍ بیرغ دی، په ډېر ویاړ رپوو. تل دې وي آزادي!**

## «۲۷»

مور چې د بانـدې راووتـه، نو د خلکو لـه ولولو او تمو ډکې نـارې یې واوریدلې. مور ولیدل چې خلک ډله -ډله په کړکیو او دروازو کې ولاړ دي او د دې و زوی او آندري ته په ډېر دقت او لېوالتیا سره ګوري. ټول شـیان د دې په سترګو کې داسې معلومیدل لکه په ګرځ او غبار کې چې ډوب وي.

خلکو به آندري او پاول ته سـلام ورکاوهٔ، د دوی په آوازونو کې هم یو مخصـوص شی موجود و. مور د تګ په وخت کې د خلکو ځینې تبصـرې اوریدې، چې په دې ډول وې:

- دغه دي، مشران یې...

- مورِ نه پوهېږو چې مشران یې څوک دي...

- زهٔ خو کوم بد شی نه وایم!..

د یوهٔ کور له انګړ څخه په ډېر توند آواز سره دا کلمات واوریدل شول:

- پولیس به دوی ونیسي او هغوی به ټول ژوند په زندان کې تېر کړي!.

- دوی یې یوه بله پلا هم نیولي وو!

د یوې ښځې ساندې له کړکۍ څخه په دې ډول اوریدل کېدې:

- اې فکر وکړه! پوه شـه چې په څه پسې روان یې، ته خو مجرد نه یې، د یوه کور مسؤلیت پر غاړه لرې!

دوی د زوسـیوف د کور څخه چې هغه په فابریکه کې د خپلو پښـو د پرې کېدو پـه خـاطر هره میاشـت د فابریکې څخه امدادي معاش اخیسـتهٔ، تېریدل. دهٔ له کړکۍ څخه سر را ایستلی و او نارې یې وهلې:

- پاوله، اې رذیله، دوی به ژر ستا غاړه در پرېکړي، یوازې لږ صبر وکړه!

مور د دۀ د خبرو په اورېدلو سره سخت ټکان وخوړ او پټه خولۀ ودرېدله. دا ناره په حقیقت کې یو پر زهرو لړلی خنجر و، چې د مور په زړۀ کې ووهل شو. مور پورته د معیوب و پړسېدلي او ټنډه مخ ته وکتل او هغه تر یوه سخت ښکنځل وروسته خپل سر د کړکۍ نه دننه تېر کړ. مور خپل گامونه چټک کړل، څو چې و خپل زوی ته راورسېږي. بیا یې کوښښ وکړ چې تر خپل زوی یو قدم هم وروسته پاته نه شي.

آندري او پاول داسې معلومېدل لکه دوی چې هېڅ شي ته نه گوري او د هېڅا تبصره نه اوري. دوی په آرامۍ سره مخ په وړاندې تلل. دوی یو وار د میرونوف سره ودرېدل. دی داسې مشر او حلیم سړی و چې د محلې ټولو خلکو د هغه د پاک او بې غرضه ژوند لۀ جهته د ده احترام کاوۀ.

- دانیلو ایوانوویچ، تا هم نن پریکړه کړېده چې کار ته لاړ نه شې؟ - پاول ورځنې پوښتنه وکړه.

- زما مېرمن امیندواره ده او پخپله دغه ورځ هم ډېره ناآرامه ورځ ده!- میرونوف تشریح کړه او په دقت سره یې و ملگرو ته وکتل. وروسته یې په ټیټ آواز سره وویل:

- خلک وایي چې تاسې غواړئ رئیس ته یو څه مزاحمت ورکړئ او کړکۍ یې ماتې کړئ؟

- موږ مستان نه یو!- پاول په ولولو سره وویل.

- موږ يوازې غواړو چې لـه خپل بيرغ سره په دغه جاده کې مارش وکړو او خپلې سـندرې ووايو! – خوخول زياته کړه. – تاسې يو وار زموږ و سندرو ته غوږ ونيسئ- په هغوی کې زموږ ايمان او عقيده ښودل کيږي!

- زهٔ ســتاســې په عقيده پوه يم! – ميرونوف په ډېر تفکر سره وويل. – ما ستاسې ټولې پاڼې لوستلي دي. خپلې ځيرکې سترګې يې و مور ته راواړولې او ويې ويل: - پلاګيا ته هم د دوی سره شريکه يې؟

- پخوا لـه دې چې زهٔ مړه شــم، غواړم چې د حق او عدالت پر لاره مزل وکړم!

ميرونوف ووپـل: - يعنې دوی ريښــتيـا ويـل چې دغه ممنوعه پاڼې تا و فابريکې ته راوړي وې!

- دا خبره چا وکړه؟ - پاول وپوښتل.

- هام-م، دا هغه موضوع ده چې ټول ورباندې خبرې کوي! ښه، د خدای په امان، خپل ځانونه معتبر وساتئ!

مور وخندل او خوشـاله شـوه، ځکه چې خلک د دې په باره کې دا ډول خبرې کوي. پاول په پوزخند سره مور ته وويل:

- دوی به تا هرومرو په جېل کې واچوي.

- بالکل تياره يم.

لمر راپورته کېدهٔ او خپله تودخه يې د پسرــلي د ورځې په تازګۍ باندې اچوله. د وريځو حرکت ســست شـو، د دوی سـيوري نازک او شـفاف شـول. وريځې ورو -ورو د محلې د پاسه وراني وې، پر خلکو باندې يې سيوری جوړ کړي وو. د محلې هوا پـاکيـدله، د کورو خاورې لېرې کيدلې، خلکو نوی روح

پیدا کاوهٔ، هر شی و هرې خوا ته خوشـاله معلومیدهٔ. د خلکو آوازونه وار په وار پورته کېدل، په پای کې دومره لوړ شـول چې د فابریکې د ماشـینونو زوږ بیخي پکې ورک شو.

یو ځل بیا مور له ټولې شـاوخوا څخه راز- راز خبرې واوریدلې. ځینې خبرې به ډېرې قهرجني او لهٔ اندېښنو نه ډکې وې. اما په هغوی کې داسې خبرې هم وې، چې د تفکر او خوښۍ نه ډکي وې.

مگر دغه پلا مور نه غوښـتل چې پټه خولهٔ پاتې شي، مور غوښتل چې د هر چاسره مباحثه او اعتراض وکړي، تشـــریح ورکړي، مننه ښرگنده کړي، مور غوښــتل چې د دغې ورځې پـه عجیـب رنگـارنـگ بهیر کې ور داخله شي او ژوندۍ برخه پکښې واخلي.

د ســلو تنو پـه حـدودو کې یوه ډلـه خلـگ د فرعي لارې په کونج کې راټول شوی و او د دې ډلې څخه د ویسوف‌شیکوف غږ اوریدل کېدهٔ:

- دوی زموږ او ستاسـې وینې څېښي! - د دهٔ د عصبانیت نه ډک آواز د خلکو د سرو نه پورته شو.

- بالکل حقیقت دی!- ډېرو خلکو په یو آواز سره وویل.

- هلک ډېر په تکلیف دی!- خوخول وویل. - زهٔ به ورشـم او څه مرسته به ورسره وکړم!..

د مخـه تر دې چې پـاول د دهٔ د ورتگ مخنیوی وکړي، دی د خلکو په منځ کې د خپـل کـاږهٔ او اوږدهٔ بدن سره داســې راتاو شــو لکه یو میخ چې په کارک کې تاو شي. دهٔ په لوړ آواز سره وویل:

- ملگرو! وايي چې د ځمکې پر مخ ډول -ډول خلک ژوند کوي: يهودان، جرمنيان، انگريزان او تاتاريان. مگر زۀ په دې خبره عقيده نه لرم! د ځمکې پر سر باندې يوازې دوه قومه، دوې نه پخلاکيدونکي ډلې يا طبقې ژوند کوي، چې هغه خواران او شتمن دي! خلک ډول- ډول کالي اغوندي او په مختلفو ژبو خبرې کوي، مگر که تاسې انگريزو، جرمني او فرانسوي شتمنو خلکو ته ښۀ ځير شي، حتماً به دا درک کړئ چې دوی زموږ کارگرو په حق کې ډېر ټيټ او ناجائزه افکار لري. لعنت دې وي د دوی په شکلونو باندې!

کوم کس د خلگو په ډله کې وخندل.

- لۀ بلې خوا که تاسې له نژدې څخه وگورئ، دا به درمعلومه شي چې فرانسوي کارگر، تاتار او ترک او نور ټول کارگران همداسې د سپيو ژوند لري، لکه موږ روسي کارگران.

د اوريدونکو شمېر وار په وار زياتيدۀ، غاړې به يې جگې- جگې کولې، د گوتو پر سرو باندې به دريدل او په ډېر دقت سره به يې خبرو ته غوږ نيولی و.

د آندري غږ ډېر لوړ شو.

- د خارجي هېوادونو کارگران اوس په دې حقيقت پوه شول او نن ورځ چې د مئ لومړۍ ورځ ده...

يوهکسنارې کړې: - پوليس!

څلور سپارۀ پوليس د اصلي جادې څخه برابر و دغه خلگو ته روان وو، په چيغو او نارو سره يې خلک گواښل:

- خواره شئ!

د خلکو تندیان تروه شــول او زړهٔ نا زړهٔ يې آســونو ته لار خوشي کوله. ځیني يې و کټارو ته پورته شول.

یوه ســړي په ډېر لوړ آواز او ولولو سره نارې کړې: - خوګان پر آســونو سپاره شول او غړومبی کوي، چې موږ باداران یو!

خوخول یوازې د فرعي لارې پــه منځ کې پاته شــو او دوه آســونه چې سرونــه يې ښــورول، ســیخ د دهٔ و خوا تــه رانژدې کیــدل. دی و یوه ځنګ ته ودریــدهٔ، په دې وخت کې مور راغله او دی يې تر لاس ونیو او ځان پســې يې کش کړ. مور و دهٔ ته وویل:

- تــا وعــده کړې وه، چې زهٔ بــه د پاول سره پر ځنګ اوســم، مګر اوس یوازې د سختیو په مقابل کې ولاړ يې.

- عفوه غواړم!- خوخول په موسکا سره وویل.

مور پهٔ خپل بدن کې یو ګواښــونکی عذاب حس کړ. مور ته په یوځایي ډول سره غم او خوښــي ور پیدا شــول. دې هیله درلوده، چې اوس د غرمې د ډوډۍ توله ووهل شي.

دوی د کلیســا و میــدان ته راورســیدل او دلته د پنځو ســوو ځوانانو په شاوخوا کې یوه ډله جوړه شوې وه. خلګو شا و مخ ته ټېله وهله، خلکو به خپل سرونــه پورته کړل، په یوه واټن کې به يې په ډېره ناآرامۍ سره کتل او د یوه شي په تمه ول. ټوله فضــا د ولولو ځخه ډکه وه، ټول خلک داســې معلومیدل لکه په هېڅ چې نــه پوهېږي. مګر د خلکو یوه ډلــه د غیرت او لېوالتیــا پــه دریــاب کې ډوب وو. د ښــځو او نــارینه وو آوازونه به یو د بل سره ګډیدل. کله کله به ډېر

ســخت ښــکنځل اوريدل کېدل. د ټولو خلگو څخه د يوې تورې بدبينۍ او دښمنۍ غږ پورته کيدۀ.

د يوې ښځې لړزيدونکي آواز په نرمۍ سره اوريدل کيدۀ:- ميتيا! پر خپل ځان لږ رحم وکړه!..

د بلې خوا څخه ځواب راغی: - پرېږده، چوپ شه!

په همدې وخت کې د سيزوف غږ چې د زغم څخه ډک و، په ډېر متانت سره واوريدل شو:

- موږ بايد دغه ځوانان په دې سختو حالاتو کې يوازې پرې نهږدو، دوی تر موږ ډېر عقـل او مېړانـه پيدا کړې! څوک و چې زموږ د جبه زارو د کوپيک لپاره ودريدل؟ همدغه کسـان وو! موږ بايد هغه پېښه هېره نه کړو، ځکه ګټه يې زموږ په جيبو کې پاته شــوله. همدغه کســان وو چې زموږ د ټولو د ښــېګڼې په خاطر يې په جېل کې ډېر کړاوونه وګالل.

د فابريکې توله ووهل شـــوه او د خلکو زوږ پکې ورک شـــو. خلګ په ښـور کي راغلل، هغه څوک چې ناست وو، ولاړ شول. د يوې دقيقې لپاره ټول خلک غلي شول او د ډېرو مخونو بڼې والوتلې.

- ملګرو!- د پاول پياوړی او اغېزمن غږ پورته شو. وچ او تاودۀ غبار د مور سـترګې وسوځولې. مور په يوه حرکت سره خپل ځان د زوی و خوا ته ورساوۀ. ټول خلک د پاول پر شاوخوا باندې داسې راټول شول لکه يو پياوړی مقناطيس چې د اوسپنې ټوټې ځانته جذب کړي.

مور د زوی و ســـترګو ته کتل او په هغو کې يې ډېر غرور او زړه ورتوب ليدۀ.

- ملگرو! موږ پریکړه کړیده چې نن په ښکاره ډول سره خپل بیرغ پورته کړو، زموږ بیرغ د عقل، منطق، آزادۍ او عدالت بیرغ دی!

په همدې وخت یوه سپینه خاده په هوا کې وځلیدله او بیا و خلکو ته ټیټه شوله او خلګو یې پر دوو برخو وویشه او په پای کې خاده په خلکو کې پټه شوه. تر لږ ځنډ وروسته بېرته په هوا کې د کارګرو بیرغ د خلکو له پاسه د یوه سره مرغۀ په څېر ورپیدۀ.

پاول خپل لاس پورته کړ- خاده ولړزیده، نو په دې وخت کې په لسګونو لاسونه چې په هغو کې د مور لاس هم شامل و، پر بیرغ باندې کېښودل شول.

- تل دې وي کارګران! - پاول نارې کړې.

په سل ګونو نارو د دغې جملې ملاتړ وکړ.

- تل دې وي د کارګرانو سوسیال ډیموکراټ ګوند، زموږ ګوند، زموږ د ملګرو ګوند، زموږ د افکارو روحي زانګو!

ټول خلګ له ډېره جوشه ایشیدۀ او هغه څوک چې د بیرغ په ماهیت پوه شول، د بیرغ پر شاوخوا باندې راټولیدل. مازین، سمائلوف، ګوسیف ورونه د پاول په څنګ کې ودریدل؛ په داسې حال کې چې سر یې کښته وځړاوۀ او خلک یې پورې وهل، نیکولای کوښښ کاوۀ چې خپل ځان بیرغ ته ورسوي. ور پسې نور ځوان خلک چې د دوی څېره مور ته نه وه معلومه او سترګې یې له غیرت نه ځلیدلې، روان وو.

ژوندي دې وي د ټولې نړۍ کارګران!- پاول بیا نارې کړې. د دۀ د خبرو ځواب د زرګونو خلکو لخوا په ډېرو ولولو او خوښۍ سره واوریدل شو.

مور د نیکولای او یوه بل سـړي لاس ونیو، اوښـکو د دې تنفس بند کړ، مگر مور هېڅ نه ژړل، اما ټول بدن یې ریږدیدهٔ او په لړزیدونکو شـونډو سره به یې ویل:

- زما گرانو...

د نیکولای پر کورکوري مخ باندې د خوښـی نه ډکه موسـکا پیدا شـوه، هغـه و بیرغ ته کتل او یو څه یې له ځانه سره ویل او خپل لاس یې و بیرغ ته ور اوږد کړ. وروسـته یې بیا پر مور لاسـونه راوگرځول او په ډېره مینه سره یې ښکل کړه.

ملگرو!- د خوخول درونـد غږ د خلگو پـه منځ کې پورتـه شـــو.- موږ او تاسـې د نوي خدای په نامه سره صـلیبي جنگونه شروع کړي، د رڼا او د دلیل د خـدای پـه نـامـه، د عقل او منطق د خدای په نامه، د حق او عدالت د خدای په نامه موږ جنگیږو، زموږ عالي هدف ډېر لیرې دي، مگر شـــکنجه او عذاب ډېر نژدې دي! څرنگـه چې زموږ ایـډیال د حق او حقانیت پر پاکو پایو باندې ولاړ دی، نو هغه څوک چې د حقیقي مگر لیرې بریالیتوب عقیده له لاسه ورکوي او یا یې نلري، هغه څوک چې د حق او عدالت لپاره تر خپل ژوند نشـي تېرېدلای، هغه څوک چې په خپل ځان کې ځواک نه ویني او سـختی نشــــي زغملای، هغوی کولای شي چې ځانونه یوې خواته کړي! موږ یوازې هغه کســان غواړو چې هغوی زموږ پر کـامیـابی او ظفر بـانـدې پوره ایمان ولري؛ هغه څوک چې زموږ هـدف نـه شي لیدلی، هغوی باید له موږ سره مارش ونه کړي. هغوی ته به یوازې غم او مصـــیبـت په تمه وي. ملگرو، په صـــفونو کې ودرېږئ! تل دې د آزادو خلکو جشن! تل دې وي د می لومړی ورځ!

خلګ وښورېدل؛ پاول بیرغ پورته کړ او د یوهٔ سرهٔ مرغهٔ په څېر یې خپل وزرونه په هوا کې وغوړول او په داسې حال کې چې د لمر د وړانګو په واسطه روښانه کیدهٔ، مخ په وړاندې روان و...

*د تل لپاره دا زړه نړۍ پرېږدو....*

-د فیدو مازین لوړ آواز پورته شو او څو نور پیاوړي آوازونه د دهٔ له آواز سره یو ځای شول:

*موږ د دې زړې نړۍ خاورې له*

*خپلو پښو لېرې څنډو!*

مور په مازین پسې روانه وه او پر شونډو باندې یې د ډېرې خوښۍ خندا لیدل کیدله. مور د مازین د سر له پاسه یوازې خپل زوی او بیرغ ته کتل. د دې په شاوخوا کې د خوښۍ خبرې وې او هر چېرې به د نوي ژوند له امېد نه ډکې سترګې لیدل کېدې. د ټولو خلګو و مخ ته د دې زوی او آندري روان وو. مور د هغوی دواړو آوازونه واضــح اوریدل-د آندري ملایم او مرطوب غږ د دې د زوی له ډډ او ټیټ غږ سره یو ځای کېدهٔ:

*پاڅئ، پاڅئ اې پښو لوڅو، سرببرو*

*پاڅئ، پاڅئ اې له ځانه ناخبرو*

*پاڅئ، پاڅئ څو به ستاسو بخت چپه وي؟*

*پاڅئ، تخت به وي، تر څو د بختورو؟*

*---*

*پاخه څو به ته بې درده نړۍ وينې*

*چې يې ستا په خولو دي، مانۍ رنګينې*

*پاخه ته به څو خوراک يې د وږسترګيو؟*

*څوک دې هلته شپيلي او څوک دې زبيښي وينې*

---

*دا بنګلې چې هسکې دي، د هسک تر څوکو*

*جوړې شوې ستا له غوښو او هډوکو*

*پاخه څو به لکه زانه ژاړې؟ باز شه*

*له ښامار نه سترګې وباسه په نوکو*

---

*پاڅئ هيڅ په ناسته نه کيږي تکل کړئ*

*د تيارو په خلاف هر يو څراغ بل کړئ*

*د جابر په ضد وروستی جګړې ته وو وځئ*

*بالاخره خپل سپېره تقدير بدل کړئ*

***«د کتاب په اصلي متن کې د انټرناسيونال د سرود لومړني څو بيتونه راغلي دي، خو موږ ښه وګڼل، چې د انټرناسيونال ټول سرود همدلته ځای کړو. په پښتو ژبه باندې، د انټرناسيونال د سرود دا منظومه ژباړه ډاکټر احسان الله درمل کړې ده او په (۱۱-۲-۲۰۲۲) نېټه يې پر خپل فېسبوک پاڼې خپره کړې وه. ل.ل»***

ټول خلک به د سرۀ بیرغ و خواته راتلل او د تګ په وخت کې به یې نارې وهلې. اما د دوی نارې به د خلګو په غزلو او شعارونو کې ورکې شوې. د دوی غزلې چې په کورونو کې به یې یوازې په ټیټ آواز ویلې، اوس یې دلته په آزاده هوا کې په ډېر عزم، ولولو او متانت سره راویستلي وې. په دغه سندرو کې کلک هوډ او زړه ورتوب احساسیدۀ او په داسې حال کې چې خلکو ته د راتلونکي ښـۀ ژوند په خاطر یې د مبارزې په اوږده لار کي بلنه ورکوله، د دغې لارې د سختیو په باره کې یې هم په صادقانه ډول کیسه کوله. دې سندرې په ثابت ډول سره د تېر ژوند کثافات له منځه وړل او د هغې بقایاوې یې په ایرو بدلولې...

د کوم چا له وېرې او خوښـې نه ډک مخ د مور څنګ ته ښکاریدۀ او په لړزونکي آواز به یې نارې وهلې:

- اې، میتیا! ته چېرته ځې؟

مور بې له دې چې ودریږي، وویل:

- پریږده چې لاړ شي، د هغې په اړه تشویش مه کوه! زۀ پخپله اول ډېره بیریدلم، ځکه چې زما زوی له هر چا نه مخکې دی. دغه هلک چې بیرغ وړي، زما زوی دی!

- اې، احمقانو، چېرې ځئ؟ په مخ کې مو عسکر ولاړ دي.

دې ښځې چې د دنګې او ډنګرې ونې خاونده وه، په ناڅاپي ډول سره د مور لاس ونیو او ناره یې کړه:

- اې، زما ګرانې! تاسې د دوی غزلو ته غوږ ونیسئ، وګوره، زما میتیا هم سرود وایي...

- تاسې تشویش مه کوئ!- مور تر شونډو لاندې ویل. - دا یو ډېر سپېڅلی کار دی... تاسې یوازې فکر وکړئ- که خلک د عیسی په خاطر لۀ خپل ژوند څخه نه وای تېر شوي، نو حضرت عیسی به هم را ژوندی شوای نه وای.

دغه فکر په ناڅاپي ډول سره د مور په مغز کې د یوې بڅرکي په څېر بل شو او مور د دې فکر د پاک او ساده حقیقت په واسطه وارخطا شوه. مور د ښځې و مخ ته چې د هغې لاس یې ټینګ کړی و، وکتل او تکرار یې کړه:

- که خلک د عیسی په خاطر له خپل ژوند څخه نه وای تېر شوي، نو حضرت عیسی به هم را ژوندی شوی نه وای!

سیزوف و مور ته راغی. دۀ خپله خولۍ په لاس کې ونیوله او په داسې حال کې چې د سندرې د آواز سره سم یې په هوا کې خوځوله، مور ته یې وویل:

- ښه، په ښکاره ډول روان دي، مورې! او سندره یې هم جوړه کړې ده. دا څومره یوه ښه سندره ده!

*تزار عسکرو ته ضرورت لري،*

*اوس نو ورکړئ، د خپل زړګي ټوټې!*

- دوی د هېڅ شي څخه نه بیرېږي! - سیزوف و خپلې خبرې ته ادامه ورکړه. - او زما بیچاره زوی اوس په قبر کې پروت دی...

د مور د زړۀ رپیدو شدت وموند. دا ورو- ورو شاته پاتې شوه. خلکو دا د یوې کتارې خواته پورې وهله او د دې لخوا څخه تېرېدل. مور د ضعف په حال کې د دې مظاهرې ننداره کوله او د لیدلو څخه یې ډېر خوند اخیستی.

د ځينو پــه مخونو کې د کوم نوي او مهم شي روښــنـايي ليـدل کېـدۀ.
همدغه سندره وه چې مړې هيلي يې را ژوندی کولې. دغه سندرې د هغه طوفان دروازه خلاصـوله چې په هغه کې د ډېرې زمانې را ټول شـوی غضـب پروت و. ټولو خلکو و مخ ته کتل او د سرۀ بيرغ د رپيدلو ځای يې لټاوۀ.
- دوی مخ په وړاندې ځي!- د يوه ســړي له ولولو ډکه آواز پورته شو.
دې ســړي چې کلـه يو ډېر لوی او فوق العـاده شی حس کاوۀ او نه يې شـول کولای چې د خپل زړۀ احسـاسـات په عادي الفاظو سره څرګند کړي، نو ځکه يې شــديد او غليظ الفاظ اســتمعالول. مګر په ځينو ويناوو کې بدبيني او اکراه پرتـه وه. دغي کرکي د مريتوب بوی درلود. دغه کرکه او غضــب چې په خبرو کې احسـاسـيدۀ، و يوۀ مار ته ورته و، چې د لمر د تودو وړانګو په واسطه له خوبه راويښ شوی و.
يوۀ سړي خپل سـوک د کړکۍ څخه راويستئ او ويې خوځواوۀ، بيا يې ناره کړه:
- اې، ملحدانو!
د يو بل سړي غږ واوريدل شو چې ويل يې:
- د لوی امپراطور او د اعليحضرت تزار په مقابل کې پاڅون کوئ؟
د مور مخ ته د ښځو او نرو له تشويش او حيرانتيا نه ډکې څېرې په تېزۍ سره په ســندرو پســې تيريدلې او په حقيقت کې يې تور ســيلاب جوړ کړی و، چې خپـل پـه تـګ سره يې ټول خنـډونـه لـه منځـه وړل. کله چې مور وړاندې

وکتل، سور بیرغ یې ولید او د خپل زوی څېره یې په فکر کې راوګرځېدله: غنم رنګه تندی او له کلک ایمان څخه ډکې ځلاندې سترګې یې بریښېدلې.

مور د خلکو په وروستیو صفونو کې پاته شوه. دلته ټولو خلکو بې له تلواره حرکت کاوه او د دوی په څېرو کې ډېره نالېوالتیا لیدل کېده او ټول په تمه وه، چې دغه لوبه په څه ډول پای ته رسیږي. دوی مخ په وړاندې روان وو او په مطمئنه توګه یې غلي -غلي خبرې او تبصرې کولې:

- دا یوه ټولۍ عسکر له ښوونځۍ او بله ټولۍ له فابریکې سره ځای پر ځای شویدي...

- والي راغلی دی...

- ریښتیا وایې؟

- هو، ما په خپلو سترګو سره ولیدل چې راغی!

یوه بلکسشدید ښکنځل وکړل او ویې ویل:

- یعنې هم عسکر او هم والي راڅخه په ډار کې دي.

«زما ګرانو!»- د مور په زړهٔ کې دا فکر ګرځېدئ. مګر مور داسې په تلوار سره مخ په وړاندې لاړه، څو چې د دې خلکو څخه لېرې شي. مور ته دا آسانه وه چې د دوی څخه تېره شي، ځکه چې دا خلک په ډېري کراري او تنبلۍ سره تلل.

ناڅاپه د خلکو مخکینۍ برخه داسې ولړزیده لکه د کوم شي سره یې چې ټکر خوړلی وي. د خلګو وروستنۍ برخه بې له دې چې ودرې اي، د یوهٔ ټیټ او له تشویش نه ډک زوږ سره شا ته وښوریدله. سندره هم د څو دقیقو لپاره نهٔ اوریدل کېده، مګر له لږ ځنډ وروسته بیا پیل شوه. دغه پلا ډېره لوړه او

تر پخوا تېزه وه. مګر یو ځـل بیا د غزل ویونکو غږونه خپ شـــول. وار په وار د سرودونو ویل ورکیدل، ډول- ډول غږونو به کوښــښ کاوۀ چې سرود یو ځل بیا و خپل اصلي حال ته راولي.

*پاڅئ، پاڅئ اې پښو لوڅو، سربېرو*

*پاڅئ، پاڅئ اې له ځانه ناخبرو*

*پاڅئ، پاڅئ څو به ستاسو بخت چپه وي؟*

*پاڅئ، تخت به وي، تر څو د بختورو؟*

مګر دغـه پلا پـدې آوازونو کې ټینګـه اراده او اطمینان نه لیدل کېدۀ، د ګواښ او ډار نښې په هغو کې موجودې وې.

مور د خلکو سر نه لیدۀ او نه پوهېده چې څۀ پېښ شوي دي، نو کوښښ یې وکړ چې خپل ځان مخکې ورســوي، په ډېرو ولولو سره یې مارش کوونکي یوې او بلې خوا ته پورې وهل او مخ پر وړاندې تله. د خلکو له مخکیني صف څخه ځینې کسـان شـاته راتلل. د هغوی یوې ډلې خپل سرونه وځړول او تندي یې تریو کړل. بلې ډلې شرمناکه موسـکا کوله او ځینو خندونکی شـپېلک واهۀ. مور په ډېر خفګان سره د هغوی مخونه ته کتل او سترګو یې په پټه خوله پوښتنه او التماس کاوۀ، هغوی ته یې پناه وړله...

- ملګرو!- د پاول غږ واوریدل شـو. –عسـکر هم زموږ او ستاسو په شان انســـانـان دي! دوی به موږ ونه وهي. ولې به دوی زموږ خنډ ګرځي؟ آیا له دې املـه چې موږ غواړو هر چاته د حق او حقیقت اعلان وکړو؟ دوی هم باید دغه اعلان واوري. دوی تراوسه پورې د دغه حرکت مفهوم نشي درک کولای، مګر ډېر ژر به هغه وخت راورسـیږي چې دوی به هم زموږ صف ته راشي او زموږ د

آزادۍ تر بیرغ لاندې به ودرېږي او خپل ننني بیرغ به چې د لوټ او تالان نښـه ده، پرېږدي. د دې لپاره چې دوی زموږ په حقیقت باندې ژر پوه شي، موږ باید بې لـه کوم تردیـده مخ پر وړانـدې لاړ شــو. ملګرو مخ پر وړانـدې! تل مخ پر وړاندې!

د پاول غږ ډېر متین او له عزم څخه ډک و. د دهٔ ویناوي څواکمني او عام فهمي وې، مګر خلک وار په وار پاشـل کیدل. خلکو یو په بل پسې و کڅارو ته تکیـه کولـه. دغه پلا خلګ یو مثلث ته ورته ســول، چې د هغه په سر کې پاول ولاړ و او د دهٔ د سر له پاسـه د کارګرانو ســور بیرغ رپیدهٔ. برسـېره پر دې خلګو همدارنګه د تور مرغهٔ سره شباهت درلود. دغه مرغهٔ خپل وزرونه پراخ وغوړول او چمتو و چې والوزي. پاول د دې مرغهٔ مښوکه وه.

## «۲۸»

د جادې په پای کې مور داسې یو دېوال ولید چې هغه د یو ډول بې څېرو او وسـله والو کسـانو څخه چې نظامي لباسونه یې پر تن وو، جوړ شوی و. دغو خلکو یو ډول جامې او بڼې درلودې. دوی د یوه لوی میدان په منځ کې ولاړ وو او د تګ لاره یې بنده کړې وه. د هر کس پر اوږو باندې د برچو سړه او له ویرې او ګواښ نـه ډکـه روښــنـایي څلیدله. له دغه خاموش او بې حرکته دېوال څخه عجیبه سـاړه راتلله. دغه ساړه او یخني د خلکو له ټولګي څخه تاوېدله او د مور زړهٔ یې ډېر سخت ریږداوهٔ.

مور د خلګو پـه منځ کې لار جوړولـه او کوښــښ يې کـاوۀ چې ځان و هغې نقطې ته ورسـوي، چېرې چې خلک د سرۀ بيرغ پر شـاوخوا راټول شـوي وو. په همدې وخت کې مور له يوه جګ سړي سره چې يوه سترګه يې ړنده وه، ټکر وخوړ. ســړي د دې لپـاره چې دا ووينې، خپلـه نيمـه تنه يې راوګرځوله او ورځخه يې پوښتنه وکړه:

- ته څوک يې؟

- د پاول ولاسـوف مور! – مور په داســې حال کې چې ټول وجود يې له سره تر پايه لړزيدۀ او د خولې لاندې شــونډه يې په غير ارادي ډول سره کښــته کيدله، ړاندۀ سړي ته ځواب ورکړ.

ړاندۀ سړي وويل: - آه، د ولاسوف مور!

- ملګرو!- د پـاول غږ پورته شــو. – مورږ بايد د خپل ژوند په قيمت سره مخ پر وړاندې لاړ شو. – مورږ بله لار نه لرو!

خلک پټه خوله شول او د يوه شي د اوريدلو په هيله وو.

بيرغ پورتـه شــو او د يوې ثـانيې لپـاره پـه هوا کې ورپيـدۀ او بيـا مخ پر وړاندې د هغو خلکو د سرونو له پاسـه ورپيدۀ، کوم چې د عسکرو د خړ ديوال و خوا ته روان شــول. مور ســخت ټکان وخوړ، ســترګې يې پټې کړې او ســوړ اســويلی يې وکيښ- يوازې څلور کســه: پاول، آندري، ســمائلوف او مازين له خلکو جلا شول.

مګر په هوا کې د فيدور مازين شيرين غږ غلی غلی پورته شو:

*تاسې قرباني شوي ياست...*

ګڼو او ټيټو آوازونو دوه ځله دا مصرع تکرار کړه:

*په مبارزه د تقدیر کې...*

خلک مخ ته لاړل او پښــې یې پر ځمکه ودربولې. او نوی سرود چې د عزم او ټینګوالي نه ډک و، واوریدل شو.

*تاسو خپل ځانونه ونه سپمول...*

- د فیدور مازین آواز جګ شو...

*د آزادۍ په خاطر...*

د ملګرو غږونه په یوه اتفاق پورته کېدل.

- اها!- د شــماتت نه ډک آواز د یوې غاړې څخه واوریدل شــو. –دا د سپي زامن د فاتحې سندرې وایي!..

مور ولیدل چې د هغو خلګو پر ځای باندې یوازې څو کسـان پاته شول او په تردید او شک سره و هغو کسانو ته ګوري، کوم چې بیرغ په لاس و مخ پر وړاندې روان دي او د هر یوۀ ګام په اخیســتلو یو یو ســړی له دوی څخه جلا کیږي. داسې معلومیده لکه لاره چې د دوی پښې سوځوي.

*د ظلم مانۍ به ونړیږي...*

- د فیدور مازین آواز بیا سرود پورته کړ...

*او خلګ به انقلاب وکړي!*

په دۀ پسې لوړو پیاوړو آوازونو سرود تکرار کړ.

مګر د خلکو له منځ نه یو آرام غږ واوریدل شو:

- اوس به عسکرو ته امر ورکړل شي...

- برچې راوکـاږئ!- د خلګو څخـه مخکي یوه ســړي پـه لوړ آواز سره وویل.

برچې په ښور کې راغلې او سرونه یې مقابل لوري ته ونیول شول.

- وړاندې مارش!

- راځئ چې ځو!- ړانـدهٔ سـړي په داســې حال کې چې یو لاس یې په جیب کې و او یوه اړخ ته یې ګام اخیستهٔ، و مور ته وویل.

مور بې له دې چې خپلې سـترګې ورپوې، وړاندې کتل. عسـکرو مخ په وړاندې په داســې حال کې چې برچې یې ځلیدلې، ټوله جاده ونیوله. مور له یو څو چټکو ګامونو وروسته و خپل زوی ته ور ورسیدله. مور ولیدل، چې آندري هم د پاول و مخ ته ځان ورســاوهٔ او په خپل ځواکمن بدن یې پاول له حملې نه ساتلی و.

- زما پر اړخ روان شه!- پاول په تېزۍ سره آندري ته وویل.

آندري په داســې حال کې چې لاســونه یې تر شــا نیولي وو او سر یې راپورته کړی و، ســندره ویله. پاول دی په اوږه سره پورې واههٔ او یو ځل بیا یې نارې کړې:

بغل ته لاړ شه! ته حق نه لرې! په مخ کې باید بیرغ وي!

- خوراه شــئ!- یوه وړوکي منصــبدار په داســې حال کې چې توره یې ښوروله، په نري او تېز آواز سره نارې کړې. هغه خپلې پښې پورته او کښته کولې او بې لـه دې چې په زنګنو کې یې غبرګې کړي، پر ځمکه باندې یې ټکولې. د منصبدار پاکو او پالش شویو موزو د مور سترګې ځانته ورخپلې کړې.

د دې وړوکي منصبدار تر څنګ لږ شاته د دنګې ونې لرونکی مــــــشر سـړی چې د سر ویښـتان یې خریل شـوي وو او ګڼ سـپین بریتونه یې درلودل، درانهٔ ګامونه اخیسـتل. دغه سړي خړ رنګه اوږد کوټ چې سور استر یې درلود،

اغوستی و. د دهٔ د پتلون پر پیڅو باندې ژیړې اوږدې پټۍ معلومیدلې. دهٔ هم د خوخول په شان لاسونه تر شا نیولي وو. د دهٔ سترګې چې په ګڼو وروځو پوښل شوي وې، پاول ته متوجې شوي وې.

د مور سترګو وکولای شول چې ټوله منظره په ښهٔ ډول سره تشخیص کړي. د دې په سینه کې د ژړا او فریاد یو ډېره لویه ګوانبونکی څپه را پیدا شوه او په هره شیبه کې یې د ځرګندېدلو شونتیا وه. دا نژدې وه چې له نفس‌تنګي څخه وچوي، مګر په چالاکۍ سره یې خپل لاسونه و خولې او سینې ته ونیول چې ځان له ژړا وژغوري. خلکو دا پورې وهله او مور دېخوا اېخوا بې وسه وخوځیده او په داسې حال کې چې تقریباً بې هوښه وه، مخ پر وړاندې تله. مور دا حس کړه چې د عسکرو په مارش سره د دې تر شا خلکو شمېر وار په وار لږیدهٔ.

وار په وار د مارش کوونکو او عسکرو په منځ کې واټن کمېده. د عسکرو قوارې ښکاره معلومېدې- د ټولې جادې د ارتوالي په انداره او په عجب ډول سره د یوې باریکې ژیړبخنې تاو شوي فیتې په شان خېره چې پکې په غیر متوازن ډول سره رنګارنګ سترګې پرتې وې. د دې فیتې مخکې د برچو نري تیغونه په بې رحمانه توګه ځلیدل. دوی د برچو تیز نوکان د مارش کوونکو و سینو ته برابر او هغوی یې بې له دې نه چې د برچو څخه ونښلي، تار په تار کول. د مور غوږ ته د شا لخوا نه د ټوپ وهونکو خلکو دربهار ور ورسید. د دوی له ویرې او خواشینۍ نه ډک آوازونه اوریدل کېدل چې ویل یې:

- ملګرو، خواره شئ...
- ولاسوفه، وځغله!..

- پاوله، شاته وګرځه!
- پاوله، بیرغ وغورځوه!- ویسـوفشـیکوف په ترېو تندي سره وویل. – بیرغ ماته راکړه، زهٔ به یې پټ کړم!

دهٔ د بیرغ ډنډې ته لاس اوږد کړ او شاته یې کش کړ.

- پرېږده!- پاول نارې کړې.

نیکولای په داسې چټکۍ سره لاس ترې تېر کړ، لکه د بیرغ لاستی چې هغه سوی وي. سرود خاموش شو. خلک ودریدل او د پاول ګردچاپېره یې یوه حلقـه جوړه کړه، مګر پاول په زحمت سره ځان مخکې ورسـاوهٔ. په ناڅاپي او غیر مترقب ډول سره خاموشي پیدا شوه.

د شلو تنو په حدودو کې یوه ډله خلګ د بیرغ په اطرافو کې راټول شوی و. که څهٔ هم د هغوی شمېر لږ و، خو بیا هم دوی په ډېر عزم او متانت سره ولاړ وو. د مور په زړهٔ کې د دوی په حق کې وېره او ډار پیدا شـو او غوښتل یې چې هغوی ته ووایي...

- دغه شی ورځنې واخلئ!- جګ زاړهٔ سړي و بیرغ ته اشاره وکړه او ویې ویل.

وړوکي منصـبدار و پـاول تـه ور منډه کړه او بیرغ ډنډه یې په لاس کې ونیوله. وروسته یې نارې کړې:

- ویې غورځوه!
- لاسونه دي لېرې کړه!- پاول په لوړ آواز سره وویل.

بیرغ په هوا کې ورپېد، کله به ښۍ او کله به کیڼې خواته کوږ شو او بیا به بېرته هوا پورته کړ. نیکولای د مور د خوا څخه په داسې حال کې چې سوک یې ښوراوهٔ، په چابکۍ سره ورتېر شو.

- دوی ونیسئ!- زاړهٔ سړي خپله پښه پر ځمکه ووهله او نارې یې کړې.

یو څو عسکرو د دوی و خوا ته ور منډه کړه او د عسکرو څخه یوهٔ د ټوپک قنداغ وښوراوهٔ- بیرغ ټکان وخوړ، بیا د مخ و خواته ولویده او د عسکرو په منځ کې ورک شو.

- آه!- د کوم چا لهٔ غم او اندوه نه ډک غږ واوریدل شو.

مور د یوهٔ ټپي حیوان په څېر نارې ووهلې. مگر په ځواب کې یې د عسکرو له منځ څخه د پاول پیاوړی او واضح غږ واوریدهٔ چې ویل یې:

- مورې، د خدای په امان! د خدای په امان، گرانې...

«ژوندی دی، او زهٔ یې په یاد یم»- دا فکر مور ته ور پیدا شو.

- زما نېنکو، د خدای په امان!

دا د گوتو پر سرو راپورته شوه او غوښتل یې چې دوی د اخیرې پلا لپاره ووینې. دې د عسکرو د سرونو له پاسه د آندري گرد مخ ولید چې په ډېر حرارت سره و دې ته خاندي او د احترام لپاره خپل سر ټیټوي.

- زما گرانو... آندري!.. پاوله!.. – دې کوکارې کړې.

- ملگرو، د خدای په امان!- د عسکرو له منځ څخه یې نارې کړې.

ډېرو غږونو د دوی ځواب ووایهٔ. دغه غږونه له کړکیو، دروازو او بامونو څه راتلل.

«۲۹»

مور د یوڅکس لخوا په سینه کې ووهل شوه، په سترگو کې یې غبار راغی او په تکلیف سره یې مخامخ ولاړ وړوکی منصبدار ولید. د دهٔ مخ تک سور و او مور ته یې نارې وهلې:

- ښځې، ځه له دې ځای نه، ورکه شه!

دې دهٔ ته کښته وکتل او ویې لیدل چې د دهٔ په پښو کې د بیرغ د لکړې دوې ټوټې پرتې وې، یوې ټوټې یې لا تراوسه پورې سور ټوکر درلود. دا و ځمکې ته کښته شوه او هغه یې راپورته کړه. منصبدار د لکړې ټوټه د دې د لاس څخه ونیوه او لیرې یې وغورځوله. دهٔ خپله پښه پر ځمکه ووهله او نارې یې کړې:

- تاته وایم! ځه، ورکه شه!

د عسکرو له منځ څخه بیا سندره راژوندی شوه:

*پاڅئ، پاڅئ اې پښو لوڅو، سربېرو!*

*پاڅئ، پاڅئ اې له ځانه ناخبرو!*

هر شئ لړزیدل او سره تاویدل. هوا د یوه داسې خوفناک غږ څخه ډکه وه لکه د تلگراف د سیمو غږ چې په هوا کې خپور شي. منصبدار شاته تلوار وکړ او د عصبانیت نه یې په ډک آواز نارې کړې:

- سندره بس کړه! حوالدار کرائنوف...

مور پــه داســـې حـال کې چې دېخوا اېخوا خوځېدله، هغه د لکړې ټوټه چې منصبدار غورځولې وه، بېرته راپورته کړه.

- د دوی خولې ور وتړئ!..

سندره لږ اوریدل کیده او وروسته بیخي غلي شوه. کوم چا د مور په اوږه باندې لاس کېښود او شاته یې سپکه ټېله ورکړه او ویې ویل:

- ځه، لاړه شه، ځه!

- جاده له خلکو پاکه کړئ!- منصبدار نارې وهلې.

مور یو څو گامه لېرې بیا یو بله ډله خلگ ولیدل. دوی نارې وهلې، ناوړه او غلیظ الفاظ یې استعمالول او شپېلک یې واهه. دوی ورو- ورو و شاته تلل او له نظره ورکیدل.

- اې، شــیطانې ښــځې، لاړه شــه!- یوه ځوان عســکر چې گڼ برېتونه یې درلودل، مور تر څنـگ ونیوله او د لارې څنـگ ته یې بوتله، هلته یې په غوږو کې ورته چیغې کړې.

مور پــه حرکت پیل وکړ، د بیرغ لکړه به یې تکیه کوله، ځکه چې دا پوره بې ســېکه شــوې وه. د دې شــاوخوا خلک راگرځیدل او روان وو، مگر دواړو اړخونو باندې یې عسکر وه او نارې یې وهلې:

- ځه، لاړه شه! ځه لاړه شه!

عســکر له دې نه تېر شول، وروسته دا ودریدله او شاوخوا ته یې وکتل. د جادې په پای کې یې بیا د عســکرو ځنځیر ولید چې میدان ته د تېریدو لار یې بنده کړې وه. میدان خالي و. مخکې هم خړ عسکر روان وو او خلک یې شاته ټېله کول...

مور غوښتل چې شاته راوګرځي، مګر په غیر ارادي ډول سره بیا مخ پر وړاندې شوه او یوې فرعي لارې ته وګرځېدله. دغه فرعي لار د خلکو څخه تشه وه.

په دغه لار کې بیا ودریدله. تر اسویلي وروسته یې شاوخوا غوږ ونیو. مخکې په یوه نامعلوم ځای کې د خلکو زوږ اوریدل کېده.

دې په ډېره سختۍ په لکړې تکیه وکړه او بیا روانه شوه. دغه پلا په ناڅاپي ډول سره د مور ټول بدن په خولو کې لوند شو. له ډېرې ویرې یې خپلې وروځې خوځولې، شونډې یې رپیدلې او لاس به یې هم کښته پورته کېده. د مور په زړه کې د انګار په شان راز راز الفاظ بل شوي وو چې د بیانولو لار یې لټوله...

دغه فرعي لار ژر و کیڼ لاس ته وګرځېدله او مور دلته د خلکو یو بله لویه ډله ولیدل: د خلګو له منځ څخه یو پیاوړی او لوړ غږ واوریدل شو چې ویل یې:

- هېڅوک د ملنډو او شوخۍ لپاره ځیګر و برچو ته نه نیسي!

- آیا تاسو تراوسه پورې داسې زړه ورتیا لیدلې وه؟ په لار کې د برچو په مقابل کې ولاړ وو او مخ پر دوی باندې ورتلل! دوی د ډبرې په شان کلک وو او هېڅ ونه بیریدل.

- آفرین، پاول ولاسوف!..

- او خوخول هم؟

- ټول وخت یې لاسونه تر شا نیولي وو او خندل یې، یو نه ډاریدونکی شیطان و...

- اې، گرانو خلکو!- مور د خلګو پـه منځ کې ورګډه شــوله او نارې يې کړې.

خلکو په احترام سره و دې ته لار ورکړه. يوه سړي وخندل:

- وګورئ، په لاس کې يې بيرغ دی!

- خولۀ دې پټه کړه!- يوه بل سړي په سرکښۍ سره وويل.

مور خپل بازوګان پورته کړل او ويې ويل:

- غوږ ونيســئ، د خدای په ســپېڅلي نامۀ! تاسې ټول ګران ياست...تاسې ټول مهربان ياســـت. بې له وېرې او ډاره د نننۍ پېښــې په اړه فکر وکړئ! زموږ اولاد، زموږ د وينو محصول د ټولو خلکو د هوسايۍ او عدالت په خاطر مبارزې ته راپاڅېدل! ستاسو د ټولو په خاطر او ستاسو د ماشومانو د نيکمرغۍ په خاطر دوی ځانونه ونه سپمول. دوی د يوه بل او نوي ژوند غوښتنه کوي. دغه ژوند د عدالت او حقيقت ژوند دی. دوی د ټولو لپاره ښېګڼه غواړي.

د مور زړۀ نژدې و چې وچوي، حلق يې وچ او تود و. د مور د وجود پـه دننـه کې د يوې ســـترې نـه مغلوبيـدونکي مينې الفاظ زيږېدل او د مور ژبه يې سوځوله. دې الفاظو يې ژبه مجبوره کړه چې چست او آزاد حرکت وکړي.

مور ليدل چې ټول خلک په پټه خولۀ د دې و خبرو ته غوږ نيسـي؛ مور دا حس درلود چې د دې نه ګردچاپېره خلک په فکر کې ډوب تللي دي، نو له دې کبله و مور ته داســې هيله ور پيدا شــوه چې دوی تشــويق کړي، څو ټوله د دې په زوی او آندري او هغو کسانو پسې لاړ شي، کوم چې نن ورځ د عسکرو په لاس کې ولوېدل.

په یوه نظر سره دې ولیدل چې شاوخوا یې ټول خلک متوجه شوي دي.
مور و خپلو خبرو ته په یوه ملایم ځواک او الهام سره ادامه ورکړه:

- زموږ ماشومان د سولې و داسې دنیا ته ځي چې په هغه کې خوښي او نېکمرغي ولټوي، - دوی د ټولو په خاطر او د عیســــــی د حقیقت په خاطر له اغزیو او ســختیو دغـه ډکه لار غوره کړې ده، دوی مخ پر وړاندې لاړل، څو د هغو ټولو شــیانو سره کلکه او نه پخلاکیدونکې مجادله وکړي، کوم چې بدو او پلیتو خلکو موږ پـه هغه پورې تړلي، ټوټه -ټوټه کړي، په زندانونو کې اچولي او له ژونده محروم کړي یو! زما گرانو- دوی زموږ د ټولو خلکو، ټولې دنیا او ټولو زیار ایســتونکو لپاره راپاڅېدلي دي!.. دوی په دغه لار کې یوازې مه پرېږدئ، دوی لـه نظره مـه غورځوئ. پر ځانونو رحم وکړئ... د خپلو بچیانو په زړونو او ایمـانونو بشــپړ بـاور وکړئ- دوی حقیقت زیږولی دی او د همدې حقیقت په خاطر لهٔ خپلو سرو څخه تېرېږي. پر هغوی اعتماد وکړئ! د هغوی ملگري شئ!

د مور غږ مات شـو او د بې هوښـۍ یوه څپه ورباندې راغله، مگر په دې وخت کوم سړي دا ونیوله، څو پر ځمکه ونه لوېږي...

- د دې په خبرو کې د خدای الهام پروت دی!- د کوم سړي مضطرب او ټیټ غږ واوریدل شو.- اې، مهربانو خلکو، سپېڅلې خبرې کوي! غوږ ونیسئ!

یوه بل سړي د زړهٔ سواندې په ډول وویل:

- وگورئ، څومره په تکلیف ده!

خلکو په ځواب کې د گیلې په ډول ورته وویل:

- دا پـه تکلیف نـده، بلکـه د دې خبرې زموږ احمقـانو لپـاره تکلیف او عذاب دی!

د خلګو لهٔ پاسه د ښځې لوړ او ریږدیدلی آواز پورته شو:

- اې، د عیسی دوستانو! زما زوی میتیا- دې سپیڅلي روح، - په ژوند کې کوم غلط کار ندی کړی! دهٔ د خپلو ملګرو ملاتړ وکړ او په دوی پسې لاړ... څه چې دا وايي، بالکل صحیح دي، - ولې موږ باید خپل هلکان یوازې پریږدو؟ آیا د دوی له لاسه کوم غلط او بې ځایه کار شوی دی؟

مور په دغې وینا سره ولړزیده او کرار -کرار یې وژړل.

- نیلوفنا، کور ته لاړه شه! نن دي ډېر تکلیف ولید! سیزوف په لوړ آواز سره و مور ته وویل.

د دهٔ د مخ بڼه الوتي وه، ږیره یې ببره او ریږدیدله. ناڅاپه یې خپل تندی تریو کړ، په خپلو سرکښو سترګو سره یې و ټولو خلکو ته وکتل او په ډېره واضحه لهجه سره یې وویل:

- تاسې ټوله خبر یاست چې زما زوی ماتویي په فابریکه کې په یوه ناوړه پېښه کې مړ شو، مګر که دی ژوندی وای، ما به خپله په هغو پسې لیږلی وای. ما به خپله دهٔ ته ویلي وای: «اې، ماتویی، ته په دوی پسې لاړ شه، یوازې همدا د حقیقت او صداقت لار ده!»

دی خاموش شو، ټوله خلګ په تریو تندي سره پټه خوله ولاړ و. داسې معلومیده چې کوم نوي او ګواښمن شي ټول خلک تر خپل تسلط لاندې ونیول، مګر دغه پلا خلک ورځنې نه بیریدل.

سیزوف بیا خپل لاس پورته کړ، په هوا کې یې وخوځاوهٔ او زیاته یې کړه:

- زهٔ یو زوړ سړی یم چې تاسو ته خبرې کوم، تاسو ټول ما پېژنئ! درې پنځوس کاله کېږي چې پر دې ځمکه ژوند کوم او نهه دېرش کاله کېږي چې په دغه فابریکه کې کار کوم. نن ورځ دوی بیا زما ورارهٔ ونیو، ډېر هوښیار او صادق هلک دی. هغه هم د ولاسوف ترځنګ بیرغ ته نژدې ورغلی و...

دهٔ خپل لاس وښوراوهٔ او داسې معلومیده چې د دهٔ د ژوند یوه لویه برخه ضایع شوي وه. وروسته یې د مور لاس ونیو او ویې ویل:

- څهٔ چې دې غیرتي ښځې وویل، حقیقت لري. زموږ ماشومان غواړي چې په شرافت او صداقت سره ژوند وکړي. موږ دوی په سرهٔ اور کې ایله کړل او ځنې لاړو! نیلوفنا، راځه چې ځو....

- زما ګرانو خلکو! مور په داسې حال کې چې اوښکې یې پر باړخوګانو جاري وې، ټول ته وکتل او ویې ویل. - ژوند زموږ د ماشومانو دی، ټوله ځمکه د دوی ده!..

- ځه، نیلوفنا! دا لرګی واخله، - سیزوف په داسې حال کې چې د بیرغ د لکړې ټوټه یې و مور ته ورکوله، وویل.

خلکو په ډېر احترام او غمجنۍ سره مور ته کتل او په ډېره مهربانۍ او همدردۍ سره یې د دې په باره کې پسپسۍ کاوهٔ. سیزوف په خاموشۍ سره د مور لپاره د خلکو تر منځ لار خلاصوله او ټولو په ډېر احترام او پټه خوله و مور ته د تګ لاره خوشي کوله. خلک د یو غیر محسوس ځواک په اثر د مور و خواته کش شول او په داسې حال کې چې پر لاره یې لنډې تبصرې له یو بل سره کولې، بې له کومې بیړې یې دا تعقیبوله.

کله چې دوی د مور د سرای و دروازې ته ورســـیدل، مور و دوی ته مخ راواړاوۀ او د احترام لپـاره پر لکړه بـاندې ټیټه شـــوه. دې په مننې او آرامۍ سره وویل:

- ستاسو څخه مننه کوم...

او بیـا یې خپـل پخوانې افکـار ور پـه یـاد کړل،- دې فکر کاوۀ چې دغه نوي افکار د دې په ماغزو کې منځ ته راغلي وو،- او تر شونډو لاندې یې وویل:

- که خلک له خپلو سرونو څخه نه وای تېر شـــوي، نو زموږ پاک خدای عیسی به نۀ وای را ژوندی شوی...

خلګو پټه خولۀ و دې ته کتل.

دا یو ځل بیا د احترام لپاره کږه شوه او خپل کور ته ننوتله. سیزوف خپل سر ټیټ کړ او ورپسې کور ته دننه شو.

خلګ دروازې ته نژدې ولاړ وو او خبرې یې کولې.

وروسته بیا کرار -کرار پر خپله لار لاړل.

«۱»

د ورځې پاته برخه د رنګارنګ خاطرو نه په ډکه فضا کښې چې جسم او روح يې ستومانه کاوۀ، پای ته ورسېده. د مور په سترګو کښې کوچنی افســـر د تور خال په څېر پورته کښته کېده. د پاول غنم رنګه څېره او د آندري له موسکا ډکې سترګې روښانه ښکارېدې.

مور د کوټې يوې او بلې خوا تـه تلـه او راتلـه، بيـا بـه د کړکۍ څنـګ ته کښېنســتله او کوڅې ته به يې ســترګې نيولي وې، بيرته به پاڅېده، ګرځېده به، سوړ اسويلی به يې وکېښ او بې له ارادې به يې کوم شی لټاوۀ. اوبه يې وڅښلې چې تنده پرې کمه کړي، ولې و ئې نشوه کړای، هغه سور اور چې په سينه کښې يې له خفګان او غم نه ډکې لمبې وهلې، خاموش کړي. ورځ نيمايي ته رسېدلې وه، که د ورځې اولې نيمايي برخې خپل مفهوم او مضـــمون درلود، خو دوهمه نيمايي يې له دې خلاصـه او ساده خلا پاتې وه. د پلاګېيا په مغزو کښې دا يو نه حليدونکي پوښتني ځای نيولی وو:

«اوس بايد څه وکړم؟»

بالاخره کور ته کورسـونووا دننه شوه، لاس او پښې يې غورځولې، بغاري يې وهلې، ژړل يې، پښې يې پر مځکه ټکولې، څه نامعلوم شيان يې وړانديزول، وعده يې ورکوله، ښکاره نه وه چې ګواښ يې چا ته متوجه دی. خو دې ټولو پر مور باندې هېڅ تاثير و نه ښانده.

د ماريا سوځوونکی آواز واورېدل شو:

- خلکو حرکت کړی، د ټولې فابریکې کارګران را پاڅېدلي دي، د ټولې فابریکې!

- بلې، بلې!- مور ورو تکرار کړه. په داسې حال کښې چې سر یې ښوراوه او د هغه وخت په باره کښې یې فکر کاوۀ چې اوس یې د ماضي حالت نیولی او د پاول او آندري سره یو ځای له دې نه تېر شوی دی. دې ته ژړا نه ورتله، زړۀ یې سره ټول او وچ وو، شونډې یې هم وچې شوي وې او په خوله کښې یې رطوبت لږ پاتې وو، لاسونه یې رېږدیدل او په اوږو کښې یې پوست هم د لړزېدو احساس کاوۀ.

ماښام یې ژاندارم کور ته راغلل، مور هغوی بې له حیرانتیا او ډاره ولیدل. دوی په ډېر بږغ او بې پروایۍ کور ته ورننوتل، چې پۀ څېره کښې یې خوښي او رضایت څرګندېده. هغه افسر چې د مخ پوست یې ژیړبخنده رنګ درلود، غاښونه را ښکاره او و ئې ویل:

- حال مو څنګه دی؟ دریمه پلا ده، چې موږ او تاسې سره وینو، بلې؟

مو په شونډو وچه ژبه تېره کړه او چپه پاته شوه. افسر ډېرې خبرې وکړې او مور داسې فکر کاوه، چې دی له خپلو خبرو ډېر خوند اخلي. خو هر څه چې ئې ویل، د دې دپاره بې تفاوته وو، ولې هغه وخت چې افسر وویل: «مورې، دا چې زوی ته دې د خدای او شاه په اړه احترام ندی ور زده کړی، ځکه نو لویه ګناه ستا په خپله ده!»، مور چې د دروازې خوا ته ولاړه وه، په داسې حال کښې چې افسر ته یې نۀ کتل، ورو یې ځواب ورکړ:

- بلې، اولاد زموږ په مقابل کښې قاضیان دي او دا چې پر دې لاره مو ایله کړي دي، محکوم به مو کړي.

- څه شي؟- افسر نارې کړې.- په لوړ آواز ووایه!

- ما وویل: زموږ اولاد راته قاضیان دي!- مور آه وکېښ او تکرار ئې کړه.

افسر خپلو خبرو ته بې له دې چې پر مور کومه اغېزه وکړي، په چټکۍ دوام ور کړ او مخ ته لاړ.

ماریا کورسونووا هم حاضره وه، د مور پر اړخ ولاړه، خو دې ته یې نه کتل او کله چې به افسر دې ته مخ ور اړاوه او کومه پوښتنه به یې ځني کاوه، دې به په ډېر تعظیم سر ټیټاوه او هماغه یو ځواب به یې په تلوار ورکاوۀ:

- ښاغلی محترم، په هېڅ شي خبره نه یم، زۀ یوه بې سواده ښځه او خپل د سوداګرۍ په کارو بوخته یم او په دغو خبرو باندې بېخي نه پوهېږم.

- چپ شه!- افسر امر کاوۀ.- په داسې حال کښې چې بریتونه به ئې پارېدل.

دې ته ئې امر وکړ، چې د مور تلاشي وکړي. د دې سترګي غټي را ووتې، په وحشتناکه ډول یې افسر ته وکتل او و ئې ویل:

- ښاغلی! زه دا کار نه شم کولای، ځکه بلدیت نه لرم.

افسر پښې پر ځمکه وټکولې او نارې ئې کړې. ماریا سترګې کښته واچولې او له مور نه ئې خواهش وکړ:

- چاره نشته، پلاګېیا نیلوفنا، تنې دې خلاصې کړه...

ماریا په داسې حال کښې چې مخ یې تک سور ګرځېدلی وو او د مور پر لباس ئې شاوخوا لاس واهه، آرام یې تر ژبې لاندې وویل:

- دا څۀ سپي انسانان دي، ها؟

- دا تـه څـه شی زمزمه کوې؟ - افســــــر د دوی پلو ته مخ واړاوه او په خشونت سره ئې وویل.

- د ښـځینه کارو په باره کښې خبرې کوم ښاغلی!- ماریا په بېربېدلي آواز آرام ځواب ور کړ.

هغه وخت چې افســر مور ته د پروتوکول د امضا کولو امر ورکړ، دې په آرام ډول په روښـانه خط او د چاپي حروفو لاندې کلمه رسم کړه:

«پلاګېیا ولاسوفا، د یوه کارگر کونډه».

- دا دي څه ولیکل، د څه دپاره دي دا ولیکل؟- افسـر په توند آواز نارې کړې او بیا یې په ملنډو سره وخندل او و یې ویل:

- څۀ ډول وحشیان دي...

دوی ووتل. مور کړکۍ ته ولاړه، لاسونه یې پر سینه ایښي، بې له دې چې سترګې ورپوي او یا کوم شی ووینې، د ډېر وخت دپاره یې مخ په وړاندې کتل، وروځې یې پورته او شونډې یې سره راټولې او زامې یې په دومره شدت او فشار سره کښېکښلې، چې ډېر ژر یې په غاښونو کښې درد حس کړ. په څراغ کښې د خاورو تېل خلاص، د پلتۍ لمبه خاموشـه او مور په تاریکه کښـې پاته شـوله، د غم او خفګان توري اوریځې سینه ور ډکه او د زړه پر حرکت یې فشار راوست. دا د ډېر وخت لپاره نوره هم ولاړه وه، پښـې او سـترګې یې سـتړې شوې، وا ئې وربېدل، چې کړکۍ ته ماریا ودربېدله او په نشه ډوله آواز ئې وویل:

- پلاګېیا! بیده یې؟ زما بېچارې او بدبختې، بیده شه!

مور بې له دې چې جامې وباسي، پر چپرکټ وغځېدله او سـمدسـتي په درانۀ خوب ولاړه. په خوب کښـې یې د ژیړو ریګو غونډۍ، چې د ښـار په لار

کي، د جبـه زار هغه بل پلو ته وه وليده، چي د غونډۍ په څنډه کښــي د پاڼ پر سر چي لانـدي بـه ئي معمولاً خلکو رېگ وړل، پاول ولاړ او د آندري سره ئې په يوه آواز دا غزل وايه: پاڅئ، را جگ شئ اې کارگرو!...

مور د غونډۍ خوا ته پر لار روانه او په داسي حال کښي چي لاس يې پر تندي ايښی، زوی ته يې کتل. د شين آسمان پر مخامخ په آزاده فضا کښي د ده بدن را اوچت ښـکارېدی. مور خجالت وايست، چي ده ته نژدې ور شي، ځکه چي د يوې خوا حـاملـه وه او د بلي خوا ئې په غېږ کښــي هم ماشــوم ور سره درلود. په همدې ډول يې تللو ته ادامه ور کړه. په ميدان کښي هلکانو توپبازي کوله. د دوی شـمېر ډېر وو او توپ سـور رنگ درلود. هغه ماشوم چي د دې په غېږ کي وو، د هلکانو پلو ته يې ځان غورځاوه او په ســخته ژړا يې شروع وکړه. دې خپل تی په خوله کښـي ور کړ او بيرته شا ته وگرځېدله. و يې ليدل، چي پر غونډۍ عسکر ولاړ او د برچو سرونه ئې د دې پلو ته را اړولي دي. دې ژر هغې کليسـا ته چي د ميدان په منځ کښـي ولاړه وه، ور منډه ي کړې. کليسا د اوريځي پـه شـــان شــين رنگ درلود او بې نهايته جگه ښــکارېده. هلته ئې کوم څوک ښـخاوه، د تابوت رنگ تور، ډېر غټ او سر ئې ټينگ پوښل شوی وو. کشيش او طالب يې په کليســا کښــي د ســپينو چپنو سره گرځېدل او دا آواز يې وايه: مسيح د مړو له منځه را ژوندی شوی!...

د کشــيش طالب مبخره په لاس کښــي مور ته تعظيم کاوه. په شــونډانو کښـي يې موسـکا څرگنده، ويښـتانو ئې سور روښانه رنگ درلود او څېره ئې د سـمايلوف غوندي خوشاله ښکارېده. له پاسه د گنبدي نه د لمر وړانگي لاندي

را لویـدلي وي. دواړو خواوو تـه د هلکـانو آواز پورته کېده، چي تکرارول ئې:
مسیح د مړو له منځه را ژوندی شوی!...

- ټینګ یې کړئ!- نابېره کشیش د کلیسا په منځ کښي ودرېد او ناري ئې کړې. د کشـیش جامه ترې ولاړه او پر مخ یې ماشي رنګه ناوړه برېتونه ښـکاره شـول. ټولو په منډو شروع وکړه. د کشـیش طالب هم مبخره واچوله، سر یې په لاسو د آندري په شان ونیو او منډي یې کړې. ماشوم د مور د غېږ نه د خلکو په پښـو کښـي ولوېـدی. خلکو به په بېړېدونکي ډول د هغه و لڅ بدن ته کتل او کوښـښ به یې کاوه، چي پښـه ترې واړوي. مور په زنګنو ولاړه او دوی ته یې ناري وهلې:

- ماشوم مه پرېږدئ! وا یې خلئ!...

مسیح د مړو د منځه را ژوندی شوی!...

آندري دا آواز وایه، لاسـونه ئې شـا ته نیولي او موسـکا ئې کوله. پلاګېیا ټیټه شـوه او ماشـوم ئې را پورته کړ او بیا ئې د ګاډۍ پر بار باندي کښـېښـود. د ګاډۍ د څنګ سره نیکولای ورو- ورو روان او په خندا ئې ویل:

- ما ته ئې ډېر سخت کار په لاس را کړی دئ...

کوڅه ډېره چټله وه، د کړکیو نه خلکو سرونه ایسـتل، شـپېلک یې واهه، ناري یې وهلې او لاسونه یې ښورول. ورځ روښانه وه، لمر ځلانده ولاړ وو، ولي هیڅ چیري سیوری نه معلومېدی.

آندري وویل:

- مور جاني سندري ووایه! ژوند همداسي دئ.

او پـه خپلـه ئې هم ســنـدري پـه داسي لوړ آواز شروع کړې، چې نور آوازونه ئې تر خپل تأثير لاندي را وســتل. مور ده پسيـ روانه وه، ناڅاپه يو بې پايه ژور تل ته ور غوټه شوه.

پلاګيا په داسې حال کښې چې له ويرې رېږدېدله، له خوبه را ويښه شوه، زړۀ يې سخت سره ټول شوی او لکه کوم چا چې په خپل زيږ لاس کښې نيولی او لوبې باندې کوي، تر فشــار لاندې راغلې وه. د کارخانې توله، چې کارګران يې کار ته رابلل، په خپل ټول ځواک وهل کېدله او مور ته معلومه شوه، چې دا دوهم زنګ دی. په کوټه کښې کتابونه او کالي هر پلو ته خوارۀ وارۀ پراتۀ ، ټول شـيان له خپلو ځايونو بې ځايه شـوي او د کوټې غولی د پښـو په واسـطه چټل شوی وو.

دا راپـاڅېـده، بې لـه دې چې مخ ومينځي او د خـدای عبادت وکړي، د کوټې په ترتيبولو يې شروع وکړه. په پخلنځي کښې يې سترګې پر يوه لکړه چې د سرۀ ټوکر يوه ټوټه لا تر اوسه پرې نښتې وه، ولګيدې، په ډېر خشم يې هغه را پورتـه کړه او غوښـــتـل يې چې بخارۍ ته يې واچوي، خو ودرېده، د سرۀ بيرغ ټوټه يې له هغه نه بېله، په ډېر احتياط يې کت او په خپل جيب کښې ئې واچوله او وروسـته يې بيا لرګی پر زنګانۀ مات او و يې غورځاوۀ. پس له دې يې کړکۍ او غولی پـه يخو اوبو ومينځی، ســماوار يې ودراوۀ او کالي يې واغوســتل. په پخلنځي کښـې کړکۍ ته کښېنستله او هماغه پخوانۍ پوښتنه يې په فکر کښې را پيدا شول:

«اوس بايد څه وکړم؟»

یو دم یې په یـاد شــول، چې عبادت یې نه دی کړی؛ پاڅېده د مذهبي تصــویرو مخ ته څو ثانیې ودرېده او بیا کښېـښنســتله. زړهٔ یې خالي و. یوه مطلق سـکوت فضا نیولې وه. داسې معلومیده، لکه هغو خلکو چې پرون یې په کوڅه کښــې نـارې وهلې، نن ټول پـه کورونو کښــې پـټ شــوي او پټه خوله د دې غیرعادي ورځې په باره کښې فکر کوي.

ناڅاپه یې یوه صـحنه چې د خپلې ځوانۍ په وخت کښـې یې لیدلې وه، ور په یاد شوه: په هغه زاړهٔ پارک کښې چې په پخوانیو خانانو زاوسائلوف پورې اړوند وو، یو غټ ډنډ وو، چې شنو نیلوفرو پوښلی وو. د مني په یوه سړه ورځ دا د ډنډ اړخ ته روانه او د ډنډ په منځ کښــې یې یوه کوچنۍ کښتــۍ ولیدله، ډنډ تاریک او آرام وو او کښتۍ هم لکه چې په تورو اوبو پورې سریښ شوې وي، آرامه پراته او شــاوخوا یې ژیړې پاڼې غوړېدلې پرتې وې. د دې کښتــۍ څخه چې تنها د آرامو اوبو پر مخ د مړو برګو په منځ کښې بې له پارو او پارووهونکي ولاړه وه، د ژور خفګـان او غم بوی را پـاڅېـدهٔ. مور د ډنـډ پر غـاړه ډېر وخت ولاړه او په دې فکر کښــې وه، چې چا او د څه دپاره دا کښـتۍ د ســاحل نه ور خوشې کړې ده. پـه ســبا ورځ باندې خلک خبر شــول، چې په ډنډ کښــې د زاوسـائلوف د ناظر ښځه چې ټیټه ونه، تور او پاشلي ویښتان او چټک تګ یې درلود، ډوبه او مړه شوه.

مور خپـل لاس پر مخ را تېر کړ او د پرون خاطرې یې په فکر کښــې را وګرځېدې؛ دې کار ډېر وخت مصـروفه او سترګې یې پیالې ته، چې چای یې لا پخوا یخې شوي وې، نیولې وې او په زړهٔ کښې یې دې هیلې لمبې وهلې، چې کوم هوښیار او پوه سړی پیدا کړي، تر څو چې ډېرې پوښتنې ترې وکړي.

فقط لکه چې د دې هیلو تر سره کېدو لپاره د غرمې تر ډوډۍ وروسته نیکولای ایوانوویچ راښکاره شو، د دهٔ په لیدو سره مور ناڅاپه وارخطا او بې له دې چې د هغه سلام ته ځواب ورکړي، و ئې ویل:

- ها، باباجانه، تاسې باید دلته نه وای راغلي، احتیاط په کار دی! که چیري مو وویني، گرفتار به مو کړي.

نیکولای په داسې حال کښې چې عینکې یې پر سترگو برابرولې، مور ته یې لاس ور کړ او ټینگ یې کښېکېښ، بیا یې ځان لږ ور نژدې کړ او په چټکۍ سره یې وویل:

- پوهېږې، ما د پاول او آندري سره وعده کړې وه، چې که چیري دوی بندیان کړي، زهٔ باید په دوهمه ورځ راشم او تاسې و ښار ته نقل کړم. آیا کور یې ولټاوهٔ؟

- بلې، راغلي وو، تلاشي یې وکړه، دې خلکو نه شرم او نه وجدان درلود.

- شرم د دوی لپاره څهٔ پکار دی؟- نیکولای خپلې اوږې وښورولې او مور ته یې تفصیل شروع کړ چې ولې باید دا و ښار ته کډه وکړي.

مور دهٔ ته آرام غوږ نیولی وو، بې لهٔ دې چې د دهٔ پر دلایلو باندې وپوهېږي، نرۍ موسکا یې پر شونډانو درلوده او هغه د باور حس ته چې د دې سړي په مقابل کښې ورته پیدا شوی وو، په حیرانتیا کې تللې وه، او وې ویل:

- که چېرې د پاول دا خوښه وي او تاسو ته هم نه تکلیف کېږم...

نیکولای د دې خبرې پرې کړې:

- بې غمه اوسه، زهٔ یوازې ژوند کوم، فقط ځینې وختونه مې خور راځي.

- مفته ډوډۍ نشم خوړلای. – مور په لوړ آواز وویل.

- که چېرې وغواړې، کار درته پيداکيږي.- نيکولای ځواب ور کړ.

مور ته د کار مفهوم راساً هماغه کار، چې آندري او زوی به يې د ملګرو سره مخ ته بېوه، معلوم شو. په داسې حال کښې چې نيکولای ته را نژدې شوه او سترګې يې ور واړولې، و ئې ويل:

- پيدا کيږي؟

- زما د کور کار خو لږ دی، د يوازې‌توب ژوند...

- زما مقصد دا نه دی، د کور د کار پوښتنه نه کوم. – مور په آرامه وويل او دا چې نيکولای يې په مقصد پوه نه شو، لږ غوندې پرېشانه شوه. نيکولای موسکا وکړه او و يې ويل:

- که چېرې تاسې د ملاقات په وخت کښې د پاول څخه د هغو بزګرانو ادرس، چې اخبارونه يې غوښتل، پوښتلی وای...

مور په خوشالۍ سره وويل:

- ادرس يې ما ته معلوم دی، دوی پيدا کولای شم او څنګه چې لازمه ګڼئ، هغه کار کوم، څوک فکر کولای شي چې زۀ منع شوي شيان د ځان سره وړم، فابريکې ته مې هم څو واره وړي دي-، شکر، د خدايه راضي يم!

د پلاګېيا زړۀ يو دم وغوښتل، چې د ځنګل څنګ ته د کلي پر لار خورجين په شا او لکړه په لاس کښي روانه وي. نيکولای ته يې وويل:

- مهربانه دوسته، ستاسې څخه خواهش کوم، ما ته دغه کار په لاس راکړه، زه به هر چېرې ولاړه شم، په ټولو ولايتو به وګرځم، ټولې لارې به تر پښو وباسم، په ژمي او دوبي، د مرګ تر ساعته به وګرځم، آيا دا ډول پاک کار په قربانۍ نۀ ارزي؟

کله چې دې ځان بې کوره، مســافره او فقیره، چې د خدای پر نامهٔ به خیرات ټولوي، تصور کړ، لړ خفه غوندې شوله.

نیکولای د دې لاس په خپل تاودهٔ لاس کښې ونیو او ناز یې ور کړ. بیا یې ساعت ته وکتل او و یې ویل:

- په دې باره کښې به وروسته خبرې وکړو.

پلاګېیا وویل:

- وروره، اولادونـه د زړهٔ ډېرې ګرانې ټوټې دي، دوی خپله اراده او ژوند په دې لاره کښې قربانوي. زهٔ څوک یم، مور؟ ولې به له دې کاره مخ اړوم.

دې خبرو پر نیکولای بـانـدې ډېر تـاثیر وکړ او مور تـه یې پـه آرامـه او مهربانۍ سره وویل:

- بې شکه، دا لومړی ځل دی چې زهٔ دغه ډول جملې اورم.

مور په تکلیف سره وویل:

- زهٔ څه ویلای شـم. کاشـکې ما ځهٔ زده وای، چې د خپل مورني زړهٔ په باره کښې مې درته ویلي وای.

د هغه ځواک له مخې چې په دې کښــې ژوندی کېدی او د غم نه ډک خاطرات یې په سینه کښې ور پاڅول، ولاړه شوله.

- ډېرو خلکو تـه؛ حتی پســت او بې وجدانو ته هم ښــایي پر دې حال باندې ژړا ور شي.

نیکولای هم ولاړ شو، بیا یې ساعت ته وکتل، و یې ویل:

- یعنې پریکړه داسې وشـوه چې تاسـې باید ښـار ته، زموږ کور ته ولاړه شئ.

دې په پټه خوله د سر په ښورولو رضایت ښکاره کړ.

- کله؟ هر څومره چې ژر وي، ښهٔ به وي. –او په آرامه یې زیاته کړه: -زهٔ به ستاسې په باره کښې پریشانه یم.

مور په حیرانۍ ورته کتل: ښایي دی څه لېوالتیا ولري، نیکولای سر کښته نیولی د تبسـم سره ولاړ او توره زړه کورتۍ یې اغوستي وه، چې ښایي خپله یې هم نه وه.

- تاسې پیسې لرئ؟ - نیکولای پوښتنه وکړه.

- نه!

دهٔ، ژر د جیبه بکس را ویوست، خلاص یې کړ او لاس یې ورته وغځاوهٔ:

- مهرباني وکړئ، وا یې خلئ.

مور په موسکا شوه، سر یې وښوراوهٔ او و یې ویل:

- ټول شیان بدل شـوي دي، پیسـو هم ستاسې لپاره خپل ارزښت د لاسه ور کړ. خلک پر پیسو باندې سر بایلي او تاسو ته هیڅ اهمیت نه لري! فقط لکه چې مو خلکو ته د خیرات ور کولو لپاره د ځان سره ساتلي دي...

نیکولای وخندل.

- پیســې ډېر چټل او مزاحم راوړونکی شی دی. اخیســتل او ور کول یې همېشه انسان ناراحته کوي...

نیکولای د مور لاس ونیو، ټینګ یې کړ او تکرار یې کړه:

- هر څهٔ ژر، بېړه وکړه!

او همېشه غوندې په آرامه ووت.

هغه وخت چې دی یې رخصت کړ، مور په فکر کښې ولوېده:

«څومره مهربانه- ولې بیا یې هم زمونږ پر حال زړۀ و نه سوځوۀ».
او پوه نه شوه چې آیا دا کار د دې لپاره ناخوښه دی او یا په ساده ډول د حیرانتیا وړ دی؟

## «۲»

پلاګېیا د نیکولای تر راتګ وروسته په څلورمه ورځ د دۀ پر لور حرکت وکړ. هغه وخت چې ګاډی له کلي ووته او دښت ته ورسېدله، مور شا ته مخ واړاوۀ او حس یې کړه، چې د تل لپاره هغه ځای، چې د خپل ژوند توره دوره یې پکښې تېره کړه او بله دوره چې د نویو غمو او خوښیو سره پکې شروع شوې وه، پرېږدي.

پر هغه ځمکه چې د دود په واسطه توره ګرځېدلې، فابریکې د یوه ستر تېره سور رنګه جولا په شان ځای نیولی او خپل دودکشونه ئې هوا ته ور جګ کړي دي. د فابریکې پر شاوخوا د جبه‌زار پر اړخ د کارګرانو سپېره یو منزله کورونه وه، چې د خپلو کوچنیو کړکیو په واسطه د شکایت نه په ډک زړه یو بل ته ګوري. د دوی پر سر کلیسا ولاړه وه، چې رنګ ئې د فابریکې غوندې تېره سور، ولې زنګولې یې د فابریکې د دودکشو نه ټیټې وې.

مور آه وکېښ او د کالو تنې، چې پر ستوني یې فشار را وستی وو، خلاصه کړه.

ګاډیوان د آس ملونه ښورول او له ځانه سره یې زمزمه کوله:

ځه په خیر! ګاډیوان یو کرچل سړی، چي عمر یې ټاکل کېدلای نه شوای، سترګې یې بې رنګه او د وېښتانو رنګ یې هم په مخ او هم په سر کښې تللی و. په داسې حال کښې چې د یوه طرف نه بل ته کوږ ووږ کېدۀ، د ګاډۍ سره روان او معلومېدل، چې دۀ ته بې تفاوته ده، چې ښی خوا ته آس ګرځي یا کیڼ پلو ته.

- ځه په خیر!- ګاډۍ وان په داسې حال کښې چې خپلې کږې پښې یې د ختو نه ډکو څپلیو سره په تکلیف کشولې، بیا تکرار کړه. مور شاوخوا ته وکتل او ټول دښت د دې د روح په شان خالي وو.

آس په تکلیف سره سر ښوراوۀ او پښې یې په ریګو کښې چې د لمر د تودخې په واسطه ګرم شوی وو، ننوتلې. ګاډۍ چې ډېر وخت غوړه شوې نه وه او اکثره برخې یې ماتې وې، ږغونه یې کول او د ګرځ او دوړو سره یو ځای تر شا پاته کېده.

نیکولای ایوانوویچ د ښار په پای کښې په یوه آرامه کوڅه کښې ژوند کاوۀ، د دۀ کور ډېر کوچنی او شین رنګ یې درلود، چې د یوۀ دوه پوړیز تور تعمیر پر اړخ، چې د زوړوالي نه نړېدو ته نژدې وو، موقعیت درلود. د کور مخ ته باغچه وه، چې له هغه نه درو واړو کوټو کړکیو ته د یاسمین او عکاسۍ ګلان او د ځوانو چنارو نقره‌اي رنګه پاڼې ورننوتلې. کوټې پاکې، خاموشه او پر غولي یې ګونګ سیوري ښوریدل، دیوالونو ته الماری ولاړې وې، چې له کتابونو ډکې او همدارنګه د ځینو خلکو، چې جدي قیافې یې درلودې، عکسونه ځوړند وو.

نیکولای مور و یوې کوټې ته، چې یوه کړکۍ یې د باغچې خوا ته او بله یې د انګړ خوا ته خلاصېده، را وسته او و یې ویل:

- دا کوټه مو خوښه ده؟

په دې کوټه کښې هم ټول دېوالونه هغو الماریو او جعبو نیولي وو، چې د کتابو نه ډک وو.

- زما لپاره پخلنځۍ ښه دی، هغه ډېر روښانه او پاک...

مور ته معلومه شوه، چې په دې خبره یې نیکولای متاثر کړ او پس له دې چې هغه ټینګار وکړ، دا هم قانع شوه او و یې لیدل چې د دهٔ په څیره کښې خوشي وبرېښېدله.

درې واړو کوټو یوه خاصه فضا درلوده، تنفس کول پکښې آسانه وو، ولې آواز ټیټ پکښې معلومېدهٔ، په جګ آواز خبرې کول ښه نه ایسېدل، ځکه چې د هغو کسانو متفکره خاموشي یې له منځه وړهٔ، کومو چې د دیوالو نه سترګې متوجه کړي وې.

مور په کړکیو کښې ګلدانیو باندې لاس وواههٔ او و یې ویل:

- ګلان باید اوبه کړای شي!

د کور خاوند په داسې ډول، چې آواز یې پر خپله ګناه اعتراف کاوهٔ، وویل:

- بلې، بلې، زهٔ لکه څنګه چې پوهېږې، ګلان مې ډېر خوښ دي، ولې د دوی د پالنې لپاره وخت نه لرم...

مور چې د دهٔ وضعیت ولید، پوه شوه چې نیکولای هم په خپل مستریح کور کښې په ډېر احتیاط سره، لکه ټول شیان چې د دهٔ نه وي، ګرځي. هر شي

تـه چې بـه يې غوښـــتل وګوري، سر به يې ور نژدې، په خپلو نريو ګوتو به يې عينکې پر ځای او هغه شي ته چې به يې کتل، لکه په ګونګه لهجه چې پوښـتنه ترې کوي، متوجه کېدۀ. ځينې وخت به يې کوم شی واخيست، سترګو ته به يې نژدې، په ډېر دقت به يې وکوت او داسې معلومېدل، چې دی هم د مور سره يو ځای اول وار کوټې ته دننه شـو او ټول شـيان ورته بېګانه او غيرعادي دي. مور چې د دۀ دا حال وليد، ځان يې په خپل کور کښې حس کړ او په ده پسې روانه وه، د شـيانو سره آشـنا کېدله او له دۀ نه به يې د يو، بل شي په باره کښې پوښتنه کوله، نيکولای به ځواب ورکاوۀ، ولې د آواز نه يې معلومېدل، چې ځان ملامت ګڼي، ځکـه کـارونـه لکه څنګه چې لازمه ده، په ترتيب نه بولي، خو څه وکړي چې په بل ډول يې کولای نه شي.

مور ګلانو ته اوبه ورکړې او پر پيانو باندې يې پاشــلي د موزيک نوټونه ترتيب کړل، د سماوار خوا ته يې وکتل او و يې ويل:

- سماوار بايد پاک شي...

نيکولای ګوتې د سماوار پر خيرن فلز تېرې کړې، بيا يې پزې ته نژدې او په جدي ډول يې ورته وکتل. مور په مهربانه آواز وخندل.

کله چې پلاګېيا د خوب په خاطر پرېوتله، يو دم يې خپله ورځ ور په ياد او په حيرت ناکه ډول يې سر د بالښـت نه پورته او شـاوخوا يې وکتل. دا لومړی ځل و چې پلاګېيا د يوه بېګانه کس سره په کور کښــې ده، ولې ځان په تکليف نه ګڼي. د کور د خاوند په باره کښې يې په شفقت سره فکر کاوۀ او غوښتل يې، چې پـه خپلې مهربـانۍ او لطف سره د دۀ کور ور ګرم کړي. د دۀ د ســاده او مضـحک وضـعيت څخه او دا چې د عادي کارو نه لېرې دی او د دۀ د روښانه

سترگو څخه، چې په عین وخت کښې ماشومانه او حکیمانه ښکاري، اندېښمنه وه. د دې فکر وروسته بیا تر زوی پورې ورسید او د مې لومړۍ ورځ یې د خپلو ټولو نویو خاطرو سره یو ځای سترگو ته وغوړېدله. د دې ورځې درد د خپلې همدې ورځې په شان بېل شکل درلود: دې د سر درد د یوه سوک په شان ځمکې ته نه کړاوۀ اما په زړۀ کښې یې داسې ستنې وهلې چې کړوپه ملا یې هم شخه کېدله. مور د ښاري شپې بېگانه آوازو ته، چې په باغچه کښې یې پاڼې ښورولې او د لیرې ځایه د خلاصې کړکۍ له لارې کوټې ته داخلېدل او دلته محوه کېدل، غوږ نیولی او په دې فکر کښې وه: «ماشومان په دې نړۍ کښې مسافر دي».



**نیکولای:**

**بزگران بېچاره له لوږې مري، ماشومان ډېر ضعیف او ناتوانه نړۍ ته راځي او لکه د مني مچان داسې تباه کېږي، دا ده د پانگوالي نظام ریښتني څېره...**

سهار وختي مور سماوار پاک او واویشاوه، بې له کوم غږه یې لوښي ټول کړل او پهٔ پخلنځي کښې کښېنستله، تر څو د نیکولای ویښېدو ته په تمه اوسي. اول د نیکولای ټوخی واورېدل شو او بیا په کوټه راننوت؛ په داسې حال کښې چې په یوهٔ لاس یې عینکې سمولې او بل لاس یې پر ستوني نیولی وو. مور د دهٔ سلام ته ځواب ور کړ او سماوار یې د پخلنځي څخه کوټې ته راوړ. نیکولای په مخ وینځلو شروع وکړه او دا چې اوبه به پر ځمکه ځنې تویېدې، صابون او د غاښو برس به منظماً لوېدل، ځان ته په قهر وو.

نیکولای د چای څښلو پر وخت مور ته وویل:

- زهٔ په ایالتي اداره کښې کار کوم، کار مې ډېر له غمه ډک دی- وینم چې څه ډول زموږ بزګرانو وینې زبېښل کیږي.

او د یوه تبسم سره یې په تکلیف تکرار کړه:

- بلې، وینم یې، بزګران بېچاره له لوږې مري، ماشومان یې ډېر خوار او ناتوانه نړۍ ته راځي او لکه د مني مچان داسې تباه کیږي.... دا ده د پانګوالي نظام ریښتني څېره- دا ټوله موږ وینو او د ټولو بدبختیو علت یې هم راته معلوم دی. دا دی ورته ګورو، مطالعه کوو یې، معاش اخلو، او بس.

- تاسې څوک یاست؟ محصل؟- مور پوښتنه ترې وکړه.

- نه، ښوونکی یم. پلار مې په ویاتکا کښې د فابریکې مدیر دی او زهٔ ښوونکی شوم، خو دا چې په کلي کښې مې خلکو ته کتابونه ور کول، بندي یې کړم. پس له هغه د کتابونو په یوه پلورنځي کښې مزدور وم او دا چې بې احتیاطي مې وکړه، بیا یې بندي خانې ته بوتلم او وروسته یې ارخانګلسک ته تعبید کړم.

دا چې هلته مې هم د والي سره مناسبات خراب شول، د سپینې بحیرې په ساحل کښې یې یوه کلي ته ولیږلم چې هلته مې (۵) کاله تېر کړل.

د دهٔ آواز نرم او لهٔ لمره په ډکه کوټه کښــې تاویدهٔ. مور دا ډول کیســې ډېرې اورېدلي وې او هېڅ نه پوهېده، چې ولې یې همېشه دوی په دغسې آرامۍ سره یادوي او برســېره پر دې چې د دا ډول عذابو سره ځانونه نه ښخلاکېدونکي ګڼي، بیا هم کوم کس ګناهکار نهٔ بولي.

- نن زما خور راځي. – نیکولای وویل.

- مېړه لري؟

- کونډه ده، مېړه یې سـایبریا ته تبعید شوی و، د هغه ځایه وتښتېد او دوه کاله مخکې د سل د مرض له کبله په خارج کښې وفات شو...

- له تاسې نه کشره ده؟

- شپږ کاله مشره ده. زهٔ د دې احسانمند یم. تاسې هم کولای شئ چې د دې موزیک واورئ، دا پیانو هم د دې ده او دلته د کور اکثره شیان په دې پورې اړه لري. کتابونه زما دي...

- دا چیري ژوند کوي؟

- هر چېرې! چېرې چې کوم زړهور کس پـه کار وي، دا هم هلته حاضره ده.

- دا هم په دې کار مصروفه ده.

- البته.

وروسته دی کار ته ولاړ او مور «د دغه کار» په باره کښې، چې ټوله ورځ ډېر خلک پرې مـــصـــروف دي، فکر کاوۀ او د دوی په مقابل کښې مور ځان داسې حس کاوۀ لکه په شپه کښې چې د غرۀ مخ ته ولاړه وي.

د غرمې و خوا ته یوه ښځه چې توره لمن یې اغوستې، جگه او ښکلې ونه یې درلوده، راغله. هر کله چې مور دروازه ورته خلاصه کړه، دې کوچنۍ ژېړ بکس پر ځمکه کښېښود او دستي یې د پلاگیا لاس ونیو او پوښتنه یې وکړه:

- تاسې د پاول ولاسوف مور یاست، بلې؟

- بلې. – مور په داسې حال کښې چې د دې کالیو ته متوجه وه، ځواب ور کړ.

- ما هم داسې تصور کاوۀ، ځکه چې ورور مې راته لیکلي وه، چې تاسې ښایي راشئ او دلته ژوند وکړئ. زۀ او پاول ولاسوف د پخوا راهیسې دوستان یو او دۀ ستاسې په باره کښې کیسې راته کړې دي. – ښځې هغه وخت چې د هندارې مخ ته یې خولۍ له سره ایسته کوله، دا وویل.

آواز یې ټیټ وو، خبرې یې نرمې کولې، ولې تگ یې ځواکمن او چټک وو. د غټو سترگو له موسکا څخه یې ځواني برېښېدله، ولې پر ټېکو یې کوچنۍ شعاع لرونکي گونځې معلومې او د غوږو پر سر یې سپینو ویښتانو نقرهاي ځلا درلوده. و یې ویل:

- وږې یم، اول مې یوې پیالې قهوې ته هوا کیږي...

- اوس به یې تیاره کړم. – مور په داسې حال کښې چې له الماری نه یې د قهوې دبلی را ایستی، آرامه پوښتنه ترې وکړه:

- آيا پاول زما په باره کښې ستاسې سره خبرې کړي؟

- ډېرې.

دې د سګرېټو قطۍ را وايسته، سګرېټ يې ولګاوهٔ، په کوټه کښې ګرځېدله او پوښتنه يې وکړه:

- تاسې د دهٔ له طرفه ډېر تشويش کوئ؟

مور د الکولي څراغ و لمبو ته چې د قهوې تر دبلي لاندې لګيدی، متوجه شوه او موسکا يې وکړه.

«يعنې زما د زړهٔ سر زما په باره کښې هر چېرې کيسې کوي»- مور په دې فکر کښې وه، چې و يې ويل:

- طبيعي ده، ولې پخوا ډېره بېريدلم، خو اوس پوهېږم چې دی يوازې نه دی.

د ښځې مخ ته متوجه شوه او و يې پوښتل:

- ستاسې نوم څهٔ دی؟

- سوفيا!

مور دې ته ډېره متوجه وه. په دې ښځه کښې يو خورا چست او ډاډ بښونکي څهٔ موجود وه.

سوفيا د قهوې دبلي ته سترګې نيولې وې او و يې ويل:

- اوس مهمه دا ده، چې دوی ټول بايد په زندان کښې ډېر پاته نه شي او ډېر ژر بايد محاکمه دايره شي، هر کله چې يې تبعيد کړل، مور بايد دستي د پاول د تېښتې لارې چارې وسنجوو، ځکه چې دی زموږ دلته په کار دی.

مور په بې اعتمادۍ سره سوفیا ته وکتل او دې په سترګو کوم ځای لټاوهٔ چې سوی سګرېټ وغورځوي، آخر یې د ګلدانۍ په خاورو کښې ښخ کړ.

- دا ګلان وچوي.- مور په بې اختیاره ډول وویل.

- بخښنه غواړم، نیکولای هم همېشه راته وایي.- بیا یې سوی سګرېټ له ګلدانۍ نه را وکېښ او د کړکۍ نه یې د باندې واچاوهٔ.

مور چې دا حال ولید لږ خجله غوندې شوه او و یې ویل:

بخښنه غواړم، ما دا له دې کبله و نهٔ ویل. آیا زهٔ کولای شم چې تاسې ته ځینې شیان در زده کړم؟

- ولې نه، کله چې زهٔ یو احمقانه کار وکړم، نو ولې یې راته په ګوته نه کړې؟- سوفیا اوږې پورته کړې او و یې ویل.- قهوه تیاره شوې ده؟ مننه! پیاله ولې یوه ده؟ آیا تاسې قهوه نه چښئ؟

وروسته یې پلاګېیا له اوږو ونیوله، ځان ته یې را نژدې او په حیرت سره یې پوښتنه ترې وکړه:

- آیا تاسې ځان دلته خجالته احساسوئ؟

مور په موسکا سره ځواب ور کړ:

- همدا اوس د سوې سګرېټ په اړه ما تاسې ته څهٔ وویل؟ او تاسې لا پوښتنه کوئ چې آیا زهٔ ځان خجالته احساسوم؟

په داسې حال کښې چې خپل حیرت یې نهٔ پټاوهٔ، مور په آرامه لهجه دوام ور کړ:

- زهٔ فقط پرون ستاسې کور ته راغلې یم او ځان داسې ګنم لکه خپل کور کښې چې یم، هېڅ ېېره نلرم او هر څهٔ چې مې زړهٔ وغواړي، وایم یې...

- همداسې باید وي!- سوفیا ځواب ور کړ.

- سر مې ګرځي. د خپل ځان لپاره هم پردۍ ښکارم، پخوا به خلکو له یو بل سره ډېره راشــه - درشــه درلوده، بې لۀ دې چې د زړۀ نه کومه خبره یو بل ته وکړي. اوس سړی هر څۀ په خلاص زړۀ ویلای شي، حتی هغه شیان چې پخوا به مو فکر هم نه شوای کړای. –مور خپلې خبرې په دې ډول اوږدې کړې.

سـوفیا بل سګرېټ ولګاوۀ او د مور مخ ته یې خپلې روښې سترګې نیولې وې.

مور هغه پوښتني ته چې تر اوسه یې فکر ور مـصـروف کړی وو، په دې ډول وپوښتۀ:

- تاسـې وویل چې د تېښـتې لارې چارې به وسـنجوئ؟ نو هغه وخت به تښتېدلی څنګه ژوند وکړي؟

سوفیا په داسې حال کښې چې ځان ته یې قهوه اچوله، وویل:

- دا کـار ډېر آســانـه دی، داســـې بـه ژوند وکړي، لکه په لســـګونو نور تښـتیدلي چې یې کوي، ما همدا اوس دسـتي د یوۀکسـسرـه، چې مور ته ډېر ارزښـت لري، ملاقات وکړ او رخصـت مې کړ. داکسیې د پنځو کالو لپاره تبعید کړی وو، ولې یوازې درې نیمې میاشتې یې هلته تېرې کړې.

مور په دقت سره ورته کتل، په موســکا شــوه، سر یې ښــوراوۀ، آرام یې وویل:

- نه، فکر کوم چې د «مې» لومړۍ ورځې زما حواس را خراب کړل، ځان په تکلیف احساسوم، ما  ته داسې ښکاري، چې په یوۀ وخت کښې پر دوو لارو روانـه یم: کلـه فکر کوم چې پـۀ هر څۀ پوهېږم او کله خیال کوم چې د ګرځ او

غبار په منځ کښې لوېدلې يم. دا دی تاسې ته گورم... ښه مېرمن ياست... په دې کار کښې مصـــــروفه ياست... پاول پېژنئ او په قدر سره يې يادوئ... لۀ تاسې مننه کوم...

- تاسـې دا څۀ واياست؟ اصلاً کښې زۀ بايد له تاسې مننه وکړم.- سوفيا په خندا سره وويل.

مور ژوره ســاه وکښــله او زياته يې کړه: - زۀ څه؟ ما خو دۀ ته دا نه دي ښودلي!

سـوفيا سـوی سگرېټ د پيالې په غاب کښې کښېښود، سر يې وځاندۀ او طلايي رنگـه ويښـتـان يې په غونچو غونچو پر اوږو ور پرېوتل او هر کله چې وتله، نو يې وويل:

- زۀ بايد ولاړه شم او دا ښکلي جامې مي وباسم.

## «۳»

مازديگر ته نيکولای راغی، د ډوډۍ پر وخت سـوفيا په خندا د تښتېدلي ملگري د ملاقات او پټېدو کيسه ورته وکړه، چې څنگه له جاسوسانو څخه چې هر چېرې دوی تـه پـه تمـه وه، پـه وېره کښــې و او دا چې تښـتـيـدلی څۀ ډول خنداآوره گرځيدلی و. مور فکر کاوۀ چې سوفيا اوس له هغه کارگر سره شباهت لري، چې کوم سخت کار يې کړی وي او په خوښۍ سره يې يادوي.

اوس سـوفيا يوه سـپکـه او پراخـه لمن، چې فولادي رنګ يې درلود، اغوستې وه. دا په دې لمن کښې له پخوا جګه ښکارېده او داسې معلومېده چې د سترګو رنګ يې هم تېرۀ او حرکات يې آرام شوي دي.

نيکولای د ډوډۍ نه وروسته وويل:- سوفيا، پوهېږې چې ستا پر غاړه يو بل کار هم ولوېد. ته خبره يې چې موږ د بزګرانو لپاره يوه ورځپاڼه ترتيب کړه او د وروسـتيو توقيفونو له کبله د هغوی اړيکه سره وشـلېدل. دا دی يوازې پلاګېيا نيلوفنـا کولای شي، چې موږ تـه هغـه کس پيـدا کړي، کوم چې د ورځپـاڼو د خپرولو کار به پر غاړه واخلي. ته د دې سره هماغه ځای ته ولاړه شه. هر څومره ژر چې کېږي، حرکت وکړئ.

سوفيا سګريټ ولګاوۀ او ځواب يې ور کړ:

- ښه ده، څنګه پلاګېيا نيلوفنا؟

- البته، ولاړې به شو.

- لېرې دی؟

- تقريباً ۸۰ کيلومتره به وي...

- ډېر ښـۀ!... اوس به لږ پيانو ووږغوم. تاسـې، پلاګېيا نيلوفنا، غواړئ چې موزيک واورئ؟

- تاسې زما څخه پوښـتنه مه کوئ، داسې فرض کړئ چې زۀ په دې کور کښې نه يم، څنګه چې مو زړۀ غواړي، هماغسې وکړئ.

مور ليـدل چې خور او ورور لکـه پـه ښـکاره چې د دې پلو ته توجه نه لري، مګر همېشه يې په خپلو خبرو کښې ور شريکوي.

- نیکولای، غوږ ونیسه، دا نغمه د (ګریګ) ده، ما نن را سره راوړه... کړکۍ وتړه.

سوفیا د موزیک د نوټو کتابچه خلاصه کړه، کیڼ لاس یې د پیانو پر تڼیو آرام کېښود. تارونه په اهتزاز راغلل، یو له خونده ډک آواز ترې ووت او ور پسې ئې بله ډېره ښکلې نغمه شروع شوه. د ښي لاس ګوتو یې د پیانو تارونه په منظم ډول په حرکت را وستل، چې د موزیک ښکلي آوازونه یې د وېرېدلیو مرغانو په شان هر طرف ته خپرېدل.

نوموړو آوازو لومړی پر مور تاثیر نه کاوۀ او له جنجال نه د ډکو ږغو په شان ورته معلومېدل، ځکه چې لهجه او میلودیا یې د آوازو په پېچلي منځ کښې ور پټه وه. نیکولای ته یې، چې د پراخ کوچ په بل څنګ کښې ناست او پښې یې تر ځان لاندې ټولې کړي وې، سترګې اړولې او په چرت کښې تللې وه. د لمر وړانګو اول د سوفیا سر او اوږې روښانه کړې او وروسته بیا د پیانو د تڼیو پلو ته ور پرېوتې او د ښځې متحرکې ګوتې یې په خپله توده غېږ کښې نیولي وې. د موزیک آوازو کوټه ونیول او کرار کرار یې د مور زړۀ را ویښاوۀ. موزیک د مور په زړۀ کښې د پخواني تور ژوندې خاطرې چې پخوا لا هیرې شوي وې، بیا راپاڅولې.

یوه ورځ د دې مرحوم میړه د شپې له خوا ډېر ناوخته کور ته راغی، ډېر زیات مست و، دا یې له لاس ونیوله او له بسترې یې ځمکې ته را وغورځوله، په داسې حال کښې چې په لغتو یې وهله، ورته و ئې ویل:

- ځه له کوره ووځه، بې حیا، ستا څخه کرکه لرم!

پلاګېیا د دې لپاره چې له وهلو ځان خوندي کړي، خپل دوه کلن زوی یې په غېږ کښې ونیو، پر زنګنو کښېناستله او هغه یې سپر غوندې مخ ته نیولی وو. وېرېدلی پاول لـه بیرې نـه وحشـت نیولی وو او په ژړا یې لاس او پښـې غورځولې.

- له کوره ووځه. –میخائیل د وحشیانو په رقم چیغې وهلې.

پلاګېیا پاڅېدلـه، پخلنځي تـه یې منډې کړې، جاکټ یې واغوسـت، ماشـوم یې په شـال کښـې را تاو کړ، بې له غږ او شـکایت نه لوڅې پښې په یوه کمیس او جاکټ کښـې کوڅې ته ووتله. د مې د میاشـتې سړه هوا وه. د کوڅې سړې خاورې په پښو پورې مښتې او د ګوتو په منځ کښې یې ځای نیوئ. ماشوم ځان اچاوۀ او ژړل یې. مور خپل تی را ویوسـت او د ماشـوم په خوله کښـې یې ور کړ، له ویرې ډکه په کوڅه کښې روانه او زوی ته یې ډاډ ور کاوۀ:

- للو للو.... للو للو!..

د سهار خوا را نژدې او هوا روښانه کېدله، مور خجالت ایستۀ، چې ښایي خلک را ووځي او دا په دې حالت کښـې ووینې. د جبه زار خوا ته ولاړه او د ګڼو وښـو تر منځ پر ځمکه کښېناسـتله. ډېر وخت ناسته او د شپې په غېږ کښې یې بې له کوم حرکته ځان اچولی وو، په خلاصـو سـترګو یې پراخې تاریکې ته کتل او په آرام ډول یې بیدۀ ماشوم او خپل غم لیدلي مات زړۀ ته للو للو ویل....

هغه وخت چې یوه توره مرغۍ د مور پر سر په هوا کښـې آرامه تېرېدله، دا یې را ویښـه او له ځایه پورته شوه. د کور خوا ته یې حرکت وکړ، تر څو چې وهلو، سپکاوي او نویو ترټنو ته، چې له پخوا یې عادت ور سره نیولی وو، ځان ورسوي...

د سړي د نغمو آواز د وروستي ځل لپاره پورته او بيا خاموشه شولې.

سوفيا مخ را واړاوهٔ او له ورور نه يې پوښتنه وکړه:

- څنگه؟ خوښ دې شو؟

- بلې، ډېر!

د مور زړهٔ چې د سړو خاطرو نه په رېږدېدو راغلی وو، د ځان سره يې فکر کاوهٔ:

«دا دئ خلک ډېر دوستانه ژوند کوي، يو بل ته ښکنځل نه کوي، ودکا نه څښي، پر حق او ناحق د هغو خلکو په شان، چې په تور ژوند کښې شپې تيروي، جنگ او جنجال نه لري...»

سوفيا تقريباً همېشه سگريټ په خوله کښې درلود.

په داسې حال کښې چې دود يې لهٔ خولې نه ايستهٔ، ويې ويل:

- دا نغمه د ځوانيمرگ کوستيا ډېر خوښه وه. ما ډېره مينه درلوده چې د دهٔ لپاره موزيک وږغوم، ډېر مهربانه او په هره موضوع پوه وو...

«البته خپل مېړه ور يادوي، او څرنگه په خوښۍ سره؟»- مور فکر کاوهٔ.

سوفيا ادامه ور کړه:

- زهٔ له دهٔ سره ډېره نيکمرغه وم... د ژوند په لارو چارو ځومره ښه پوهېدهٔ.

نيکولای په داسې حال کښې چې په ږيره يې لاس واههٔ، وويل:

- بلې! ډېر خوشاله روح يې درلود.

سوفيا بل شوی سگريټ واچاوهٔ، د مور خوا ته يې مخ را واړاوهٔ او و يې پوښتل:

- زما غوغا خو به تاسو ته تکليف نه در کوي؟

مور په داسې حال کښې چې خپل ځور يې پټولای نه شو، ځواب ور کړ:

- له ما نه تاسې پوښتنه مه کوئ، زۀ په هيڅ نه پوهېږم، ناسته يم، اورم يې او له ځان سره فکر کوم....

سوفيا وويل:

- نه، تاسې بايد پوه شئ! ښځه نشي کولای چې په موزيک و نه پوهيږي، خصوصاً هغه وخت چې غمجن وي.

دې پر تنيو باندې گوتې کښېکښلې او له پيانو نه يو سخت غږ پاڅېدۀ، لکه څوک چې د ځان په باره کښې يو بد خبر واوري، کوم چې راساً پر زړۀ حمله وکړي او فرياد ترې وباسي. وروسته ځوان ږغونه په وحشتناکه او وېرېدلي څيره را پورته او معلوم نه شوه، چې کوم پلو ته وتښتېدل، بيا فرياد او زړۀ آزاروونکی ږغ پورته شو، ښايي کوم مصيبت واقع شوی وي. پس له هغه يو مهربانه او ځواکمن زړۀ وړونکی غږ را پاڅېد، چې ښکلې او ساده سندره يې شروع، چې هر څوک يې ځان ته راجذباوۀ.

د مور زړۀ د هيلو نه ډک شو، غوښته يې، چې کوم ښه شی ووايي، موسکا يې کوله، موزيک نشه کړي وه، ځان يې پياوړی گاڼۀ، څه کار چې لازم وي، د خور او ورور لپاره يې سر ته ورسوي.

سترگې يې شاوخوا واړولې، چې څه بايد وکړي، پخلنځي ته آرامه ولاړه او سماوار يې ولگاوۀ.

خو هيله يې خاموشه نه شوه، هغه وخت چې يې چای اچولې، نرۍ خندا يې وکړه، لکه غوښتل يې چې زړۀ د لطف په گرمو لغاتو ومينځي، و يې ويل:

- موږ، یعنې د ټولنې محرومه خلک ټول شـــیان حس کوو، خو د بیانولو وسه یې نلرو. له هرې خوا مو ټکوي، خو هېڅکله نـــــــــشي کولای چې زموږ روحونه تسخیر کړي.

نیکولای عینکې پاکولې او غوږ یې نیولی وو، سـوفیا خپلې غټې سترګې خلاصـــې کړي وې، کتل یې او هیر یې وه، چې خپل مخ پر تمامېدو ســګرېټ وڅکوي. دا د پیانو څنګ ته ناســته وه او ځینې وخت به یې د خپل ښـــی لاس نرۍ ګوتې د هغـه پر تڼیو ورو وهلې او نغمـه بـه یې د مور د خبرو سره یو ځای تاوېدله.

- زۀ اوس دا یم کولای شـــم چې څـۀ نه څۀ د ځان او بل په باره کښـــې ووایم دا ځکه چې وپوهېدم، کولای شم مقایسه یې کړم. پخوا مې ژوند دا ډول وو چې د هېڅ سره مې مقایسـه کولای نشو، چېرې چې موږ ژوند کاوۀ، د ټولو ګـذاره یو ډول وه او اوس داســـې ژونـد لرم، لکـه نور خلک، خپل ژوند په یاد راوړم- یوازې غم او تکلیف.

پلاګېیا آواز ټیټ او دوام یې ورکړ:

- ښـایي زۀ ځینې شیان چې لازم وي، ونشم ویلای او یا یې باید ونه وایم ځکه چې تاسې ته بې لۀ دې هم ټوله معلومه ده...

د مور ستونی ډک شو او په داسې حال کښې چې دوی ته یې کتل او په سترګو کښې یې موسکا ښودله، زیاته یې کړه:

- غواړم چې خپل زړۀ ستاسې په مخ کښې خلاص کړم، تر څو چې تاسې پوه شئ، چې ستاسې لپاره د نیکمرغۍ او خوښۍ څومره هیله هلته موجوده ده.

- موږ دا وینو!- نیکولای په آرامه وویل.

د مور زړۀ په دې هم خالي نشو او بيا يې هغه موضوع چې دې ته نوې او بې حده مهمه ښکارېده، شروع کړه. خپل د تېر ژوند د غم نه ډکې خاطرې، چې تکرارولو يې دا هم ځوروله، په غمجنه لهجه بيان کړې، د تورو ورځو غوټه يې خلاصه کړه، د مېړۀ لخوا ترټنې يې يو په بل پسې يادې کړې، په خپله هغه وړو بهانو ته چې د دې د وهلو لامل کېدلې او چې ولې يې نشول کړای پر مېړۀ اعتراض وکړي، حيرانه پاته وه....

نيکولای او سوفيا په پټه خوله غوږ ورته نيولی وو. د دې ښځې انساني ژوند ته چې د يوۀ حيوان په څېر عمل ور سره شوی و او کلونه کلونه په خپله هم نه پوهېده، چې دا کار د دې په مقابل کښې له عدالت نه لېرې دی حيران وو. معلومېدل چې د مور خبرې د هغو زرګونو ښځو ژوندليک دی، چې د دې ځمکې پر مخ اوسېږي او يوازې د يوې نمونې او سمبول په ډول د پلاګېيا لۀ خولې څخه راوځي. نيکولای څنګلې پر مېز ولګولې او سر يې د لاسو پر ورغوو باندې کښېښود او د عينکو د لارې يې په دقت سره مور ته کتل. سوفيا پر څوکۍ تکيه کړې وه، ډېره متاثره او ځينې وختونه به يې سر د منفي په علامه سره وښوراوۀ، مخ يې لۀ پخوا نه ډېر ډنګر او سپېرۀ معلومېدی او سګريټ يې هم نه څکول. يو دم په خبرو راغله او و يې ويل:

- يوه ورځ ماته ځان ډېر بدبخته ښکاره شو، فکر مې کاوۀ چې ژوند مې لۀ غم نه پرته بل شی نه لري. په دې وخت کښې ما په تبعيد کښې ژوند کاوۀ. يو کوچنی او خوار کلی و، هېڅ کار نه پيداکېدۀ او بې له ما هېڅوک نه و، چې د هغه په باره کښې فکر وکړم، دا چې هېڅ مــصــروفيت نه و، ټوله ورځ به مې خپلې بدبختۍ راغونډولې او په ترازو کښې اچولې: د پلار سره چې مې ډېره مينه

درلوده، جنگ کړی و، د ښوونځی نه شړل شوې او سپکه شوې وم، زندان، ملګري چې له ټولو نه راته نژدې و، خیانت یې را سره وکړ، د مېړۀ توقیف، بندي خانه او تبعید او بالاخره د مېړۀ مرګ. داسې راته بریښیدل چې د ځمکې پر مخ تر ټولو بدبخته زۀ یم. ولې زما دا ټولې بدبختی که لس پلا هم زیات شي، بیا هم ستاسې د ژوند سره پلاګېیا نیلوفنا برابرېدلای نه شـــي... دا روزمره شکنجې چې کلونـه -کلونـه دوام لري او دا بېچاره خلک یې د زغملو لپاره د کوم ځای څخه ځواک اخلي؟

- پلاګېیا ځواب ور کړ:

- آخر عادت کېږي.

- نیکولای په فکر کښې تللی و او خبره یې ونیوله:

- مـا فکر کاوۀ چې د خلکو ژوند راته معلوم دی، ولې دا چې نه د کتاب له لارې، بلکې د انســان له لارې چې ټول شــیان یې په خپله لیدلي وي، ســړی خبر شي، ریښـتیا هم وحشــتناکه ده. هره شـېبه، هره دقیقه یې وحشــتناکه ده، بیا چې کلونه ترې جوړ شي...

مصـــاحبه آرامه مخ ته تلله، مور د خپل تور ژوند په تورو خاطرو کښـــې ژوره تللې وه، له هغه نه یې د هري ورځې تکلیف او غمونه را سپړل، چې د هغو څخه د وحشت نه ډک ناپایه، غمونکی او ګونګ دریاب، چې د مور ځواني ور پکښې ډوبه شوې وه، جوړېدی. ناڅاپه یې وویل:

- اه، ما په خپلو خبرو تاسې د اســتراحت نه وایســتلاســت! بې له هغه هم ټوله شیان سړی نه شي ویلای...

وروور او خور د مور سره خدای په اماني وکړه. پلاګېیا ته معلومه شوه چې نیکولای لـه پخوا نـه زیـات سر ورتـه ټیـټ او لاســونـه یې لـه پخوا نـه زیـات ورکښېکښل. سوفیا د کوټې تر دروازې پورې مور ورسوله او په دروازه کښې ودرېدله او آرام یې وویل:

- استراحت وکړئ، شپه مو په خیر!

د دې پـه آواز کښــې لطافت ښــکارېدهٔ او ســترګو یې د مور پر مخ په مهربانۍ سره لاس تېراوهٔ...

مور د سوفیا لاس ونیو، په خپلو لاسونو کښې یې ټینګ کړ او و یې ویل:

- له تاسې ډېره مننه کوم!

«۴»

څو ورځې وروسته مور او سوفیا د فقیرۍ جامې اغوستي، خورجینونه یې په شا او لکړې په لاس، نیکولای ته حاضرې شوې. په نوي جامو کښې د سوفیا ونه له پخوا نه ټیټه او سپېرهٔ مخ یې لهٔ پخوا جدي ښکارېدهٔ.

د خدای په امانۍ په وخت کښې نیکولای د خپلې خور لاس کلک ونیو او مور یو وار بیا د دوی په مناسباتو کښې سادګي او آرامي ولیدله. دې خلکو یو بل نه ښکلول او نه یې هم له مینې ډک لغتونه یو بل ته ویل، ولې د یو بل په مقابل کښې یې ډېر صمیمیت درلود. په هغه ځای کښې چې دې ژوند درلود، خلکو ډېر یو بل ښکلول، د مینې او محبت اظهار یې کاوهٔ، خو همېشه به یې یو بل د ورږو سپیو په شان سره چیچل.

دا دوې ښځې په پټه خوله د ښار له کوڅو تېرې او صحرا ته ووتې او اړخ پر اړخ د بهوج د ونو د دوو قطارونو تر منځ پر زاړه او پراخه لاره مخ ته تللې.

د سوفیا څخه مور پوښتنه وکړه:

- ستړي شوي خو به نه یاست؟

- تاسې فکر کوئ چې زهٔ لږ ګرځېدلې یم او د تګ سره عادت نلرم؟

سوفیا په خوشالۍ لکه د کوچنیوالي په شوخیو سره چې ناز کوي، مور ته د خپل انقلابي فعالیت په باب کیسې شروع کړې. دې ډېر وخت په پردي (مستعار) نامهٔ سره ژوند کاوهٔ، د جوړ کړیو اسنادو څخه یې کار اخیستهٔ، اصلي کالي یې تبدیلول، تر څو چې جاسوسان یې ونه پېژني، مختلفو ښارونو ته یې په بارونو ممنوعه کتابونه نقلول. د تبعید شوو ملګرو لپاره یې د تېښتې لارې ترتیبولې او خارج ته به یې بدرګه کول. دې په کور کښې پټه مطبعه ساتلې وه، کله چې ژاندارام خبر او تلاشۍ ته راغلل، سوفیا په یوه دقیقه کښې د دوی تر راتګ د مخه وکولای شول، چې د خادمي کالي واغوندي، دروازې ته د ژاندارمو مخ ته ور ووتله او بې له بالاپوښه یې یو کوچنی دستمال پر سر او د خاورو د تیلو بوتل په لاس د ژمي په سخت یخ کښې د ښار لهٔ یوهٔ سره بل سر ته لاړه. بله واقعه: یوه ورځ بیګانه ښار ته د خپلو دوستانو د لیدلو لپاره راغله او کله چې پر زینو باندې د هغوی کور ته پورته کېدله، و یې لیدل چې هلته ژاندارم کور تلاشي کوي. د دې لپاره د بېرته ګرځېدلو لار نه وه، جرئت یې وکړ او د خپلو دوستانو تر کور یې یو منزل کښته د بېګانه کور زنګ وواههٔ او د خپل

بکس سره ورننوتلـه او هغوی تـه يې پـه صـــادقـانـه ډول خپـل حال ووايۀ او په مطمئن ډول يې زياته کړه:

- که چېرې وغواړئ تاسې کولای شئ، چې ما د پوليسو په لاس ور کړئ، خو زه هيله لرم، چې تاسې به دا کار و نه کړئ.

د کور خلک ډېر په ډار کښې وو، ټوله شپه يې خوب و نه کړ او په دې تمه وه، چې اوس به پوليس راشي او دروازه به وټکوي، خو ژاندارم ته يې تسليم نـه کړه. ســـهار ټولو د دې په شـــمول په هغوی پورې خندل. يوه ورځ د راهبې ښـځې په جامه کښـې په يوه واګون کښې يو ځای د جاسوس سره، چې د خپل مهارت نه يې باتې وهلې او دې ته يې کيسـه کوله، چې په څه ډول خپل کارونه سرته رسـوي، ناســته وه. د جاســوس د اطلاع پر اســاس بايد ســوفيا د همدې اورګاډي په دوهمه درجه واګون کښـــې ناســـته وي. پر هر تم ځای به له واګون څخه ووت، شاوخوا به يې وڅارل او هر کله چې به راغی، و به يې ويل:

- درک يې نشته، ښايي ويده شوې وي، ځکه چې دوی هم ستړي کيږي، ژوند يې زموږ په شان سخت دی!

مور خندل او په مهربانه سترګو يې ورته کتل. سوفيا د خپل باريک اندام او جګې ونې سره پـه ځمکې لار وهلـه. د دې په تګ، کلمو، آواز –که څه هم ټيټ ولي ښشـاش وو- او په ټوله مســتقيه ونه کښـــي ډېر صـــميميت او زړه‌وړتيا څرګنـدېـدلـه. ســـترګو يې هر شي تـه په ځوان حالت سره کتل او هر پلو ته يې جهان د ځوانو هيلو نه ډک ليدۀ.

ســوفيا په داســې حال کښـې چې يوې ونې ته يې اشاره کوله، مور ته يې وويل:

- وګورئ، څومره ښکلې د ناجو ونه ولاړه ده.

مور ودرېدله او ويې کتل، دا چې ناجو له نورو ونو څخه نه جګه او نه ټيټه وه، په موسکا شوه او ويې ويل:

- ښکلې ونه ده!

په دې وخت کښې مور وليدل، چې څه ډول شمال د سوفيا پر سر ماشي رنګه وېښتان رپوي.

- جل!- د سوفيا خاکي ډوله سترګو له خوښۍ نه برق واهۀ او جسم يې د ځمکې نه د موزيک په لور، چې د صافي فضا نه را کښته کېدۀ، غوښتل پورته شي. ځينې وخت به يې په نرم حرکت سره ځان خم او له صحرائي ګلانو نه به يې يو وشکاوه او خپلې نرۍ ګوتې به يې د هغه پر ګلبرګو باندې په مينه سره تېرولې او کومه ښکلي سندره به يې په ټيټ آواز سره ويله.

د سوفيا دې ټولو حرکتو مور ځانته راجذبوله او پلاګېيا کوښښ کاوۀ تر څو د دې سره نښتې، اوږه په اوږه ولاړه شي، خو ځينې وخت به يې د سوفيا په خبرو کښې بعضې شيان توند حسول، چې مور ته اضافي برېښېدل او په دې کښې به يې دا تشويش راپاراوۀ، چې:

«دا به د مخائيل پر طبيعت برابره را نه شي...»

اما شېبه وروسته سوفيا بيا ساده او صميمي خبرې کولې او مور به په خندا سره د دې سترګو ته کتل او ويل به يې:

- تاسې تر اوسه پورې ډېر ځوانه ياست!

- زۀ پوره دوه دېرش کاله عمر لرم!- سوفيا ځواب ورکړ.

پلاګېيا په خندا شوه.

- زما مقصد دا نه و، مخ مو له دې نه هم زوړ ښکاري. اما ستاسې سترګو ته که څوک وګوري او آواز مو واوري، حیران به شي، ځکه چې وړه نجلۍ غوندې یاست، ژوند مو ډېر ناآرامه، سخت او له ګواښه ډک، ولې زړۀ مو همېشه خوښ او خندان دی.

- زۀ خپله په ژوند کښې هیڅ تکلیف نه حسوم او له دې ژوند نه ښه او دلچسپ ژوند تصور کولای هم نه شم... زۀ غواړم چې پس له دې تاسې د نیلوفنا په نامه یاده کړم، ځکه چې پلاګېیا ستاسې سره ښۀ نه ایسي.

مور په ژور فکر سره وویل:

- هر ډول چې غواړئ، هماغسې مې وبولئ، څنګه چې ستاسې خوښه وي، زۀ دا یم تاسو ته ګورم، خبرو ته مو غوږ نیسم او فکر پکښې کوم. ډېره خوښه یم چې تاسو ته د انسان د زړۀ په لور لار معلومه ده. د انسان روح او زړۀ ستاسې په مخ کښې د شک پرته خلاص پروت دی - زما مقصد تاسې ټوله یاست. آخر به د ژوند نه پستي او رذالت ورک کړئ!

سوفیا په مطمئنه لهجه او جګ آواز وویل:

موږ بریالي کیږو، ځکه چې د کارګرې طبقې سره یو لاس یو. په کارګره طبقه کښې ټول امکانات پټ او د دوی د توان نه هر څه پوره دي! پکار ده چې د دوی شعور، کوم چې په توره تیاره کښې ویده ساتل شوی دی، را ویښ کړل شي.

دې خبرو د مور په زړۀ کښې پېچلی حس راپاڅاوۀ. یو دم یې سوفیا ډېر بیچاره په نظر راغله او زړۀ یې وربانديې وسوځېد. غوښتل یې چې تر دې ساده لغتونه واوري.

مور په آرامي او غمجني لهجه وپوښتل:

- ستاسې د دې تکليف مکافات به څوک درکړي؟

سوفيا په وياړ سره ځواب ور کړ:

- موږ ته مکافات را کړل شوي دي، موږ ځان ته هغه ژوند لاس ته راوړی ،چې ډېر پکښې راضي يو- له دې نه به ښۀ او بهتره بل څه شی وي؟

مور دې ته وکتل، سر يې کښته واچاوۀ او بيا يې په فکر کښې راوگرځېدل:

«دا به د ميخائل پر طبيعت برابره را نه شي...»

دواړو په ډکه سينه ساه کښل او په داسې تگ سره يې، چې ډېر تېز نه و، لار وهله او مور داسې فکر کاوۀ، چې دا د خدای عبادت ته روانه ده. دې ته ور ياد شوه، چې په وړوکتوب کښې به د اختر په ورځو کښې د ليرې کلي کليسا ته د معجزه لرونکي تصوير و زيارت ته تلله.

ځينې وختونه سوفيا په ښکلي، ولې ټيټ آواز سره نوي سندرې د آسمان، مينې او نورو شيانو په باره کښې ويلې او بيا به يې د دښت، ځنگل او د ولگا د رود په هکله شعرونه شروع کړل. مور خندل، غوږ يې نيولی و او کله کله به يې د شعر د وزن سره سم سر ښوراوۀ.

د مور سينه د دوبي په ماښام د کوچني زاړۀ باغ په شان توده، آرامه او په فکر کښې ډوبه وه.

«۵»

په دريمه ورځ دوی کلي ته را ورسېدل، مور د هغه بزګر نه، چې په کښت کښې په کار لګيا و، د قطران د کارخانې پوښتنه وکړه، چې چيرې واقع ده او ژر په ځنګله کښې پر هغه مايله لاره، چې د ونو ريښې د زينو په شان باندې پرتې وې، را کښته شول او کوچنی دايروي شکله ميدان ته را ورسېدل، چې د سکرو او لرګيو په پارچو لړلي او قطران باندې توی شوي وه.

مور په داسې حال کښې چې په ناآرامۍ سره يې شاوخوا کتل، وويل:

- دا دی را ورسېدلو!

د منا اړخ ته، چې د ونو د ښاخو او نباتاتو نه جوړه شوې وه، د يوه مېز شاوخوا ته، کوم چې د درو ناصيقل شوو تختو نه، چې پر موړو باندې مېخ کړی شوي وې، جوړ و، د ډوډۍ خوړلو لپاره څو تنه، چې يو يې ربين- بالکل تور او چتل، د خلاص ګرېوان سره- بل يې يفيم او دوه نور ځوانان ناست وو. ربين له نورو نه مخکې ښځې وليدلې، لاس ئې د سترګو مخ ته ونيو او د دوی د راتګ په تمه وه.

مور د لېرې نه غږ وکړ:

- سلام، ميخائيله وروره!

دی پاڅېد، په آرامه يې مخ ته ورغی، هر کله چې يې مور وپېژندله، ودرېدئ، په خندا شو او تور چتل لاس يې پر ږيره تېر کړ.

مور د دهٔ خوا ته راتله او و يې ويل:

- زیارت ته راغلي یو، را وګرځېدو، چې تا هم ووینو. معرفي شئ، دا زما ملګرې ده او آنا نومیږي.

مور لکه چې په خپل ابتکار فخر کاوهٔ، د سوفیا مخ ته، چې ډېره جدي قیافه یې نیولې وه، وکتل.

- سلام! – ربین سلام وکړ، په خوښۍ یې د مور لاس ټینګ کړ، سوفیا ته یې سر ټیټ کړ، مور ته یې مخ واړاوهٔ او زیاته یې کړه:

- درواغ مه وایه، دا ښار نه دی، دوراغ ویلو ته ضرورت نشته! دا ټول خپل خلک دي...

- یفیم همدرانګه میز ته ناست و، مسافرینو ته یې په دقت کتل او خپلو ملګرو ته یې په ډډ آواز سره کوم شی وایهٔ. کله چې ښځې میز ته را نژدې شولې، یفیم پاځېد، دوی ته یې سلام وکړ او د دهٔ ملګري په هماغه ډول، لکه مېلمانه یې چې نه وي لیدلي، بې له حرکته ناست وو.

ربین مور پر اوږو باندې ټکوله او و یې ویل:

- موږ دلته د راهبانو غوندې ژوند کوو، هېڅوک مو لیدو ته نهٔ راځي، ارباب په کلي کښې نشته، ښځه یې په روغتون کښې پرته او زهٔ د ناظر غوندې کار کوم. مهرباني وکړئ کښېنئ، دا دي چای شته، وږي به هم یاست. یفیمه تهٔ پاڅه، شیدې راوړه!

یفیم په آرامۍ پورته شو او منا ته ولاړ. مسافرو د اوږو خورجینونه کښته کړل؛ یو ځوان چې جګه او نرۍ ونه یې درلوده، د مېز نه ولاړ شو او د دوی سره یې مرسته کوله او بل چې زاړهٔ کالي او ګڼوډ ویښتان یې درلودل، پر میز یې

ځنګ وهلی، په دقت سره یې دوی ته کتل، سر یې ګراوۀ او لۀ ځانه سره یې زمزمه کوله.

د قطران تېز بوی د وراستو شویو پاڼو له بوی سره یو ځای کېدۀ او سر یې په څرخېدو راوستئ.

ربین جګ ځوان ته لاس ونیو او ویې ویل:

- د دۀ نوم یاکوف او دا بل ایګناتي نومیږي. ښه، ستاسې د زوی څه حال دی؟

- بندي دی!- مور آه وکېښې او ځواب یې ورکړ.

ربین بیا وویل:

- بیا بندي دی؟ معلومیږي چې تېره پلا یې بندي خانه خوښه شوه.

ایګناتي خپله زمزمه خاموشه کړه. یاکوف د مور د لاسه لکړه واخیسته او ویې ویل:

- کښېنئ!

- تاسې ولې ولاړې یاست! کښېنئ!- ربین سوفیا ناستې ته دعوت کړه او هغه په پټه خولۀ د یوې تختې په څنډه کښېناستله، ربین ته یې په دقت سره کتل.

ربین هغه وخت چې د مور په مقابل کښې کښېناست، سر یې وښوراوۀ او ویې پوښتل؟

- کله یې بندي کړ؟ ته هم بخت نه لرې، نیلوفنا!

- پروا نه لري!- مور ځواب ورکړ.

- ښه؟ اوس عادت شوې یې؟

- عادت شوې یم، وینم چې بله چاره نه شته.

ربین وویل:

- هو، ښه، ته کیسه وکړه...

یفیم د شـیدو لوښـی راوړ، د میز نه یې پیاله واخیسـتله، اوبه یې پر تېرې کړې، شیدې یې ور واچولې او د سوفیا مخ ته یې کېښېښودله او په دقت سره یې د مور کیسې ته غوږ نیولی وو. دۀ په ډېره آرامۍ او احتیاط سره کار کاوۀ، تر څو مزاحم نه شـــي. کله چې مور خپله لنډه کیسه خلاصه کړه، د یوې شیبې لپاره ټول خاموش وو او یو بل ته یې نه کتل. ایګناتي همدرانګه مېز ته ناسـت او په خپل نوک سره یې پر تخته باندې رسمونه کول. یفیم د ربین شا ته ولاړ او د هغه پر اوږو یې څنګ وهلی و. یاکوف د ونې پر تنه تکیه کړې او پر سینه یې لاسونه ایښي، سر یې کښته اچولی و. سوفیا تر سترګو لاندې دهقانانو ته کتل...

ربین په کش شوي آواز سره وویل:

- بلې، معلومیږي چې په ښکاره ډول عمل کوي.

یفیم موسکا پر شونډو درلوده او ویې ویل:

- که یې چېرې دا ډول صـحنه دلته جوړه کړې وای، دهقانانو به تر مرګه پورې وهلي وای.

ایګناتي سر وښوراوۀ او دا خبره یې تائید کړه:

- بلې، وهلی به یې وای... زړۀ مې غواړي چې فابریکې ته لاړ شـم، هلته سړی کار کولای شي...

ربین د مور نه پوښتنه وکړه:

- تا وویل چې پاول ښـایي محاکمه شي؟ اورېدلي دې نه دي چې کومه جزا به ورته وټاکي؟

- شاقه یا ابدي تبعید سایبریا ته. – دې په آرامۍ سره ځواب ورکړ.

درې واړو کسانو، کوم چې حاضر وو، یو بل ته وکتل او مور ته یې سترګې واړولې. ربین سر کښته نیولی او په آرامه یې پوښتنه وکړه:

- کله چې دۀ د دې کار لپاره ترتیب نیوۀ، خبر و چې کومه جزا ورته په تمه ده؟

- خبر و!- په لوړ آواز سوفیا ځواب ورکړ.

ټوله چپ او بې حرکت پاته شول، لکه چې په یوه ساړۀ فکر کښې ډوب شوي وي.

ربین جدي قیافه ونیوله او دوام یې ورکړ:

- بلې، زۀ هم فکر کوم چې خبر و، سړی پوه او جدي دی، هېڅکله یې سرسري کار نۀ کاوۀ. دا دی ملګرو وینئ، پوهېدۀ چې ښایي د برچې په سر یې سوری کړي او یا یې د شاقې سره تبعید کړي، بیا هم ونه وېرېدۀ او خپل کار یې مخ ته بوت. که یې چېرې مور هم لاره ور بنده کړې وای، بیا به هم ځنې تېر شوی وای. نیلوفنا همداسې نه ده؟

- همداسې ده!- مور ټکان وخوړ، آه یې وکیښ او ځواب یې ورکړ. سوفیا د دې پر لاس خپل لاس په پټه خولۀ تېراوۀ او په تریو تندي یې ربین ته وکتل.

ربین خپلې تورې سترګې ټولو ته واړولې او ویې ویل:

- حقیقتاً چې ریښتنی انسان همداسې وي!

شېبۀ واړه بیا چوپ شول. د لمر نرۍ وړانګې د طلایي فیتو په شان په هوا کښې ځوړندې وې. د کوم ځای نه د کارګۀ د قاغ قاغ آواز راغی. مور چې د مې د لومړۍ نېټې د خاطرو، د زوی او آندري د بېلتون په اندېښنو کښې ډوبه وه،

شــاوخوا وکتل. د کندو پوســتونه پراته وو. د میدان پر شــاوخوا د بلوط او بهوج ونې په ګڼ ډول ولاړې وې، چې د هر پلو نه د میدان خوا ته را کږې شـــوي او لکه چې ســکوت او آرامۍ سره تړلي وي، پر ځمکه باندې یې خپل ګڼ او تود سیوري اچولي وو.

نــابېره یــاکوف د هغې ونې نــه، چې تکیه یې ورباندې کړې وه، جلا، سر یې وښوراوهٔ، په وچ او درانده آواز یې وپوښتل:

- ما او یفیم مؤظفوي، چې د دغه ډول خلکو پر ضد وجنګېږو؟

- تا څهٔ فکر کاوهٔ چې د چا پر ضــد؟- ربین په پوښــتنې سره ځواب ورکړ او زیاته یې کړه: –موږ په خپلو لاســو باندې خپه کوي، د حیرانتیا وړ موضــوع همدا ده!

- په هر صـــورت زهٔ غواړم عســکر شـــم!- یفیم په جدي توګه خپل نظر ښکاره کړ.

- هېڅوک دې نـهٔ راګرځوي، مهرباني وکړه!- ایګناتي غږ پر وکړ، د یفیم خوا ته یې سترګې نیولي او په خندا سره یې وویل:

- خو په نظر کښــې ونیســه، هر وخت چې دې زما خوا ته فیر کاوهٔ، نښــان مې پر سر ونیسه، فکر کوه چې معیوب مې نه کړې، راساً مې قبر ته ولېږه!

یفیم په تریو تندي سره ځواب ورکړ:

- بس ده، دا مې پخوا هم در څخه اورېدلي دي!

ربین په آرامۍ سره لاس پورته کړ، د دوی خوا ته یې وکتل او ویې ویل:

- ملګرو، صبر وکړئ!- بیا یې د مور خوا ته لاس ونیو او زیاته یې کړه:- دا دی... د دې ښځې زوی لکه چې د منځه لاړ!

مور په غمجنه او ټيټه لهجه سره وويل:

- خدای دي نه کړي، ولې دا وایې؟

ربين په ډک آواز ځواب ورکړ:

- بايد ووايم. ستا ويښتان بايد بې ځايه سپين نه شـــي، ښه، دا خبره دې خوښه نه شوه؟.. ووايه چې کتابونه دې راوړي، کنه؟

مور دهٔ ته وکتل او په آرامه يې ځواب ورکړ:

- راوړي مې دي!

ربين لاس پر مېز وټکاوهٔ او ويې ويل:

- ډېر ښهٔ، ما چې ته مطلق وليدلې، راساً پوه شوم چې ته بې له دې نه دلته هېڅ کار نه لرې. دا دی و مو ليدل؟ زوی يې له قطاره ځنې ويوســت او مور يې ځای اشغال کړ!

ربين پـه قهرجنـه توگـه لاس په گواښــونکي ډول وښــوراوهٔ او ســخت ښکنځل يې له خولې نه ووتل.

مور د دهٔ له بږغ نه ووېرېدله، ســترگې يې ور واړولې او ويې ليدل، چې د ميخـائيـل شــکل ډېر بدلون کړی دی- مخ يې له پخوا نه ډنگر او بږيره يې ببره معلومېدله، چې تر هغې لاندې يې د مخ هډوکي له ورايه ښکارېدل. د سترگو پر سپين باندې يې نري سرهٔ رگونه پيدا شول، لکه چې ډېر وخت يې خوب نه وي کړی. پزه يې په وحشـــي ډول د خولې پلو ته کږه شوه. د سرهٔ کميس، چې په قطران لړلی و، د خلاص گرېوان نه يې د ســينې د قفس هډوکي او په گڼو تورو وېښتانو پټ ځيگر معلوم و او په ټول بدن کښې يې له پخوا نه زيات غم او ماتم ځای نيولی و. د سوفيا مخ سپېره رنگ نيولی، پټه خوله ناسته وه او سترگې ئې د

دهقانانو څخه نه اړولې. ایگناتي سر ښـوراوهٔ او سـترگې یې چوغې کړې وې. یاکوف منا ته ولاړ، په خیرنو گوتو او مات زړهٔ یې د لرگي د پوستو په اړولو ځان مصروف کړی وو. د مېز په اوږدوالي د مور شاته یفیم آرام تگ او راتگ کاوهٔ.

ربین خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

- دا دی، مثلاً زهٔ آمر وغوښـتلم او ویې پوښتل: «تا، پست فطرته، کشیش ته څهٔ ویلي وه؟» ځواب مې ورکړ: «زهٔ ولې پست فطرت یم؟ ټوله ورځ کار کوم او خپلـه ډوډی پـه زحمت لاس ته راوړم او هېڅ انســان ته مې هم تاوان نه دی رسـولی». په قهر شـو، زما سـپکاوی یې وکړ او درې ورځې یې په حبس کښـې کښـېنولم. په دې ډول تاسـې د خلکو سره رفتار کوئ؟ په دې ډول؟.. د بخښنې تمه مه لرئ، تاســې د شـیطان بچیان! په یاد ولرئ- که چېرې زهٔ نه اوســم بل به پاڅي، که چېرې ته نه وې د اولاد نه به دې زما د بېځایه ســپکاوي او ځوروني غچ واخلي! تاســې په خپلو تېزو منگولو د خلکو ســینې څیرې کړې، په دوی کښې مو وپاشهٔ- د رحم او بخښنې تمه مه را څخه کوئ، شیطانانو!

دی د قهر په سرهٔ اور کښـې ایشـېدهٔ او د خولې نه یې داسـې آواز ووت، چې مور یې په ډار کښې اچولې وه.

ربین وروسته بیا په سړه سینه دوام ورکړ:

- پوهېږې چې کشــیش ته ما څهٔ ویلي وه؟ د مجلس وروســته د کلي په کوڅه کښې د دهقانانو سره ناست او دوی ته کیسه کوي، چې خلک د بوده‌گانو د رمې غوندې همېشه چوپان ته ضرورت لري! ما شوخي وکړه او ومې ویل: که چېرې گیدړه د ځنگلهٔ رئیســه شي، بڼکې به ډېرې، ولې مرغان به ورک شي! دهٔ زمـا خوا ته ســترگې غټې کړې او ویې ویل، چې انســانان باید تکلیف او زجر

وباسي او د خدای عبادت باید وکړي، تر څو چې صبر او زغم ورکړي. ما ورته وویـل، چې دا دی خلـک خو ډېر عبادت او اطاعت کوي، خو معلومېږي چې خدای ډېر مصـــــروف او د دوی د خواسـت قبلولو لپاره وخت نلري! کشـیش راپورې ونښـــت او پوښـــتنه یې وکړه، چې زهٔ معمولاً خدای ته کومه دعا کوم؟ ورته مې وویل: د ټولو خلکو په شـان همېشـه دا یوه دعا کوم: «خدایه! ځواک راکړې، چې اربـابـانو ته ډېر کار وکړم، ډبرې وخورم او د لرگیو کُندې قی کړم». په دې ډول یې زهٔ د خبرو خلاصـېدو ته پرې نښـودم. ربین یو دم خپلې خبرې پرې کړې، سوفیا ته یې مخ واړاوهٔ او پوښتنه یې ترې وکړه:

- تاسې د اشرافي کورنۍ څخه یاست؟

- ولې اشرافي؟- دې په حیرانتیا سره وپوښتل.

ربین په خندا شو او ویې ویل:

- ولې؟ ځکه چې برخلیک مو همداسې دی، همداسې زیږېدلي یو، فکر کوې په همدې سـاده دسـتمال چې پر سر کړی دي دی، خپله اشرافي گناه له خلکو نه پټولای شـې؟ نه، موږ کشـیش د پردې شـا ته پېژنو. مثلاً دا دی تاسـې خپله څنگل پر لاندهٔ شوي مېز کښېښوده، وربېږدېدلاست او تندی مو تریو ونیو. ستاسې ملا هم ډېر مستقیمه ده، چې کارگرې ښځې ته شباهت نه لري...

مور د دې لـه ډاره چې ربین پـه خپـل درانهٔ آواز، ملنډو او پېغورونو سره سوفیا ونهٔ ځوروي، ژر په جدي ډول وویل:

- میخائیل ایوانوویچ، زما ملگرې، ډېره ښه ښځه ده، په دې کار کښې یې د سر وېښتان سپین شوې دي. ستا خبرې ډېر خشنگې دي...

ربین ژوره ساه وکښله:

- مګر څۀ نامناسبه شیان مې وویل؟

سوفیا دۀ ته وکتل او په وچ آواز یې پوښتنه څنې وکړه:

- تاسې غوښتل چې ماته کوم شی ووایاست؟

- ما؟ بلې! څو ورځې مخکې دلته یوکسراغی، د یاکوف د کاکا زوی کېږي، د سِل مرض لري، اجازه راکوې چې دې مجلس ته یې راوغواړو؟

- ولې نه، را و یې غواړئ!

ربین سترګې د دې پلو ته واړولې او په ټیټ آواز یې وویل:

- یفیم، ته ورشه، ورته ووایه چې ماښام دلته راشي...

یفیم هم خپله کورتۍ واغوستله، په پټه خوله بې له دې چې چا ته وګوري او یا بېړه وکړي، ولاړئ او په ځنګل ننووت، ربین د دۀ خوا ته مخ واړاوۀ او وېې ویل:

- بېچاره، عسکرۍ ته روان دی، ډېر رنځ وړي. یاکوف همداسې. ولې یاکوف وایي چې نه شم کولای، خو برسېره پر دې چې نه شي کولای، بیا یې هم زړۀ دی، چې عسکري وکړي، فکر کوي چې په عسکرو کښې به خپله مفکوره وپاشي. خو زما باور دا دی، چې دېوال په تندي نه سوری کېږي... عسکرو ته برچه په لاس ور کړه او امر پر وکړه. بلې، یفیم ډېر ځورېږي او ایګناتي یې پر زخم لا هم مالګې ور پاشي، ولې بېځایه!

- بالکل بې ځایه نه ده. هلته د دۀ عقیده هم ور اړوي او لکه نورو غوندې به امرونه پر ځای کوي. - ایګناتي په تریو تندي سره چې ربین ته یې هم نۀ کتل، ځواب ورکړ.

ربین په فکر کښې تللی او وېې ویل:

- فکر نه کوم، اما بیا هم ښــه دا بولم، چې له دې کار نه تېر شي. روســیه ډېر لوی ملک دی، تذکره واخله او گرځه په کلیو کښې، څوک دې پیداکولای شي؟

ایگناتي پر زنگانه لاس ټکاوۀ او ویې ویل:

- زۀ همدا کار غواړم چې ویې کړم، څوک یې چې پۀ مقابل کښې دریږي باید مستقیم لاړ شي.

خبرې پر همدې ځای پرې شــوې. غالبوزي او د عســلو مچۍ په بېړه یو پلو او بل پلو ته الوتې او په آرامه فضــا کښــې یې زوږ غوږ ته رســېدۀ. مرغانو آوازونه ایســـتل او د کوم لېرې ځای نه د ســـندرې ږغ، چې په صـــحرا کښـــې خپرېدله، اورېدل کېده.

ربین لږ گړی چوپه خوله ناست و او وروسته یې وویل:

- موږ باید کار ته لاړ شو، تاسې هم ستړی یاست، استراحت وکړۀ، هلته په منا کښــې بسترې شته. ته یاکوف، وچې پاڼې ټولي کړه او ته پلاگېي،ا ژر شه کتابونه راکړه، چېرې دي؟..

مور او ســوفیا د خورجینو په خلاصــولو پیل وکړ، ربین د دوی پلو ته سر کوږ کړ او په خوشالۍ سره یې وویل:

- آفرین، ښۀ ډېر خو مو راوړي دي!

بیا یې سوفیا ته واړاوۀ او ویې پوښتل:

- ډېر وخت کیږي، چې په دې کار مصروفه یاست؟

- دوولس کاله!

- وبخښې ستاسې نوم؟ هېر مې شو.

- آنا ایوانوفنا! ولې، مقصد مو څه و؟

- هېڅ! حبس مو لیدلی کنه؟

- بلې!

مور د ملامتیا په توګه وویل:

- ودې لیده؟ او تا په خشـنګه لهجه خبرې ورسره کولې. ربین په داسـې حال کښې چې د کتابونو بنډل یې په لاس کښې نیولی و، غاښونه سپین کړل او ویې ویل:

- له مانه مه خفه کېږئ! څۀ وکړم، دهقان او ارباب د اوبو او قیر په شـان سره ګډېدلای نه شي، یو د بل نه بېلېږي.

سوفیا په خبرو کښې ور ولوېدله او ویې ویل:

- زۀ د اشرافي کورنۍ څخه نـه یم. هغه انســان یم، چې رنځ او کړاو مې لیدلی دی!

- دا هم شــونې ده، څکه چې وایي ســپی هم یو وخت لېوۀ و!- ربین دا وویل او زیاته یې کړه:- څم چې دا کتابونه پټ کړم.

ایګنـاتي او یـاکوف ورتـه راغلل، لاســونه یې ور اوږدۀ کړل او ایګناتي وویل:

- مورږ ته یې هم راکړه!

ربین د سوفیا نه وپوښتل:

- ټول یو ډول دي؟

- نۀ مختلف دي، ورځپاڼه هم پکښې شته...

- آه؟

درې واړه په چټکۍ سره منا ته ولاړل.

مور په داسې حال کښې چې په فکر کښې تللې او دوی یې بدرګه کړه، وویل:

- معلومیږي چې وینه یې ډېره ګرمه ده!

سوفیا په آرامۍ سره تائید کړه:

- بلې، هېڅکله مې د دهٔ غوندې ځېره نه ده لیدلې، ستر شهید غوندې ښکاري. راځه چې زهٔ او ته هم د دوی ځنګ ته ولاړې شو. غواړم چې د خپلو تحفو تائید ووینم.

مور په نرمۍ سره خواهش ترې وکړ:

- له دهٔ نه مه خفه کېږه، دی همداسې سخت ګیره دی!

سوفیا په موسکا شوه:

- نیلوفنا، تاسې ډېر پاک زړهٔ لرئ!

هر کله چې دوی په دروازه کښې ودریدلې، ایګناتي سر پورته کړ، دوی ته یې نظر واچاوهٔ، ګوتې یې په خپلو زنګوله زنګوله ویښتانو کښې ووهلې او د ورځپاڼې و خوا ته چې پر زنګنو یې پراته وه، خم شو. ربین د لمر وړانګو ته، چې د منا له سوري نه راننوتې، ورځپاڼه نیولې او شونډې یې ښورولې. یاکوف هم زنګون وهلی او په داسې حال کښې چې سینه یې د چارپایي پر څنډه لګولې وه، په لوستلو مشغول و.

مور ور تېره شوه او د منا په کونج کښې کښیناستله، سوفیا د هغې پر اوږو باندې لاس ایښی او دهقانانو ته یې په دقت سره سترګې نیولې وې.

یاکوف بې له دې چې مخ واړوي، په نیم آواز سره وویل:

- میخائیل کاکا، موږ ته همېشه ښکنځل کوي.

- ځکه چې مینه درسره لري.- ربین ور زیاته کړه.

ایگناتي د ځان و خواته ساه کش کړه، سر یې پورته او په پټو سترگو یې وویل:

- دلته یې لیکلي دي: «دهقانانو ته د انسان حیثیت نه دی پاته شوی».- رینبتیا خبره ده، چې د انسان په سترگه نۀ ورته گوري!

د دۀ پر ساده او خلاصه څېره د گیلې سیوری وغوړېدئ.

- دا دی زما پوست واغونده، پکښې وگرځه، و به گورو چې تۀ څومره پوه او هوښیار یې!

مور سوفیا ته په آرامه وویل:

- غواړم چې څو شیبې استراحت وکړم، ویده شم. ډېره ستړې یم او سر مې هم د قطران له بوی نه پرله گرځي. تاسې نه غواړئ؟

- نه غواړم!

مور پر چارپایي ځان واچاوۀ او ویده شوه. سوفیا یې اړخ ته ناسته او لوستونکو ته ئې کتل. کله چې به مچۍ یا بله کومه حشره د مور د مخ دپاسه الوتله، لېرې به یې ترې شړله. مور د خپلو نیمه پټو سترگو د لارې دا لیده او له سوفیا نه ډېره خوښه وه.

ربین را نژدې شو او په غوږ کښې یې په ټیټ آواز ترې وپوښتل:

- بیده ده؟

- هو!

دی چوپ شـــو، د مور څېرې ته یې په دقت سره وکتل، آه یې وکښل او آرام یې وویل:

- فکر کوم چې دا به لومړی ښـــځه وي، چې په زوی پســـې د هغهٔ پر لار روانه شوه، لومړی؟

- له خوبه و نه وځي، راځئ چې مور تري ووځو.- سوفیا خواهش وکړ.

- بلې، مور باید کار ته لاړ شـــو. ســـتاســـې سره مجلس او خبرې اترې به ډېرې پـه زړهٔ پورې وي، خو بیـا هم تر ماښـــام پورې د خدای په امان. هلکانو، راځئ!

دوی درې واړه ووتل، ســـوفیا د منا څنگ ته پاته شـــوه. مور له ځان سره فکر کاوهٔ: «شـــکر خدایه! دوی سره جوړ شـــول...» د ځنگلهٔ او قطران بوی یې تنفس کاوهٔ او د راحت په خوب ولاړه.

«٦»

تر کار وروسـته کارگران خوشـاله بېرته راغلل. د دوی په غږ و سره مور له خوبه را ویښـه، په داسـې حال کښـې چې سـترگې یې لا د خوبه ډکې وې، په خندا سره را ووتله، ټولو ته یې په مهربانه نظر کتل او ویې ویل:

- تاسې کار کاوهٔ او زهٔ اشرافي غوندې ویده وم.

- پروا نه لري، ســـتړي واســـت!- ربین له ســـتړیا څخه، چې د ډېرو خبرو انرژي نه وه ورته پاته، دا وویل او زیاته یې کړه:

- ایگناتي، د چایو غم وخوره. موږ دلته په نوبت سره د کور کار مخ ته بیایو او نن د ایگناتي نوبت دی، چې د خوراک څښاک کار پر غاړه واخلي.

ایگناتي خبرو ته غوږ نیولی و او د اوږ لگولو لپاره یې میده بوټي ټولول او ویې ویل:

- که څوک میل لري، زه کولای شم چې په ډېره خوښۍ خپل نوبت ور پرېږدم.

- هر یو لېوالتیا لري چې له میلمنو سره کښېني!- یفیم دا وویل او د سوفیا څنگ ته کښېناست.

- زه کمک درسره کوم، ایگناتي!- یاکوف وویل او منا ته ور ننووت، تر لږ ځنډه وروسته ډوډۍ په لاس بېرته راوگرځېد، ډوډۍ یې ټوټه ټوټه او پر مېز وویشل.

- له دباندې نه د ټوخي ږغ راځي!- یفیم یاده کړه.

ربین غوږ ونیو، سر یې وښوراوه او ویې ویل:

- بلې معلومیږي، چې را روان دی...

او سوفیا ته یې مخ راواړاوه او څرگنده یې کړه:

-کسـچې اوس را روان دی په خپله ډېر ښـه شـاهد دی. زړه مې غواړي چې دی پر ښارو او کوڅو باندې وگرځوم، خلک را ټول کړم، تر څو چې د ده خبرې واوري. همېشه دی یوه موضوع تکراروي، ولې هر چا ته په کار ده، چې وا یې وري.

تیارهٔ او آرامي ورو ورو زیاتېدله او د خلکو آوازونه هم نرم ښــکارېدل. ســوفیـا او مور د دهقـانـانو کارو ته متوجه وې- ټولو په کرارۍ او له یوهٔ خاص احتیاط سره حرکات کول او دوی هم ښځو ته په دقت سره توجه درلوده.

له ځنګلهٔ څخه میدان ته یو جګ، کړوپ او ډنګر ســړی را ووتئ، لکړه یې لګوله او په آرامۍ سره روان و. د ســاه کښــلو په وخت کښــې یې له ځیګر څخه خیږ خیږ اورېدل کیدئ.

- دا دی راغلم!- دهٔ دا وویل او په ټوخلو یې شروع وکړه.

دهٔ زوړ، اوږد بالاپوښ، چې تر بجلکو پورې رسېدئ، اغوستی، مرطوب ژېړبخن کم وېښـتان یې دسته دسته د زړې او خیرنې خولې لاندې ځړېدل. ژیړ رنګـه ږیره یې پر وچ مخ بـانـدې بې ترتیبه پرته وه، خوله یې نیمه خلاصــه وه، سترګې یې په تندي کښې ژورې ننوتلې او له هغه تورو غارو نه له ورایه ځلېدلې.

کله چې ربین دی د سوفیا سره معرفي کړ، دهٔ له سوفیا نه پوښتنه وکړه:

- خبر شوم چې کتابونه مو راوړي دي! ریښتیا ده؟

- بلې، راوړي مو دي.

- مننه ســتـاســې څخـه... د خلکو له خوا!.. دوی په خپله تر اوســه نه پوهېږي... زهٔ دا یم پوه یم... د خلکو په نمایندهګۍ ستاسې څخه مننه کوم.

دهٔ تنفس ژر ژر کاوهٔ او ساه به یې لنډه کښله. د خبرو په وخت کښې یې آواز پرې کېدهٔ. د ضعیف لاس ګوتې یې، چې یوازې له هډوکو نه جوړې وې، پر ځیګر باندې تېرولې او غوښتل یې چې د بالاپوښ تڼۍ وتړي.

- ډېر وخت په ځنگله کښې پاتيدل تاسې ته تاوان لري، په ځنگله کښې نباتات ډېر مرطوب او هوا يې هم ترخه ده!- سوفيا په غمخوره لهجه ور ياده کړه.

- ما ته اوس هېڅ شی فايده نه لري... بې له مرگه!- دۀ په نفس تنگۍ سره ځواب ورکړ.

د دۀ آواز په تکليف اورېدل کيدۀ او ټول وجود يې په خلکو کښې د رحم او همدردۍ حس راپاڅاوۀ، هغه همدردي چې له کمک څخه عاجزه وي. دی پر بېلر باندې کښېناست او پښې يې په داسې احتياط سره ټولې کړې، چې تا به ويل، بيريړي چې د را ټولولو په وخت کښې ترې ماتې نه شي او له تندي نه يې خوله پاکه کړه. ويښتان يې مړۀ او وچ ښکارېدل.

اور ولگېد، شاوخوا ټول په ښور او ورو اهتزاز راغلل، په ځنگل کښې سيوري، چې د اور له لمبو نه پيدا شوي وو، هر طرف ته خپاره شول او د ايگناتي گردی مخ د ډکو او پړسېدلو بارخوگانو سره ښکاره شو. اور بېرته خاموش شو، تيارې او آرامۍ ميدان ونيو او يوازې د ناروغ نيولی آواز اورېدل کيدۀ.

- اما د خلکو لپاره زه تراوسه پورې لا مفيد يم... د يوه ستر جنايت د شاهد په توگه... دا دی ماته وگورئ... عمر مې يوازې اته ويشت کاله... او قبر ته روان يم! لس کاله د مخه مې دوه سوه کيلو بار بې له کمکه پر شا پورته کاوۀ. فکر مې کاوۀ چې د دې ډول صحت سره به مې تر اويا کاله پورې ملا هم کږه نه شي، ولې د هغو نه مې فقط لس کال تېر کړل... نور نه شم کولای. نور ژوند اربابانو را نه واخيست، څلوېښت کاله عمر، پوره څلوېښت کاله!

- دا دی ښه مو واورېدله د دهٔ سندره!- ربین په ټیټ آواز سره وویل.

اور بیا لمبې پورته کړې، خوا دا وار تر پخوا ځواکمني او روښانه وې. په ځنګل کښې بیا سیوري وغوړېدل او د اور پر شاوخوا په خاموشه فضا کښې ټول په آزاروونکي ډول سره ورېږدېدل. د لرګو د سوځولو فریاد اور په دننه کښې واورېدل شو او د اور دپاسه د ونو پاڼې د تاودو څپو له کبله په حرکت او زوږ راغللې. د اور لمبو په خوښۍ سره ژبې را کښلې او د لرګو پر مخ یې په مینه تیرولې، په ژیړو او سرو رنګو پورته روانې وې او هرې خوا ته یې بڅرکي خپرول. په هوا کښې په اور سوي پاڼې الوتې، په آسمان کښې ستوري بڅرکو ته په موسکا وو او هغوی یې د ځان خوا ته بلل.

- دا زما سندره نه ده، په زرګونو خلک دا سندره په جګ آواز لولي او په خپل بدمرغه ژوند کښې د علاج درس هم نه دی ورته معلوم. څومره خلک د کار د تکلیف او د لوږې د زحمت نه په ګونګه خوله قبر ته روان دي...- ناروغ په ټوخلو راغی چې د ټوخلو سره یو ځای پر ملا کوږ او رېږدېدهٔ.

یاکوف پر مېز باندې یو سطل کواس[۲] کښېښود، یو بنډل کوکی پیاز یې واچاوهٔ او ناروغ ته یې وویل:

- ساویلي! دلته راشه، چې شیدې مې درته راوړي دي...

- ساویلي سر په منفي ډول وښوراوهٔ، ولې یاکوف هغه له څنګ نه ونیو، پورته یې کړ او میز ته یې بوت.

سوفیا ربین ته په ټیټ آواز سره وویل:

---

۲ کواس- یو ډول د څښلو مایعات دي، چې د ډوډۍ له ایشولو څخه په لاس راځي. (م.)

- غوړ ونیسه، دی مو د څۀ لپاره دلته راغوښتی دی؟ په هره دقیقه کښې د دۀ د مرگ امکان شته...

ربین د سوفیا سره ځان موافق وښود:

- بلې، موجود دی، د چتې شیانو لپاره یې ژوند قرباني شوی، اوس که د خلکو لپاره هم لږ تکلیف ووینې، پروا نه کوي.

- تاسې لکه چې د دۀ له رنځ نه خوند اخلئ!- سوفیا ورته وویل.

- دا اربابان دي چې د مسیح د رنځ نه د صلیب پر مخ خوند اخلي، موږ د انسان نه زده کړه کوو او زړۀ مې غواړي، چې تاسې هم لږ څۀ ترې زدۀ کړئ...

مور په ډار سره وروځې پورته کړې او ربین ته یې وویل:

- بس ده، تا ډېرې خبرې وکړې.

ناروغ د مېز نه غږ وکړ:

- اربابان انسان د کار په واسطه له منځه وړي، ژوند ترې اخلي، ولې د څۀ لپاره؟ ما د نېفېدوف په فابریکه کښې ژوند د لاسه ورکړ. د فابریکې خاوند یوې سندرغاړې ښځې ته د سروزرو لوښی د مخ منځلو لپاره تحفه ورکړه. په دې لوښي کښې زما ځواک او زما ژوند پروت دی. ومو لیدۀ چې زما ژوند چېرې تللی؟ زۀ یې د کار په واسطه مړ کړم، تر څو چې زما په وینو د خپلې معشوقې خاطر راضي کړي. زما په وینو یې طلایي لوښی ورته رانیوۀ!

یفیم په خندا سره وویل:- خدای انسان د ځان په شکل او مشابه و ځان ته جوړ کړ او دا دی په څۀ ډول له منځه وړل کیږي.

ربین پر مېز باندې لاس وټکاوۀ او ویې ویل:- چې دا هم وینې باید آرام و نه اوسې!

یاکوف په ټیټ آواز ور زیاته کړه:- زغم په کار نه دی!

ایگناتي وخندل.

مور ولیدل چې درې ځوانانو په ډېري توجه او لېوالتیا سره د ربین خبرو تـه غوږ نیولی، هره خبره چې به د دهٔ له خولې نه وتله، دوی به ســترگې د دهٔ په مخ کښــې ور ښــخې کړلې. د ســاویلي وینا د دوی په څېره کښــې د تعجب او حیرانتیا شـکل څرگنداوهٔ او د ناروغ په مقابل کښې په دوی کښې زړهٔسوی و نه لیدل شو.

مور د سوفیا خوا ته سر ټیټ کړ او په آرامه یې وپوښتل:

- آیا دی رښتیا وایي؟

سوفیا په لوړ آواز ځواب ورکړ:

- بلې، بالکل رښتیا وایي، د دې تحفې په باره کښې په اخبارونو کښې هم لیکل شوي وه، دا کار په مسکو کښې واقع شوی و...

ربین په گونگ آواز وویل:- مگر دهٔ ته یې هېڅ جزا ور نه کړه، باید اعدام کړی یې وای، پـه عام میدان او د خلکو په وړاندې یې باید ټوټه ټوټه کړی وای او مرداري غوښې یې سپیو ته اچولې وای. دوی ته ستري جزاگاني په تمه دي، کلـه چي خلـگ د دوی ځواک په لاس کي واخلي. خلگ به ډېر ژر ســیاسي ځواک په لاس کښــې واخلي. خلک به ډېرې وینې د ظالمانو نه توی کړي، تر څو چې خپل ســپک شــوي او ځورېدلي زړونه پرې ومینځي. دا وینه د خلکو وینه ده او د دوی له رگونو زبېښل شوې ده، ځکه یې نو څښتنان هم دوی دي.

ناروغ په شــکایتناکه ډول وویل:- هوا ډېره ســړه ده! یاکوف کمک ور سره وکړ، د ځای نه یې پاڅاوهٔ او اور ته یې نژدې کښېناوهٔ.

اور روښـــانه لګېدۀ او بې شـــکله ســـيورو يې شـــاوخوا نيولې او د لمبو دلچسـپو لوبو ته يې سترګې اړولي وې. ساويلي د کندې پر څنډه کښېناست او د اور خوا ته يې خپل وچ او شـفاف لاسـونه اوږدۀ کړل. ربين د دۀ پلو ته اشاره وکړه او سوفيا ته يې وويل:

- دا له کتاب نه ډېره مؤثره اغېزه ښـندي! کله چې د کار په وخت کښـې مـاشـين د کـارګر لاس پرې کړي او يا هغه مړ کړي- څرګنده ده چې کارګر په خپله ملامت ښيي او دا چې وينې يې وزبېښي او د مردار لاش غوندې يې بيرته واچوي- د دې علـت پـټ ســاتـل کيږي. د هر ډول قتـل پـه علـت بـانـدې زۀ پوهېدلای شـم، لاکن دا چې د ملنډو په خاطر خلک شکنجه کوي- نه پوهېږم! ولې؟ د څه لپاره خلک شـکنجه کوي؟ د څه دپاره موږ ټول ځوروي؟ د ملنډو لپـاره، د خپـل ځان د خوښ ســاتلو لپاره. د دې لپاره چې زموږ په وينو باندې ســندرغاړي ښـځې، آســان، د ســپينو زرو چاقوګان، د سرو زرو لوښــي او د ماشومانو لپاره ګران بيي د لوبو توکي رانيســـي. ته کار کوه او ډېر کار کوه او زۀ ستا د زحمت نتيجه پسې ټولوم او خپلو معشوقو ته طلايي تحفې باندې رانيسم.

مور کتـل او غوږ يې نيولی و او يو وار يې بيـا مخ تـه د پـاول او د هغۀ د ملګرو حقه لاره د لوړو او ژورو تر منځ وبرېښېدله.

د ماښام تر ډوډۍ وروسته ټول د اور پر شاوخوا را غونډ شول، مخ ته يې اور، چې بوټي يې پـه چټکۍ سره خوړل او شـــا تـه يې تورې تيـارې ځنګل او آســمان په غېږ کښـې نيولي وو. ناروغ ســترګې خلاصـې نيولې، اور ته متوجه، مسـلسل يې ټوخل او ټول بدن يې رېږدېدۀ- تا به ويل چې د ژوند پاته برخه يې په تلوار له ځيګر نه وځي او غواړي هغه جسم چې له بدبختيو نه په نارو راغلی،

ترک کړي. د اور شغلو یې پر مخ تودوخه اچوله، ولې د هغه مړ پوست یې نه شو را ژوندی کولای، یوازې سترګې یې په خفیفه روښنایۍ سره لګېدلې.

یاکوف د ساویلي و خوا ته ځان ټیټ کړ او څنې ویې پوښتل:

- نه غواړې چې منا ته لاړ شې؟ هغه ستا لپاره ښه ځای دی.

ناروغ په تکلیف سره ځواب ورکړ:

- د څه لپاره؟ زهٔ غواړم دلته کښېنم، بې له هغه هم دومره وخت نه دی را پاته، چې د خلکو په منځ کښې واوسم.

دهٔ شاوخوا ټولو ته وکتل، خاموش شو، ضعیفه خندا یې وکړه او زیاته یې کړه:

- زهٔ ستاسې سره ډېر خوښ یم، تاسې ته ګورم او فکر کوم: ښایي دغه خلک د هغو کسانو، چې وینه یې زبېښل شوې او ژوند یې په بې رحمانه توګه تباه شوی دی، غچ واخلي...

دهٔ ته هېچا ځواب ور نه کړ، ژر خوب ونیو او سر یې د مړي غوندې پر ځیګر را کوږ شو. ربین دهٔ ته وکتل او آرام یې وویل:

- دی زموږ کره راځي او همېشه دا یو شی وایي، چې څهٔ ډول په انسانانو باندې بازۍ کیږي، لکه چې د دهٔ سترګې یې ور کښلي وي او بل هېڅ شی نهویني، د دهٔ فکر او روح یوازې همدې نقطې ته متوجه دي.

مور په فکر کښې ډوبه تللې او ویې ویل:

- کافي ده، نور نو څهٔ باید ووایي؟ دا چې هره ورځ په زرګونو خلک د اربابانو د ساعت تېري او هوس په خاطر تباه کیږي، نو له دې نه سړی پرته څهٔ ووایي؟..

ایگناتي په آرامۍ سره زیاته کړه:

- دهٔ ته غوږ نیول زړهٔ تورونکی دئ، ځکه د یوې خبرې اورېدلو لپاره یو وار کافي دی او دی ټوله ورځ همدا یوه خبره تکراروي.

ربین په ډېر آواز نظر څرګند کړ:

- دلته په یوه خبره کښې ټولې نورې ور تاو شوي دي، د دهٔ ټوله ژوند په همدې خبره کښې پروت دی، پوه شوې؟ ما لس واره د دهٔ د برخلیک حکایت اورېدلی، خو بیا هم ځینې وختونه سړي ته شک ور پیدا شي، ځکه کله کله سړی په داسې یو حالت کښې قرار لري، چې نهٔ غواړي د انسان په پستۍ او لېونتوب باور وکړي... پر ټولو باندې یې زړهٔ سوځي، شتمن دي او که غریب... شتمنو هم مختلفې لارې نیولي، د یوهٔ سترګي طلا ړندې کړي او د بل سترګې لوږې. په دې وخت کښې سړي ته دا فکر ور پیدا کیږي: اې خلکو، اې وروڼو، ځان وخوځوئ، شاوخوا وګورئ او فکر وکړئ!

ناروغ په خوځېدو راغئ، سترګې یې خلاصې کړې او پر ځمکه باندې پرېوت. یاکوف بې ږغه پاڅېد، منا ته لاړ او له هغهٔ ځای نه یې پوستینچه راوړه، پر ناروغ یې واچوله او بېرته آرام د سوفیا څنګ ته کښېناست.

د اور سور مخ پر خپل شاوخوا تور هېکلونه روښانه کول او معلومېدل، چې دوی ته د طعنې په ډول خاندي. د خلکو آوازونه د اور د ټک ټک سره ګډ وو.

سوفیا د ملتونو د مبارزې په باره کښې د ژوند د حق او آزادۍ په خاطر، د جرمني په تاریخ کښې د دهقانانو د مبارزې په باره کښې، د ایرلنډ د خلکو د بدبختیو په اړه او د فرانسې د کارګرانو د سترې اتلولۍ په باره کښې کیسه کوله.

په ځنګل کې چې شـــپې خپل تور وربښـــمين ځادر پر غوړولی وو، په کوچني ميدان کښې چې شاوخوا ګڼو ونو پوښلی او له پاسه يې تاريک آسمان ولاړ دی، د اور مخ ته او د حيرانوونکي سـيوري په منځ کښـې هغه واقعې، چې شـــتمن او حريص زړونه يې ربړدولي، بيا را ژوندۍ کېدې. د ځمکې خلک يو په بل پسـې په وينو لړلي، په مبارزوي شهامت سره تېرېدل او د آزادۍ په خاطر د مبارزو قهرمانانو نومونه يو په بل پسې اخيستل کېدل.

د ښـــځې ټيټ آواز په آرامه اورېدل کېدۀ او لکه د تېرې زمانې نه چې را روان وي، پـه لارو يې اميـدونه را ويښـــول، په خلکو کښـــې يې اعتماد او باور پياوړی کاوۀ او ټولو په پټه خوله د خپلو ورونو، چې زړۀ او روح يې د دوی سره تړلی دی، کيسـې اوريدې. دوی د ښځې و سپېرۀ او ډنګر مخ ته کتل او ورته د جهان د ســـپېڅلي او پاک ارمان او د آزادۍ په خاطر اوږده مبارزه نوره هم ډېره روښانه کېده. انسان خپلې هيلې او آرزوګانې د تېر وخت د تاريکې پردې شا ته لېرې ليـدلې. دوی د زړۀ لـه کومې د خپلو هغو ورونو سره، چې پـه تېر وخـت کښـــې يې همـدا د دوی ننني زحمـت او تکليف ګـالۍ، ځانونه يو موټي ګڼل. هغوی يې خپـل هغـه ملګري بلـل، چې لـه دوی نه يې ډېر پخوا د حقيقت د را برســـېره کولو په خاطر مبارزه او هلې ځلې شروع کړي وې او خپلې دا پريکړي يې د بې شـــمېره رنځونو پـه ګـاللو، د وينو پـه بهېـدلو د نوي ژونـد او روښـــانه راتلونکي پـه خـاطر تودې ســـاتلي وې. پـه دې ځوانانو کښـــې د ټولو پخوانيو مبـارزينو سره د روحي نژدې‌والي حس راپاڅېدۀ او د ځمکې پر مخ نوی زړۀ د تودو تعميمونو نه ډک، تر څو چې ټول ځورېدلي پر ځان را ټول کړي، زېږېدۀ.

- هغه ورځ راتلونکې ده، چې د ټولې نړۍ کارګران سر را جګ او په ټينګه ووايي: - بس ده! موږ نور دا ډول ژوند نه غواړو! هغه وخت به د حريصانو د کور زوړ دېوال ونړيږي، ځمکه به يې تر پښو لاندې سره تبې او نسکوره شي او هېڅ شی به نه وي ور پاته، چې تکيه پر وکړي.- سوفيا په باوري آواز دا ډول دوام ور کړئ.

ربين سر ټيټ او و يې ويل:

- همداسې به وي! ځان قربانۍ ته چمتو کړه، ټول بندونه به وران کړې!

مور وروځې پورته او غوږ يې نيولی، د خوشالۍ او حيرانتيا نه ډکه موسکا يې پر څېره نقش اچولې و. مور ليدل هغه شيان چې په سوفيا کښې زښت او اضافي ښکارېدل، ټول له منځه تللي، لکه د دې د خبرو په تاوده او هموار اور کښې چې ډوب شوي وي. د شپې خاموشي، د اور زوږ، د سوفيا څېره او د ټولو نه زيات د بزګرانو جدي دقت او توجه مور ته ډېره په زړهٔ پورې وه. بزګران بې حرکته ناست وو، کوښښ يې کاوهٔ چې د سوفيا د خبرو د آرام جريان په مخ کښې خنډ و نه ګرځي او نه يې غوښتل، هغه روښانه تار چې دوی يې د جهان سره وصل کړي دي، وشليږي. يوازې کله کله به يوه له دوی څخه پر اور بوټي اچول او کله چې به د اور دود يا بڅرکی، چې به د ښځو خوا ته پرېدل، هغه به يې په هوا کښې د لاس ښورولو په واسطه له دوی نه شړل.

يوه پلا ياکوف پاڅيد او په آرامه يې خواهش وکړ:

- يوه دقيقه صبر وکړئ...

او منا ته يې منډې کړې، د هغه ځای نه يې کالي راوړل او د ايګناتي په کمک يې په پټه خوله د ښځو پر پښو او اوږو باندې واچول، تر څو چې د يخ

نـه يې وسـاتي. سـوفيـا بيا په خبرو شروع وکړه، د بري ورځ يې را تمثيلوله، په خلکو کښې يې پر ځان باندې د اعتماد حس پاځاوۀ او په دوی کښې يې د ټولو هغو کسانو سره چې ژوند يې د پرازيتانو د هوس په خاطر له منځه تلونکی دی، د يو موټي کېدو زړۀ را ژوندی کاوۀ. د سـوفيا خبرو مور په تشـويش کښـې نۀ اچوله او دا چې پـه ټولو کښـې يې د ملګرو تر منځ پر سـخته لار بـانـدې د همدردۍ حس را پورته کړی و، ډېره خوښه وه. سترګې يې پټې نيولې او په فکر کښې يې دا دعا وکړه: «خدايه، کمک دې غواړم!»

د سـهار خوا ته سـوفيا ستړې او په پټه موسـکا سره يې پر خپل شـاوخوا باندې روښانه څېرو ته وکتل.

- اوس بايد مورې لاړې شو!- مور ياده کړه.

- بايد!- سوفيا په ستړي آواز تائيد کړه.

يوه له ځوانانو څخه په لوړ برغ سره آه وکېښ.

ربين په نرم آواز چې بالکل عادي نه و، وويل:

- افسـوس چې رواني ياسـت. تاسـې ډېرې ښـې خبرې کوئ. د انسـانانو ترمنځ د دوستۍ اړيکو ټينګول يو ستر کار دی! کله چې سړی پوه شي چې د ځمکې پـه مخ پـه مليونو انســانـان هم هغـه څـه غواړې، چې مورې يې غواړو، سمدستي زړۀ نرم او مهربانه کيږي او په مهربانۍ کښې لوی ځواک پټ دی.

يفيم په چټکۍ سره پاڅېد او په خندا سره يې وويل:

- هر څومره چې مهربـانـه اوســې، ځواب يې قهر غواړه. ميخـائيل کاکا، دوی بايد لاړې شي، تر څو هېڅوک يې و نه ويني. کتابونه بايد وويشـو، ځکه

ښـايي حکومتي مامورين راشي او کور ولټوي، در نه و به پوښتي، چې لۀ کومه دې کړل؟ او کوم چا ته به ور په ياد شي، چې دوې ښځې راغلي وې...

ربين د يفيم خبرې پرې کړې او ويې ويل:

- پلاګيا، ستا له زحمتونو څخه مننه! کله چې تاته ګورم، زۀ همېشه د پاول په فکر کښې يم. تا ځان ته ډېره ښه لاره انتخاب کړه!

دۀ په مهربانه لهجه خبرې کولې او په خوښۍ سره يې خندل. هوا لږ سړه غوندې وه، ولې په يوه کميس کښې لۀ خلاص ګرېوان او بربنډ ځيګر سره ولاړ و. مور د دۀ و ځواکمن هېکل ته وکتل او په شفقت سره يې مشوره ور کړه:

- کوم شی واغونده، يخ دی!

- زړۀ مې ګرم دی او جسم ته مې تودخه ور کوي.- هغه ځواب ور کړ.

درې ځوانانو، چې د اور څنګ ته ولاړ وو، کراري خبرې کولې او پښـو ته يې ناروغ په پوستينچه کښې پېچلی پروت و. آسمانه روښانه کېدۀ او سيوري يې خفيفه کول، پاڼې د لمر په تمه په ښور راغلي وې.

ربين د سوفيا لاس کښېکښود او ويې ويل:

- د خدای په امان! په ښار کښې تاسې سړی څۀ ډول پيدا کولای شي؟

- ته اول هلته ما لټوه!- مور ځواب ور کړ.

ځوانـان په ډله و سـوفيا ته راغلل په ډېر درناوي يې د هغې لاس ونيو. د ټولو په څېرو کښـې د خوښـۍ، ممنونيت او دوستۍ حس، هغه حس چې دوی هم لومړی ځل په ځان کښې ليد، ښکاره کېدۀ. دوی په موسکا او خوبجنو سترګو د سـوفيا مخ ته کتل، چې کله به يې پر يوه پښـه او کله به يې پر بله پښـه تکيه کوله.

- نۀ غواړئ چې له تگ وړاندې شيدې وڅښئ؟- ياکوف پوښتنه وکړه.

- شيدې نورې هم پاته دي؟- يفيم ور ياده کړه.

ايگناتي پر ويښتانو لاس تېراوۀ او ويې ويل:

- نشته! څۀ چې پاته وې، ما توی کړې...

او درې واړه په خندا شول.

خبرې د شـيدو په باره کښې روانې وې، ولې مور حس کوله چې دوی د بل شي په فکر کښې دي.- بې کلماتو په زړۀ کښې سوفيا او دوی ته د بريالیتوب او نېکمرغۍ هيله کوي. سـوفيا هم د ځوانانو له څېرو نه دا حسوله او پر دې يې دومره تاثير کړی و، چې اضافي يې هېڅ نه شول ويلای، بې لۀ:

- مننه، ملگرو!

دوی يو بـل ته وکتل، لکه دې کلمې چې دوی ته يوه نرمه ټېله ور کړې وي، سره وخوځېدل.

د ناروغ ټوخی واورېدل شو. د اور سکارۀ په خاموشه کېدو وو.

- د خـدای پـه امان!- بزگرانو په نيم آواز وويل او دې له خفگان نه ډکې کلمې د ډېر وخت لپاره ښځې بدرگه کولې.

دوی بې له عجلې د سـهار په خړه کښې په ځنگل کښې روانې وې. مور چې د سوفيا شاته تله، ورته يې وويل:

- ډېره خوشـــالـه يم، فقط لکـه خوب چې وينم. خلـک غواړي چې پـه حقيقت خبر شي. همدا اوس آرامه فضا ما ته کليسا را په يادوي... د لوی جشن په ورځ سـهار وختي... کشـيش لا نه وي را رسـېدلی، تيارې او خاموشـۍ فضـا

نیولې، ولې خلک ټولیږي او شمعې لګوي، په دې ډول هم کلیسا توده او هم د خدای کور روښانه کیږي.

سوفیا په خوښۍ سره ځواب ور کړ:

- ســتا خبره ټیک ده، ولې دلته د خدای کور ټوله ځمکه ده او روښــانه کیږي.

مور سر ښوراوۀ او په متفکرانه انداز یې وویل:

- ټوله ځمکه! دا خو ډېر ښــه دئ، خو په ســختۍ باور کیږي. او ګرانې سـوفیا، تاسـې ډېرې ښـې خبرې کولې، مګر زۀ بېرېدم، چې تاسـې به د دوی پر زړۀ برابره را نه شئ....

سوفیا په آرامه او بې له خوښۍ ځواب ور کړ:

- د دوی سره سړی ساده کیږي...

دوی روانې وې. د ربین، ناروغ او ځوانانو په باره کښـې، چې د یوې خوا ډېر خاموش او د بلې خوا یې خپل دوسـتانه ممنونیت د ښـځو په هکله د سـاده پـاملرنې لـه لارې ډېر ښــۀ څرګنـداوۀ، خبرې کولې او د ځنګـل نـه میدان ته را ووتې. مخـامخ لمر راختئ، چې تر اوســه لا نه لیدل کېدی، خو خپلې سرې او ګلابې رنګه وړانګې یې هر پلو ته خپرې کړې. د شــبنم قطرو د وښــو پر مخ د خوښــۍ نه ډکه رنګارنګ ځلا ور کوله. مرغان را ویښ شـول او په خپلو آوازو یې ســهار را ژوندی کاوۀ. غټو غټو کارګانو په لوړ آواز قاغ - قاغ درلود، درانده وزرونه یې په تکلیف ښــورول او په الوتو یې پیل وکړ. چیرته لیري ســوریانګه شـپیلکی کاوه. لیري واټونه روښــانه کېدل او د لمر په راتلو شـپې د غونډیو نه خپلې تیارې ټولولې.

مور په فکر کښې تللې وه او ويې ويل:

- ځينې وختونه ګورې، چې يوکســډېر خبرې کوي، ولې په هدف يې نه پوهېږې. خو کله چې کوم ســاده کلمات پيدا کړي، کېداى شي چې په همدې يوه کلمه باندې ټوله مطلب روښانه شي. دا ناروغ همداسې دى. ما ډېرې خبرې واورېدې او پوهېږم چې څهٔ ډول کارګران په فابريکو او هر ځاى کښــې تر فشار لاندې دي، ولې د دې سره د وخت په تېريدو سـړى عادت نيســـــي او اصـلي موضوع ته نه متوجه کيږي. اما د ناروغ خبرې سړى راساً هدف ته رسوي. آيا دا د زغم وړ ده چې ټول عمر کار کوه، تر څو چې د بادارانو د ساعت‌تېرۍ وسايل ورته چمتو کړې؟

د مور فکر يو دم پر يوه واقعه باندې ودرېد او مور ته يې په احمقانه ډول ټولې هغه موضوعګانې، چې مور پخوا ليدلي او ترې هېرې شوي وې، ور يادې کړې.

- معلوميږي چې دا شـتمن خلک هر ډول پستۍ ته تيار دي. ما د سيمي يوکسـآمر ليدلی و، چې ټول خلک به يې مجبورول، تر څو د دهٔ و آس ته، کوم وخـت چې به يې په کلي کښـــې چکر ور کاوهٔ، سر ټيټ او درناوی وکړي. که چېرې بـه کوم چـا له دې سر غړاوهٔ، بندي کاوهٔ به يې. نه پوهېږم چې دهٔ ته دې کار څهٔ ګټه درلوده؟ هېڅ نه پوهېږم!

سـوفيا په نرم آواز يوه سندره، چې د ګهيځ غوندې زړهٔ وړونکې وه، پيل کړه.

«۷»

د مور ژوند په یوه عجیبه آرامتیا کښې تېرېدهٔ، چې ځینې وختونه دې آرامتیا په خپله پلاګییا هم په حیرت کښې اچوله. زوی په بندي‌خانه کښې ناست او دا پوهېدله، چې سخته جزا ورته په تمه ده. هر وخت چې به یې په دې باره کښې فکر کاوهٔ، حتماً به یې آندري، فیدور او یوه ډله نور د پاول ملګري هم و مخ ته درېدل. د زوی هېکل ټول خلک چې برخلیک یې د دهٔ په شان و، په ځان کښې ګډول. د پاول په باره کښې د مور فکر همېشه هر پلو ته خپرېدهٔ او یوه ډېره پراخه ساحه یې په غېږ کښې نیوله او هرې خوا ته یې نرئ وړانګې رسیدلې، د ټولو سره یې اړیکه نیول او غوښتل یې چې په یوه ځای کښې ټول را غونډ کړي او په دې ډول مور نه شوای کولای، چې د فکر ځواک ټوله په یوه پاول کښې راغونډه او د راتلونکي څخه یې په وېره او غم کښې واوسي.

سوفیا ډېر ژر کوم ځای ته ولاړه، پنځه ورځي وروسته ډېره خوښه او بیداره راغله، خو څو ساعته وروسته بیرته ورکه شوه او دوې اونۍ وروسته بیا را ښکاره شوه. داسې معلومېدل، چې د ژوند ساحه یې ډېره پراخه ده او تنها کله کله د ورور کور ته راځي، چې په خپل لطافت او موزیک سره یې ډک کړي.

موزیک د مور لپاره ډېر زړهٔ وړونکی وګرځېد، د موزیک په اورېدو سره یې دا حس کاوهٔ، چې تاودهٔ موجونه یې په سینه کښې څپې وهي او په زړهٔ کښې یې توئیږي او په دې ډول د فکر تخمونه په هغه کښې د نرمې او مرطوبې ځمکې په شان په آسانۍ سره وده او ښکلي ګلونه کوي.

مور په هېڅ ډول نه شـول کولای، د سوفیا له بې احتیاطۍ سره، چې هرې خوا ته به یې خپل کالي، د سګریټو ایرې او نور شیان غورځول، ځان پخلا کړي او لـه هر څـۀ نـه زیات د هغې توندو ویناګانو خوند نه ورکاوۀ- دا ټول شـــیان د نیکولای د نرم او جدي وضعیت او پوره اعتماد پر اړخ هغه نقطې وې، چې مور یې ځوروله. سوفیا مور ته د هغه ماشوم په څېر معلومېده، چې همېشه بېړه کوي، تر څو ځـان لوی وښـــيي او خلکو ته د عجیبو بازیچو په ډول وګوري. د کار د پاکۍ او ســـپېڅلتیا په هکله یې ډېرې خبرې کولې او په خپلې بې احتیاطۍ سره یې د مور تکلیف ور زیاتاوۀ؛ د آزادۍ په باره کښې به یې وینا کوله او همېشه به یې د خپلو ډېرو مباحثو له امله د خلکو د زحمت لامل ګرځېدله. په دې کښـــې ډېر متضاد اړخونه وه او مور د دې عمل په لیدلو سره همېشه کوښښ کاوۀ، چې د دې په مقابل کښـــې بااحتیاطه او جدي واوسي. هغه مینه چې نیکولای د مور په زړۀ کښـې پیدا کړې وه، سـوفیا و نه شول کړای، چې مور ته په همدې اندازه محبوبه وګرځي.

نیکولای همېشه پام کاوۀ، ټول ژوند یې په پروګرام وړاندې وران ۇ؛ سهار به یې پر ۸ بجو چای څښـــلې او د اخبار تر لوســـتو وروســـته به یې مور ته نوي خبرونه ویل. مور په نیکولای کښې د آندري سره ډېر شباهت لیدۀ. همېشه یې د آندري په څېر د خلکو په باره کښې بې له کومې کینې خبرې کولې او هغه ټول یې د موجوده ژوند په ګډوډۍ کښې ګنهګار بلل، اما ایمان یې د راتلونکي ژوند په هکله د آندري په شـان ګرم او روښانه نه و. دۀ هر وخت په آرامه لهجه، چې آواز یې پاک او با وجدانه قاضي ته ورته و، خبرې کولې؛ حتی هغه وخت چې به یې د لویې وحشـتناکې موضوع په هکله توضیحات ور کول، بیا به یې هم له

زړۀ سوي سره، نرۍ موسکا پر شونډو درلوده، ولې د سترګو برېښنا به يې سړه او جدي معلومېده. د ده د سترګو له ځلا نه مور پوهېدله، چې دا سړی به هېڅ کله چا ته عفوه و نه کړي او هېڅ وخت هم بخښــنه نه شي کولای. مور حس کول چې دا متانت او ټينګار تر کومې اندازې د نيکولای لپاره ګران پرېوځي، ځکه يې ډېر زړۀ باندې سوځېدۀ. نيکولای دې ته په زړۀ کښې ډېر ګران و.

پر نهو بجو به نيکولای کار ته تلۀ او پلاګېيا به کوټې جارو کولې، د غرمې ډوډۍ به يې تياروله، لاس او مخ به يې پرېمينځۀ او پاکې جامې به يې اغوستلې او په خپله کوټه کښې به کښېناسته، د کتابونو عکسو ته به يې کتل. مور په دې وخت کښې لوست هم زدۀ کړۀ وو، ولې د لوستلو په وخت کښې ډېره په تکليف وه، ژر به ستړې کېده او په دې ډول به يې د کلماتو تر منځ اړيکه ورکوله او مفهوم به ترې ورک شو. د عسکونو ليدل د ماشومانو غوندې د دې ډېر خوښ و، په عکسونو کښې دې نوې نړۍ په ډېره روښانه او ساده توګه ليدلای شوه. په عکسونو کښې به دې لوی ښارونه، ښکلي تعميرونه، موټران، کښتۍ، تاريخي ودانۍ، د خلقو د زيار په واسطه لاس ته راغلي نه خلاصېدونکي شتمنۍ او د طبعيت ښکلا ليدله. د مور ژوند پراخوالی پيدا کاوۀ؛ هره ورځ نوي، مجهول، افسانه ډوله او دلچسپ اړخونه د دې په ژوند کښې ور زياتېدل او د خپلو هغو بې پايه شتمنيو او ښکلاګانو په واسطه يې د دې ورۍ روح نور هم ويښاوۀ. دې د زولوجۍ د اطلس پنډ کتاب خصوصاً ډېر کتۀ، که څه هم دا کتاب په يوه بهرنۍ ژبه ليکل شوی و، خو بيا يې هم د نړۍ شتمني، ښکلا او پراختيا په ښۀ ډول څرګندوله.

يوه ورځ يې نيکولای ته وويل:

- ځمکه ډېره غټه ده!

له هر شي نه چې زيات د مور خوښ وو، هغه د پروانو رســمونه وو، دې په ډېرې خوښۍ او دقت سره هغه کتل او ويل به يې:

- نيکولای ايوانوويچ، دا څومره ښــکلي دي، بلې؟ پـه دې نړۍ کښـــې څومره ډېره ښکلا شته او ټوله زموږ له سترگو پټه، بې له دې چې و يې وينو، رانه تېرېږي. خلـک ټولـه ورځ يو پلو بـل پلو ځغلي، له هېڅ شي څخه خبر نه دي، هېڅ شي ته زړۀ نه شـي ښۀ کولای او د دې کار لپاره نه وخت او نه لېوالتيا لري. خلکو به څومره خوند ترې اخيســتی وای، که چېرې خبر وای، چې ځمکه ډېره غني ده او ډېر حيرانوونکي حېوانـات ژوند ور باندې کوي. ټول د ټولو لپاره او هر يو د هر شي لپاره... بلې نيکولای؟

- بلې، بالکل همداسې ده! نيکولای دا په موسکا سره وويل او نور کتابونه به يې د رسمو سره د مور مخ ته راوړل.

د شپې له خوا دوی ته معمولاً ډېر ميلمانه راتلل، لکه: الکســي واسيلويچ، ښـکلی سـړی، د تورې ږيرې او پرېدلي رنگ سره، جدي او پټ خولی؛ رومان پتروويچ د خپل گردي سر سره چې همېشـــه به يې په ډېر زړۀ ســـوي شـــونډان ښورول؛ ايوان دانيلوويچ ډنگر، ووړ، د تېز نوکي ږيرې او نري آواز سره، جدي، دلاوره او چالاکه؛ ايگور چې همېشـه به يې پر ځان، ملگرو او پر خپلې ناروغتيا باندې ملنډې او مسـخرې کولې. برسېره پر دوی ځيني نور خلک، چې د کومو لېرې ښـارو نه به راتلل، هم ځيني وختونه د ميلمنو په ډله کښــې وو. نيکولای د دوی سره همېشــه اوږدې او آرامي خبري کولې، چې د مجلس موضــوع به يې اکثره وختونـه د نړۍ د کـارگرانو پـه باره کښـــې وه. بحث بې يې کاوۀ، تاودۀ او

جدي به شول او لاسونه به يې خوځول، چاى به يې ډېرې څکلې، ځينې وختونه به نيکولاى د بحث او مجلس په ترځ کښې کوم شى ليکل، چې وروسته به يې خپلو ملګرو ته لوستل، هغو به سمدستي په څرګند خط سره نقلول. مور د چټل نويس کاغذونو ټوټې په دقت سره ټولولې او سوځولې به يې.

پلاګېيا به دوى ته چاى اچولې او د دوى د بحث د ګرموالي نه، چې د کارګرانو د ژوند او راتلونکي په باره کښې به يې کاوۀ، چې څه ډول بايد په دوى کښې د راپاڅېدو روح وېښ او ژوندى کړل شي، په حيرانتيا راغلې وه. دوى به اکثراً په سخته لهجه يو پر بل تنقيد کاوۀ، يو بل موافقه نه سره کوله، يو د بله نه خفه کېدل او بيا به يې هم بحث ته دوام ور کاوۀ.

مور فکر کاوۀ، چې دا د کارګرانو په ژوند باندې نسبت و دوى ته ډېره ښه پوهېږي او ورته معلومېدل، چې د دوى د کار په اهميت باندې هم ښه پوه ده، ځکه يې نو دوى ته د احترام او حتى زړه سوي په سترګه لکه لويان چې يې ماشومانو ته لري؛ کتل؛ هغه ماشومان چې په خپلو لوبو کښې د مايني او مېړۀ رول ترسره کوي، ولې په خپله د دې ډول مناسباتو په رښتيني ډرام باندې خبر نه دي. مور د دوى خبرې بې آرادې د زوى او آندري له خبرو سره مقايسه کولې او هغه توپير يې حس کړ، چې په اول کښې دا په خبرو باندې نه شوه پوهېدلاى. دې ته داسې برېښېدل، چې دلته خلک نسبت د دوى محلې ته په ډېر جګ آواز سره خبرې کوي او علت به يې داسې څرګنداوۀ:

«خبرې ډېرې جګې کوي- ځکه چې ډېر پوهېږي...»

ډېر وختونه به مور ته داسې معلومېدل، چې دا خلک قصداً يو بل پاروي او د ځان ښودنې لپاره ګرمېږي، هر يو غواړي ثابته کړي، چې د دۀ لپاره حقيقت

نســبـت و ټولو نورو تـه نژدې او محترم دی، نور به له دغه حالت څخه نه خفه کېدل او هغو به هم په خپل نوبت سره کوښــښ کاوهٔ، چې خپل ځانونه پر حق وښيي. له داسې حالت څخه به شديد او سخت بحث شروع شو. هر يوهٔ غوښتل چې لهٔ بل نه لوړ ټوپ ووهي. مور به له دې فکره په تشـويش کښـې لوېده. دې به سترګې پورته کړې، په عاجزانه ډول به يې ټولو ته وکتل او فکر به يې کاوهٔ:

«دوی لکه چې پاول او د هغه ملګري هېر کړي...»

و مبـاحثو تـه چې نـهٔ هم بـاندې پوهېده، همېشــه په دقت سره متوجه او اورېدل به يې او هلته يې يوازې احســاســات لټول. دې ليدل چې هر کله به په کلي کښـــې د نيکۍ پـه هکلـه بحـث کېدهٔ، هغه به يې په مجموعي ډول په نظر کښــې نيول، اما دلته يې ټوټه ټوټه کوي، هلته خلکو په ژوره توګه احســاســول، دلتـه د قـاطع افکارو ميدان دی، چې ټول شـــيان پارچه پارچه کوي. دلته د زاړهٔ جهـان د له منځه وړلو په هکله خبرې کوي، اما هلته خلکو د نوي جهان په باره کښې فکر کاوهٔ، ځکه نو د زوی او آندري په خبرو باندې ډېره پوهېده...

مور ليـدل چې هر وخت نيکولای ته کوم ملګری کارګر را شي، دهٔ به په غيرعادي او نرمه لهجه خبرې ور سره کولې او پلاګېيا په دې باره کښــې داســې فکر کاوهٔ: «کوښښ کوي چې په خپلو خبرو باندې يې وپوهوي».

ولې دې فکر مور د تشــويش څخه نه خلاصــوله، ځکه دې همدرانګه ليـدل، چې کـارګر به په ډېر تکليف سره لکه ژبه چې يې ور تړلې وي، يوه يوه خبره له خولې نه ايسـتله او په هغه ډول چې به يې د دې؛ يعنې ساده ښځې سره خبرې کولې، د نيکولای سره يې نه شوای کولای.

یوه ورځ کله چې نیکولای له کوټې ووت، مور یوه مېلمهٔ ته چې هلته په کوټه کښې پاته و، وویل:

- ته ولې شرمېږې؟ لکه ماشوم چې امتحان ور کوي...

هغه په خندا شو او و یې ویل:

- عادت نه ور سره لرم... هر څهٔ چې وي، بیا هم خپل سړی نه دی...

کله کله ساشېنکه هم راتله، هېڅ وخت به ډېره نهٔ پاتېدله او یوازې به یې د کارونو په هکله خبرې کولې، د خندلو عادت یې نهٔ درلود، هره پلا چې به وتله، له مور څخه به یې پوښتنه کوله:

- د پاول میخائیلوویچ نه خبر لرې؟ صحت یې ښه دی؟

- شکر، ښه دی، خوشاله دی!

- زما سلام ورته ورسوئ!- نجلۍ به دا وویل او ولاړه به.

ځینې وختونه به مور دې ته شکایت کاوهٔ، چې پاول یې ډېر وځنډاوهٔ او د محاکمې ورځ نه ټاکي. ساشېنکې به تندی تریو ونیو، غمجنه به شوه، خبرې به یې نهٔ کولې او لاسونه به یې رېږدېدل.

نیلوفنا غوښتل، چې دې ته ووایي:

«گرانې، پوهېږم چې مینه ور سره لرې، پوهېږم...»

اما د ویلو توان یې نه درلود. د نجلۍ جدي څېرې، وچو شونډو او سړو خبرو دا ښودله، چې له هر ډول ناز نه پرهېز لري. مور سړه ساه وکښله، په پټه خولهٔ یې لاس د دې و خوا ته اوږد او د هغې لاس یې ټینگ کړ او په دې فکر کښې وه:

«بېچاره، توربختې...»

يوه ورځ ناتاشــا ورغله، د مور په ليدو ډېره خوشــاله شــوه، څو واره يې ښکل کړه او د نورو خبرو په ترڅ کښې يې خبر ور کړه:

- زما مور مړه شوه... بېچاره مور مې!

سر يې وښـانده، په چټکۍ يې خپل لاس پر ســترګو تېر کړ او زياته يې کړه:

- زما زړۀ ډېر پســې ســوځي، بېچاره تر اوســه پنځوس کالو ته هم نه وه رســېدلې او حق يې درلود، چې نور ژوند هم وکړي او له بله طرفه چې ســړی وګوري، بې ارادې په دې فکر کښــې لويږي، چې له دې ژوند نه خو مرګ هم ورته ښــه و. همېشــه تنها، ټولو ته بېګانه، هېڅوک يې خپل نه درلود او د پلار د نارو او ګواښونو له لاسه ستومانه شوې وه- آيا دا ژوند و؟ ژوند هغه وخت په کار دی، چې د کوم ښۀ شي په تمه اوسې، اما دې بې له ترټنې نه د بل هېڅ شي تمه نه شوای درلودلای. آيا دا ژوند دی؟

- بلې، تاســې رښــتيا واياســت، ناتاشــا!- مور دا وويل او په فکر کښــې ولوېده:- ژوند هغه وخت ژوند دی، چې د کوم ښـۀ شي په تمه اوسې، بې هيلې به څۀ ژوند وي؟

د ناتاشا پر لاس باندې مور په مينه سره خپل لاسونه تېر کړل او ترې و يې پوښتل:

- پس له دې يوازې ژوند کوې؟

- يوازې!- په آرامۍ يې ځواب ور کړ.

مور چوپه شوه او ناڅاپه يې په موسکا سره وويل:

-پروا نه لري! ښۀ خلک يوازې نه پاتېږي، همېشه يې دوستان ډېر وي.

«۸»

ناتاشا د نساجۍ په یوه فابریکه کښې د ښوونکي په توګه کار وموند او پلاګیا به هلته منع شوي کتابونه، پاڼې او اخبارونه ور وړل. پس له دې همدا د مور اساسي کار وګرځېد. دا به هره میاشت څو واره د روحاني ښځې، د لاسي ټوکرانو خرڅوونکي، د بډایې ښځې او یا د فقیرې مسافرې ښځې په جامه کښې، پیاده او یا د ریل په واسطه، خورجین په شا او یا بکس په لاس پر ولایاتو ګرځېدله. په واګون او کښتۍ، مهمانخانه او مسافرځای کښې به یې ډېره ساده او ارامه وضع درلوده، د نااشنا خلکو سره به یې په خپله خبرې پیل کولې. د خپلو مهربانو او ښکلو خبرو په واسطه به یې، چې باوري لهجه یې یوه ډېر تجربه کاره انسان ته ورته وه، په اسانۍ سره کولای شوای، چې د خلکو اعتماد او توجه ځان ته ورخپل کړي.

د خلکو سره خبرې او د هغو د ژوند په هکله د دوی کیسې، شکایتونه او ستونزي اورېدل، مور ته ډېر په زړهٔ پورې و. هر کله چې به مور د خلکو نارضایت، کوم چې د برخلیک د ګوذارو په مقابل کښې اخطار ور کاوهٔ، کوم چې په بیړه سره ټولو هغو پوښتنو ته چې له پخوا نه یې په ماغزو کښې ټول شوي وو، ځواب غوښت، مشاهده کاوهٔ، ډېره خوښه وه. د دې په مخ کښې د انسانانو له ستونزو د ډک ژوند منظره، چې هر چېرې یې د خلکو د بې‌شرمانه خطا ایستلو، وینې زبېښلو او د ځان په ګټه د هغه کارولو سخت تلاش پکې څرګند وو، په پراخ ډول غوړېدل؛ مور د ځمکې پر مخ ټول شیان په پراخه پیمانه لیدل، خو بیا هم خلک د دا ډول شتمنیو پر شاوخوا وږي ګرځېدل. په ښارونو کښې

کليساوې له سرو او سپينو زرو نه، چې د خدای هېڅ هم په درد نه خوري، ډکې او پر شــاوخوا يې خواران لـه لوږې رېږدېـدل او پـه دې تمـه بـه ولاړ وو، چې ګوندي کوم څوک د مسو کوچنۍ سکه په لاس کښې ور کښېږدي. مور پخوا هم شـتمنې کليسـاوې، د کشـيشـانو په طلا اوبدلي جامې او د بې وزلو د لوږې نـارې او تپېـدنه ليدلې وه، اما هغه وخت دا ورته يو طبيعي کار ښــکارېدهٔ، ولې اوس ورته نهٔ پخلاکېدونکی دی او دا يې د هغو بې وزلو په هکله، چې نسبت و بډايانو ته کليسا د ځان لپاره نژدې او ضروري ګڼي، لوی سپکاوی او ترټنه بلل.

د مسـيح د تصـويرونو له مخې او د هغو کيسو له رويه چې دې اورېدلې وې، پوهېدله چې مسـيح د بې وزلو دوسـت او ساده جامې يې اغوستلې. اما هر کله چې به يې په کليسا کښې کشيشان په بې‌شـرمانه ډول په طلايي او وريښمينو جامو کښــې ليدل، کومو چې به هغو بې وزلو ته، چې د مســيح کور ته د خپل تسليت لپاره راغلي، په سپکه سترګه کتل، بې ارادې به د ربين دا جمله ور په ياد شوه:

«حتې له خدای څخه هم زموږ د غولولو لپاره کار اخلي!»

بې لـه دې نـه چې پـه خپله ورته متوجه وي، د مور عبادت لږېدهٔ، ولې د مسـيح په باره کښې او د هغو کسـانو په باره کښــې چې هېڅ يې مسيح په ياد نه دی، فقط لکـه چې نوم يې ورتـه آشــنـا وي، ډېر فکر کـاوهٔ. مور تـه داســې معلومېدل، چې ګواکې د مسيح د وصيت سره سم ژوند کوي او د دهٔ په ډول يې فکر کاوهٔ، چې ځمکه د بې وزلو سـلطنت دی او غوښـتل يې چې ټوله شـتمني يې د هغو تر منځ ووېشـي. په دې باره کښې به د مور فکر ډېر ژور ولاړ، تر هغه چې به سترګو ليدنه کوه، ټول به يې په غېږ کښې ونيول، پاکې هيلې به يې په زړهٔ

کښې وګرځېدې او د اور په شان به یې ټول تاریک جهان روښانه کړ، چې ټول ژوند او ټول خلک به خوښ پکښې اوسېدل. مسیح، چې مور به همېشه د مغلق احساس په واسطه، چېرې چې به وېره د امېد او مهربانۍ له خفګان سره پکښې ترلې وه، مینه ور سره درلوده، اوس ورته ډېر نژدې او بلکل بل شخصیت وګرځېد، چې لۀ پخوا نه ډېر څرګند او په روښانه څېره سره ورته معلومېدۀ، لکه چې په خپله ژوندی شوی او د هغو وینو په واسطه، چې خلکو د دۀ پر نامۀ قربان کړي، پاک مینځل شوی وي. هر کله چې به مور له سفرونو څخه نیکولای ته را ګرځېدله، د هغه څۀ نه چې اورېدلي او لیدلي به یې وو، ډېره خوښه او دا چې وظیفه یې په بریالیتوب سره پای ته رسولې وه، رضایت به یې ښکاره کاوۀ.

د شپې لۀ خوا به یې نیکولای ته ویل:

- دا څومره خوند لري، چې انسان هرې خوا ته وګرځي، ډېر شیان ووینې او مشاهده کړي، چې ژوند څومره اړخونه لري. وینې چې خلک له ژوند څخه شړل کیږي، سپکاوی یې کیږي او تر پښو لاندې کیږي، ځکه نو که غواړي یا نه غواړي په دې فکر کښې لویږي، چې ولې؟ پر څه شي باندې زۀ شړل کیږم؟ هر شی څومره ډېر، خو زۀ ولې وږی پاته یم؟ ټول جهان له عقله ډک او زۀ ولې د جهالت په تیارو کښې اوسم؟ هغه مهربانه خدای، د کوم چا لپاره چې بډای او خوار یو ډول او ټوله دۀ ته د خوږو اولادونو په شان دي، چېرته دی؟ دا ټول شیان دي چې خلک په شکایت راولي او که د ځان په باره کښې فکر و نه کړي، ژوند به یې له تباهۍ سره مخامخ شي.

د مور ډېر زړهٔ غوښتل، چې خلکو ته په خپله ژبه باندې په ژوند کښې بې عدالتئ وښـــايي او ډېر وختونه به يې دا غوښـــتنه په ځان کښـــې نه شـــوه غلې کولای...

ځينې وختونه چې به نيکولای د عکســـونو د ليدلو په وخت کښـــې مور مشـــاهده کوله، حيرانونکي کيســـې به يې ورته شروع کړې چې دا به په حيرانتيا کښې راتله او د نيکولای نه به يې پوښتل:

- آيا دا شونې ده؟

نيکولای به په باوري او مطمئنه لهجه سره، چې مهربانه ســـترگو به يې تر عينکو لاندې د مور مخ ته کتل، د راتلونکي په باره کښې کيسه کوله:

- د انسان هيلي اندازه نه لري، ځواک يې له حده تېر دی. خو بيا هم نړئ د شعور له خوا په زحمت سره شتمنه کيږي، ځکه چې اوس هر يو د خپل ځان د آزادئ په خاطر غواړي، چې د پوهې پر ځای پيســې را ټولې کړي. نو هر کله چې انسان حرص له ځانه لېرې او د جبري کار له بنده خلاص شي...

مور د نيکولای د خبرو پـه مفهوم لږ پوهېده، لاکن هغه احســـاس چې د روښانه ژوند ارمغان يې ور سره درلود، مور په اسانئ حسولای شو.

نيکولای به ويل:

- د ځمکې لويه بدبختي همدا ده، چې هلته د آزادو خلکو شـــمېر بېخي لږ دی!

دا خبره بـالکل ځرگنده وه، ځکه مور ځينې کســـان پېژندل، چې ځانونه يې د حرص او کينې لـه لومې خلاص کړي او پوهېـدلـه چې که دا ډول خلک ډېر شي، د ژوند تور او وېروونکی مخ به روښانه او لطيف وگرځي.

نیکولای په ویرجنه لهجه نظر ښکاره کړ:

- انسان مجبوراً باید بې رحمه اوسي!

مور د سر په اشــاره سره دا خبره تصــدیق او د آندري وینا یې ور په یاد شوه.

## «۹»

یوه ورځ نیکولای د همېش خلاف له کار څخه ډېر ناوخته کور ته راغی، ډېر مغشـوش او بې له دې چې بالاپوښ وباسي، لاسونه یې موښل او مور ته یې په بیړه سره وویل:

- نیلوفنا، پوهېږې چې نن زموږ یو ملګری د زندان نه تښـتېدلی او دا چې کوم یو دی، و مې نه شول کړای چې پوره معلومات تر لاسه کړم.

د دې خبرې پـه اورېـدو سره مور د ولولو څپو وښــورولـه، پر څوکۍ کښېناسته او په زمزمه یې وپوښتل:

- شونې ده، چې پاول وي؟

نیکولای اوږې پورته کړې او ځواب یې ور کړ:

- ښایي، نو څنګه باید دی پیدا او پټ کړل شي؟ زهٔ اوس په کوڅو کښې ګرځېدم چې ښــایي په مخه راشي، که څهٔ هم دا بې احتیاطي ده، اما باید اقدام وشي، او باید ولاړ شم و....

- زهٔ در سره ځم!- مور نارې کړې.

- تاسې د ایگور کره ولاړه شئ او پوښتنه وکړئ، چې هغه کوم څه نه دي اوریدلي؟- نیکولای دا وړاندیز وکړ او په خپله ووت.

مور سرتړونی پر سر واچاوۀ او لـه امیـده په ډک زړۀ په نیکولای پســې ووتله. سـترگو یې بریښ کاوۀ او زړۀ یې په ټپېدو وو، غوښتل یې چې د تگ پر ځـای وځغلي. دا روانه وه او هېڅ شی یې شـاوخوا نه لیدی. یو دم یې کوچنۍ هیلي زړۀ ور وښوراوۀ:

«ور ځم او دی به هلته وي!»

هوا گرمـه او دا ډېره سـتړې وه، هر کلـه چې د ایگور د کور زینو تـه را ورســیدلـه، ودرېده او د مخ ته تگ ځواک یې نه درلود، مخ یې را واړاوۀ او د حیرانتیا نه یې له خولې نری اواز ووت او سـترگې یې پټې شـوې. دې فکر کاوۀ چې په دروازه کښې نیکولای ویسـوفشیکوف ولاړ او لاسونه یې په جیبو کښې نیولي دي. کله چې یې بیا وکتل، و یې لیدل چې هېڅوک هم نه شته...

وروســته یې په زینو کښــې گامونه پورته واخیسـتل او غوږ یې نیولی و، لاندې په غولي کښې د گامونو دروند بږغ اورېدل کېدۀ. د زینو په کږلیچي کښې ودرېدله، سر یې کښـته کړ، چې لاندې وگوري؛ بیا یې کورکوري مخ، چې دې ته خاندي، ولید.

- نیکولای! نیکولای... – مور دا نارې کړې او د ویسـوفشیکوف ملاقات ته د ناامیدۍ نه په ډک زړۀ کښته شوله.

- تۀ ځه، ولاړه شـه!- دۀ لاس ورته وښوراوۀ او په ټیټ آواز یې ځواب ور کړ.

مور هم د دۀ خبره واوريـدله، په زينو کښـــې يې منډې کړې او د ايگور کوټې ته ور ننوتله، هلته يې وليده، چې ايگور په کوچ کښې پروت دی. پلاگېيا اوږده ساه واخيستله او له شونډو لاندې يې وويل:

- نيکلولای... له زندانه تښتېدلی!..

ايگور سر د بالښت نه پورته کړ او په نيولي آواز يې ځنې وپوښتل:

- کوم نيکولای؟ هلته په دغه نامه دوه تنه ناست دي...

- نيکولای ويسوفشيکوف... هغه دی را روان دی، دلته راځي.

- ډېر ښۀ کار وشو!

ويســوفشــيکوف کوټې ته رانَنوت، دروازه يې په ځان پســې قلف او خولۍ يې وکښــله، په ټيټ اواز يې خندل او پر وېښــتانو يې لاس تېراوۀ. ايگور پاځېد. په خوښۍ سره يې سر ښوراوۀ او نارې يې کړې:

- مهرباني وکړه، مهرباني وکړه...

دی په خندا سره مور ته راغی او د هغې لاس يې ونيو:

- که مې چېرې ته نه وای ليدلې، مجبور وم بېرته زندان ته لاړ شم. په ښار کښـې مې هېڅوک نۀ پېژندل، کلي ته تللی نه شـوم- زۀ به يې دستي نيولی وای. گرځېدم او فکر مې کاوۀ: «جهالت مې وکړ، د څۀ لپاره وتښــتېدم؟» ناڅاپه مې وليده، چې نيلوفنا ځغلي، ما هم دا لار واخيستله او تاسې پسې را روان شوم....

- تا څه چل وکړئ چې وتښتېدې؟- مور پوښتنه وکړه.

دی په شرمناکه ډول د څوکۍ پر څنډه کښـېناست، اوږې يې پورته کړې او په نيولي آواز يې پيل وکړ:

- په ساده ډول؛ موقع مساعده شوله! په میدان کښې گرځېدم، و مې لیدل چې غیرسیاسي بندیانو د محافظ په وهلو شروع وکړه. دا محافظ کوم وخت ژاندارم وو، اوس یې د غلا په اساس د هغه کاره ایستلی او دلته ساتونکی دی، جاسوسي کوي او ټول بندیان د هغه د لاسه پر نفس راغلي دي. هر کله چې نورو ساتونکو دا حالت ولید، ټوله وارخطا او هر طرف ته یې ټوپونه او شپېلکې وهلې. ما ولیدل چې دروازې خلاصې او لار آزاده ده. بې عجلې په آرامه رهي شوم... لکه خوب چې وینم روان وم. څو گامه لېرې شوم، فکر مې وکړ- چېرې لاړ شم؟ شا ته مې وکتل؛ دروازې بېرته تړل شوي دي...

ایگور د دۀ خبرې پرې کړې او و یې ویل:

- ها... تاسې ښاغلی به بېرته گرځېدلی وای، په مؤدبانه ډول به مو دروازه ټکولې او ویلي به مو وای، چې بې ارادې وتلي واست او بېرته به مو د ننوتلو اجازه غوښتې وای...

نیکولای وخندل او خپلو خبرو ته یې دوام ور کړ:

- بلې، دا حماقت دی، چې بې خبره ولاړم او ملگرو ته ډېر شرمینده یم، هېڅا ته مې خبر نه و ور کړی او ترې ولاړم...

په هر صورت؛ هر کله چې کوڅې ته را ووتم، و مې لیدل چې خلکو جنازه پر اوږو اخیستې ده، زۀ هم پسې روان شوم، سترگې مې کښته واچولې او هېچا ته مې نۀ کتل. په هدیره کښې لږ کښېنستلم، آزاده هوا مې تنفس کړه او یو فکر مې په مغز کښې را وگرځېد.

ایگور یې بیا په خبرو کښې ور ولوېد:

- یوازې یو؟ فکر کوم چې هلته به ځای ډېر تنگ وي....

ویسوف‌شیکوف بې لۀ دې چې خفه شي، سر یې وښوراۀ او په خندا سره یې وویل:

- اوس زما سر د پخوا په شـان خالي نه دی او سـتا حال ایگور ایوانوویچ څنگه دی؟ تر اوسه لا ناروغ یې؟

ایگور ټوخل او ځواب یې ور کړ:

- هر یو چې څـه کولای شي، هغومره کـار کوي. مهربـاني وکړه خبرو ته دې ادامه ور کړه.

- پس لۀ هغه موزیم ته ولاړم، لږ پکښـې وگرځېدم او فکر مې کاوۀ، چې بیا نو چېرې لاړ شم؟ بالاخره مې ځان ته قهر راغی. ډېر وږی هم وم. کوڅې ته را ووتم، وگرځېـدم او ډېر غمجن وم. لیـدۀ مې چې پولیس ټول خلـک په ډېره توجه سره گوري. ووېرېدم چې په خپل دې شکل او قواره سره ځنې ورکېدلای نه شم. ناڅاپه وینم نیلوفنا مخامخ را ځغلي، زۀ د لارې نۀ بېرته شوم او دې پسې مې لار ونیوله او بس.

- او ما ته هېڅ و نۀ لیدې!- مور په ملامتۍ سره وویل او ویسوف‌شیکوف ته یې پورته کښته کتل او ورته معلومه شوه، چې دۀ ډېر بدلون کړی دی.

نیکولای سر گرووی او و یې ویل:

- بلې، ملگري به مې په تشویش کښې وي....

ایگور خوله خلاصه، پر شونډو یې ژبه تېره کړه او و یې ویل:

- ها، د آمرینو پر حال دې زړۀ نه سوځي، هغه هم په تشویش کښې دي! ښـه د ملنډو څخه به تېر شـو. اوس باید سـتا د پټېدو چارې وسنجوو، دا کار که څۀ هم دلچسپ دی، ولې اسان نه دی. کاشکې، کولای مې شوای چې پاڅم...-

ایگور د دې خبرې په ویلو سره لاسونه پر سینه کښېښودل او آرام یې مالش ور کاوه.

- ایگور ایوانوویچ، معلومیږي چې ناروغی ډېر ضعیفه کړی یې!- ویسوف‌شیکوف دا وویل او سر یې کښته واچاوه. مور سره ساه وکښله او په بې مېلی سره یې په کوچنی کوټه کښې شاوخوا سترگې ورغړولې.

ایگور ځواب ور کړ:

- ناروغي زما شخصي- کار دی او ته نیلوفنا، د پاول پوښتنه ځنې وکړه، ناحقه ځان بې پروا مه نیسه!

ویسوف‌شیکوف په خلاصه خوله موسکا وکړه:

- پاول ښه دی، بېخي جوړ دی او موږ دی خپل سرگروپ ټاکلی دئ. د آمرینو سره خبرو ته دی ور ځي. امرونه کوي، لنډه دا چې ټول د دهٔ احترام کوي...

پلاگیا د ویسوف‌شیکوف خبرې واورېدې، سر یې وښوراوه او تر سترگو لاندې یې د ایگور سپېرهٔ رنگه ډنگر شین مخ ته کتل. د مخ پوست یې بې حرکته هموار معلومېدهٔ، چې سترگې پکښې ژوندی او خوشاله برېښېدلې.

- کوم شی نه شته چې و یې خورم، بې حده وږی یم- یو دم د نیکولای د خولې نه را ووتل.

ناروغ و مور ته مخ واړاوه او خواهش یې ترې وکړ:

- نیلوفنا، په آلماری کښې ډوډی شته، هغه را واخله او ولاړه شه دهلېز ته، د چپ لاس دوهمه دروازه وټکوه، یوه ښځه به درته را ووځي او ورته ووایه، چې دلته راشي او هر شی چې د خوراک لپاره لري، ټول دلته راوړي.

- د څهٔ لپاره ټول؟- نیکولای اعتراض وکړ.

- مه وارخطا کېږه، ټول هم دومره ډېر نه دي...

مور ووتله، دروازه یې وټکوله، غوږ یې نیولی و او د ایگور په فکر کښې وه:

«د دې بیچاره پښه هم د گور پر غاړه ده...»

- څوک یاست؟- د کوټې له دننه څخه ږغ وشو.

مور په ټیټ آواز ځواب ور کړ:

- ایگور ایوانوویچ تاسې غوښتي یاست!

- اوس درځم!- د تړلي دروازې شا ته یې ځواب واورېد.

مور لږ په تمه شوله او بیا یې دروازه وټکوله. دا پلا دروازه په چټکۍ سره خلاصه او دهلېز ته یوه جگه ښځه، چې عینکې یې پر سترگو وې، را ووتله، جاکټ یې په بېړه سره پر ځان برابراوهٔ او په جدي لهجه یې پوښتنه وکړه:

- زهٔ ایگور ایوانوویچ را استولې یم...

- ښه ښه، درځم، زهٔ خو تاسې پیژنم، سلام! دلته ډېره تیارهٔ ده....

نیلوفنا ورته وکتل او ور یاد شوه، چې دا به کله کله د نیکولای کره راتله او په دې فکر کښې ولوېده: «دلته ټول خپل دي!»

ښځې د پلاگېیا نه خواهش وکړ، چې وړاندې ولاړه شي، په خپله شا ته ته تله او پوښتنه یې وکړه:

- حال یې ډېر بد دی؟

- بلې، پروت دیٔ او ستاسې څخه یې وغوښتل، چې د خوړلو لپاره څه شی ور وړئ.

- نه، دا خوراک اضافي دی....

کله چې دوی د ایگور کوټې ته ور ننوتلې، د هغه خرخر د دوی ملاقات وکړ:

- د نیکه گانو خوا ته روان یم. لودمیلا واسیلېونا، دا ځوان بې د آمرینو له اجازې څخه د زندانه را وتلی دی، شوخي یې کړې ده. اول یې ښۀ موړ او بیا یې د پټولو په هکله یو اقدام وکړه.

ښځې سر وښوراوۀ، په دقت سره یې ناروغ ته وکتل او په جدي توگه یې ورته وویل:

- ایگور، دوی چې راغلـل، فوراً مو بـایـد زما خوا ته را لیږلي وای، له بله طرفه دا دی زۀ وینم، چې دوه پلا مو دوا هم نه ده خوړلې. دا بالکل بې احتیاطي ده! راځئ چې موږ او تاسې زما کوټې ته ولاړ شـو. اوس باید په ایگور پسې لۀ روغتون څخه یو کس را شي.

- باید حتماً روغتون ته ولاړ شم؟- ایگور پوښتنه وکړه.

- بلې، زۀ هم هلته ستاسې سره پاتېږم.

- حتی هلته!

- بلې، مه وېرېږه...

ښځې د خبرو په ترڅ کښې شړی د ناروغ پر سینه برابروله او نیکولای ته یې کتل، وروسـته یې د ناروغ سر ته په بوتل کښې د دوا اندازه معلومه کړه. دې خبرې نرمې او ټیټې کولې او حرکتونه یې ارام وه. څېره یې سپېره، تورې وروځې یې تقریباً یو له بل سره منښـتي وې. د دې څېره مور ته دلچسـپه نه ښـکارېده او

مغروره غوندې وه، ســترګو يې ځلا او تبســم نه درلود او د خبرو ډول يې و امر کولو ته ورته و.

دې خپلو خبرو ته دوام ور کړ:

- مورې اوس ځو! ژر زۀ بېرته راځم او تاسې ايګور ته يوه د چايو کاچوغه له دغې دوا نه ور کړئ او مه يې پرېږدئ، چې خبرې وکړي...

دا ولاړه او نيکولای يې هم له ځان سر بوت.

ايګور ساه وکښله او و يې ويل:

- ډېره مهربانه او د ستاينې وړ ښـځه ده! تاسـې نيلوفنا بايد له دې سره په کور کښې واوسئ، بېچاره ډېره ستړې ده.

مور په ارامه خواهش ترې وکړ:

- تاته اوس د خبرو اجازه نه شته، واخله، دا دوا وچښه.

دوا يې وڅښله او بيا يې شروع کړه:

- په هر صورت؛ زۀ مرم، که څه هم خولې ته قولف ور واچوم...

په يوه ســترګه يې مور ته کتل او شـونډو يې غوښـتل، چې تبســم وکړي. مور سر کښته ونيو او د زړۀ سوي توند احساس يې له سترګو نه اوښکې وبهيولې.

- پروا نه لري، مه ژاړه، دا طبيعي کار دی.... ژوند د مرګ په قيمت رانيول شوی دی...

مور د هغه پر سر لاس کښېښود او بيا يې خواهش ترې وکړ:

- خبرې مه کوه، سمه ده؟

دۀ ســترګې پټې کړې، لکـه د خپـل ځيګر خرخر ته چې يې غوږ نيولی وي، خپلو خبرو ته يې دوام ور کړ:

- چوپ کیدل بې فایدې دي، مورجانې! پټه خوله ما ته څه را کوې؟ فقط څو ثانیې به مې زنګندن را اوږد کړي. اما په عوض کښـــې یې هغه خوند چې د یوه په زړهٔ پورې سړي سره یې له خبرو څخه وړم، د لاسه ور کوم. زه باوري یم، چې په هغه نړۍ کښې د دې جهان په شان ښه خلک کم دي...

مور په ناآرامۍ سره د دهٔ په خبرو کښې ور ولوېده:

- اوس به هغه آغازاده ښځه راشي او دا چې ستا سره خبرې کوم، را باندې په قهر به شي...

- هغه آغازاده نه ده، انقلابي ملګرې او لطیف روح دی او دا چې درته په قهر به شي ډېره شونې ده، ځکه د اصولو په خاطر ټولو ته قهر کوي...

وروسته ایګور په تکلیف شونډان ښورول او په ارامه یې د خپلې همسایه ښـځې د ژوند کیسـه شروع کړه. سـترګو یې غوښتل چې خندا وښیي. مور د دهٔ لاندهٔ او شنهٔ مخ ته کتل او له ځانه سره یې فکر کاوهٔ: «بېچاره مري...»

لودمیلا کوټې ته راننوته، په دقت سره یې دروازه په ځان پسې وتړله، مور ته یې مخ را واړاوهٔ او و یې ویل:

- سـتاسـې دوست باید جامه بدله کړي او ډېر ژر له ما نه ولاړ شي. اوس تاسـې پلاګېیا نیلوفنا ولاړه شـئ، کالي ورته پیدا او دلته یې راوړئ. افسوس چې سوفیا نه شته، د خلکو د پټولو په باره کښې هغه تخصص لري.

نیلوفنا دستمال پر اوږو اچاوهٔ او و یې ویل:

- هغه سبا راځي!

هر وخت چې به مور ته کومه وظیفه ور وسپارل شوه، دې به ډېر کوښښ کاوهٔ، چې په ښـهٔ توګه او چټکۍ سره یې ترسره کړي او بې له هغه کاره به یې د

بل هېڅ شي په باره کښې فکر نۀ کاوۀ. دا پلا یې هم د دقت او پاملرنې په خاطر پوښتنه وکړه:

- څه ډول جامه باید واغوندي؟

- فرق نه کوي، ځکه بې لۀ هغه هم د شپې وخې.

- شپه خطرناکه ده، خلک لړ او تعقیب شدید وي، برسېره پر دې دی ډېر چالباز هم نه دی...

ایگور په لوړ آواز سره وخندل او مور د ایگور نه پوښتنه وکړه:

- اجازه شته چې ستا لپاره شفاخانې ته در شم؟

دۀ ټوخـل او سر یې وښـــوراوۀ. لودمیلا د مور خوا ته تورې ســـترگې را واړولې او خبرو ته یې دوام ور کړ:

- غواړې چې هلته زۀ او تاسې په نوبت سره نوکرۍ وکړو؟ بلې؟

- ډېر ښه!

- اوس مهرباني وکړه ژر ولاړه شه....

پـه مهربـانۍ، خو پـه آمرانـه ډول یې د مور لاس ونیو، لـه دروازې نه یې وایستله او په ټیټ آواز یې ورته وویل:

- مه خفه کېږه، چې زۀ تاسې لیږم... خبرې کول دۀ ته ډېر نقص لري... او زۀ امید لرم چې....

دې خپل لاسونه داسې کښېکښل، چې گوتو یې ټکان وکړ.

دغو توضیحاتو پر مور تاثیر وښاندۀ او په شونډو کښې یې ځواب ور کړ:

- نه، هېڅ پروا نه کوي.

- احتیاط وکړئ، چې جاسوسان درته متوجه نه شـــي.- ښځې دا وویل او لاس یې پر تندي تېر کړ.

مور بې له دې چې عادي وضعیت د لاسه ور کړي، وویل:

- پوهېږم!..

هر کله چې د کوره ووتله، یوه دقیقه ودرېده، پر سر یې دسـتمال هواراوۀ او پټ پټ یې ټوله شـاوخوا په دقت سره مشـاهده کړه. دې اوس کولای شـول، چې په پوره ډول په کوڅه کښې جاسوس د خلکو تر منځ وپېژني. په تگ کښې بې پروایي او آزادي، مصـــنوعي خوشـــاله وضـــعیت، خفگان او تریو تندی، د سترگو یو او بل ډول اشارې، له دې ټولو کارونو سره مور ښه بلده شوې وه.

دا وار پلاگېیا هېڅ یوه آشنا څېره و نه لیده، مستقیماً په کوڅه کښې روانه شـــوه، گـاډی یې ونیولـه او گاډی‌وان ته یې فرمایش ور کړئ، چې بازار ته یې ورســـوي. هر کلـه چې یې د نیکولای لپـاره جامې رانیولې، د دوکاندار سره یې ډېرې چنې ووهلې او پـه ضـــمن کښـــې یې خپـل شرابي مېړۀ، چې گواکې هره میاشت باید نوي کالي ورته رانیسـي، گواښه. د دې دغه ابتکار پر دوکاندار اغېز ښـــانـدۀ امـا په خپله یې ډېره خوښـــه وه. پر لارې یې فکر کړی و، چې پولیس پوهېږي چې نیکولای باید خپل کالي تبدیل کړي، ځکه نو ښایي، چې بازار تر تعقیب لاندې ونیســـــي. مور د خپل همدغسې ساده احتیاط سره بېرته د ایگور کور ته را وگرځېده او بیا یې نیکولای د ښـــار نه دباندې بوت. دا او نیکولای د کوڅې پر مختلفو غاړو تلل، د ځوان کښته نیولی سر، د ژیړ بالاپوښ سره نیولي قـدمونـه او پر پزه لوېـدلې خولۍ، چې هره گړۍ بـه یې پورتـه کوله، مور ته ډېر خنداوره او دلچسـپه وه. په یوه خالي کوڅه کښې ساشېنکه د دوی مخ ته راغله

او مور د ویسوف‌شیکوف سره د سر په اشاره خدای په اماني وکړه او خپل کور ته ولاړه. په ډېرې زړۀ تنگۍ سره يې فکر کاوۀ:

« پاول لا په زندان کښې دی... آندري هم...»

## «۱۰»

په کور کښې نیکولای په تشویش سره مور ملاقات کړه ورته و يې ویل:

- پوهېږې، د ایگور حالت ډېر خراب دی، هغه يې روغتون ته بوت، لودمیلا هم هلته ده، غوښتل يې چې تاسې هم ور شئ...

- روغتون ته؟

نیکولای عینکې پر سترگو برابرې کړې، د مور سره يې کومک وکړ، چې جاکټ واغوندي، په خپل تاودۀ لاس کښې يې د هغې لاس ونیو او په مغشوش آواز يې وویل:

- بلې! دا بسته هم در سره واخله. د ویسوف‌شیکوف کار جوړ شو؟

- بالکل له گواښه وتلی دی...

- زۀ هم د ایگور لیدو ته در ځم...

د سترپیا نه د مور سر پرلپسې گرځېدئ، د نیکولای غمجن وضعیت د مور خفگان نور هم د ایگور په هکله ور ډېر کړ.

«مرگ ته ور روان دی...»- دې غم‌لړلي فکر د مور پر سر د ختک وارونه کول.

هر کله چې د روغتون کوچنۍ پاکې کوټې ته را ورسېده او و يې ليدل، چې ايگور په ځانگړو جامو کښې پر چپرکټ ناست او له خبرخبر سره خاندي، لږ يې زړهٔ ځای ته راغی. دا په موسکا سره دروازې ته ورغله او وا يې ورېدل، چې ايگور ډاکټر ته وايي:

- تداوي هم يو ريفورم دی...

ډاکټر په نرم آواز ځواب ور کړ:

- ملنډې مه کوه!

- زهٔ انقلابي يم، د ريفورم نه مې کرکه کيږي...

ډاکټر پـه احتياط سره د ايگور لاســونه پر ځنگنو ورته کښـېښــودل، له چوکۍ نـه پاځېد، يو لاس يې پر بړېره نيولی او د بل لاس په گوتو يې د ايگور د مخ پړسوب په دقت سره تر نظر تېراوهٔ.

مور ډاکټر ډېر ښــهٔ پېژاند، دی د نيکولای د نژدې ملگرو له جملې څخه وو او ايوان دانيلوويچ نومېدی. هر کله چې دا د ايگور څنگ ته راغله، هغه ژبه د دې ته خوا ته را وويستله. ډاکټر هم مخ را واړاوهٔ.

- سلام نيلوفنا! دا په لاس کښې دې د څه شي بسته ده؟

- ښايي کتابونه وي.

- دهٔ ته د کتاب لوستلو اجازه نه شته.

د ډاکټر د دې خبرې په اورېدو سره ايگور شکايت وکړ:

- دی غواړي چې لهٔ ما څخه احمق جوړ کړي.

ايگور تنفس لنـډ او پـه تکليف سره کـاوهٔ او له ســينې نه يې نرم خرخر اورېدل کېدی. پر مخ يې نرۍ خوله را روانه وه. خپل باريک، درانهٔ لاســونه يې

په سختۍ پورته او تندی یې پرې وچ کړ. د مخ پوست یې بې له حرکته پاته او پراخې مهربانې څېرې یې بل شکل اخیستی و. ټول صورت یې د مرګ تر ماسک لاندې او یوازې سترګې یې په پړسېدلي مخ کښې روښانه ځلېدې او له زړهسوي نه ډکه موسکا پکښې ښکارېدله.

ایګور سوړ اسویلی وکېښ او پوښتنه یې وکړه:

- های، اې د علم او پوهې خاونده! اجازه ده چې پرېوځم؟

- نه!- ډاکټر لنډ ځواب ور کړ.

- په هر صورت، چې ته لاړ شې، زه پرېوځم...

- تاسې نیلوفنا، دی مه پرېږدئ، چې پرېوځي، بالښتان یې شا ته کښېږدئ او خبرې مه ور سره کوئ، ځکه چې ډېر نقص ورته لري...

مور سر ورته وښوراوهٔ. ډاکټر په کوچنیو او چټکو ګامونو سره ووت. ایګور سر شا ته واچاوهٔ، سترګې یې پټې او له حرکته ولوېد، یوازې د لاسو ګوتې یې کله کله خوځېدې. د کوچنۍ کوټې له سپینو دېوالونو څخه وچه له یخ خفګان نه ډکه هوا را پاڅېده. د لويې کړکۍ نه دباندې د زیرفون د ونو څپه لرونکي سرونه ښکارېدل، چې پر تېرو او له خاورو نه ډکو پاڼو باندې یې ژېړ ټکي له ورایه ښکارېدل، کومو چې د مني د یخو څپو خبر ور کاوهٔ.

ایګور بې له دې چې حرکت وکړي او یا سترګې خلاصې کړي، وویل:

- مرګ زما په اړه ډېره ټنبلي کوي.... هېڅ لېوالتیا نه لري... دا چې مؤدبه او خوشاله هلک وم، ښایي زړهٔ یې را باندې سوځي.

مور د دهٔ پر لاسونو په ډېره مهربانۍ خپل لاس تېر او خواهش یې ترې وکړ:

- ایگور ایوانوویچ، هیله ده خبرې مه کوه!

- صبر وکړه مورې، ډېر زر به د تل لپاره غلی شم.

ایگور خپلو خبرو ته چې په نفس‌تنگۍ سره یې له خولې وتلې او له ضعیف‌والي نه به یې اوږدې وقفې درلودې، دوام ور کړ:

- دا څومره ښه خبره ده چې ته له موږ سره یې، ستا اندېښمنې سترگې او عجیبه ساده گي موږ ته امید را کوي، څومره په زړه پورې ده چې تا په خپل منځ کښې وینو. خو کله چې تا وینم، له ځانه پوښتنه کوم چې انجام به یې څه وي؟ ډېره دردونکې ده چې تاسې ته هم د نورو ټولو غوندې زندان، تبعید او ډول ډول کړاوونه او شکنجې په تمه دي. تاسې له زندان څخه نه ډارېږئ؟

- نه!- مور ساده ځواب ور کړ.

- بلې، البته... خو بیا هم زندان د خوښۍ او استراحت ځای نه دی، دا دی وینې، چې زهٔ زندان فلج کړی یم، زندان زما قاتل دی... که رښتیا ووایم، نه غواړم چې ومرم، هیله یې نه لرم....

مور غوښتل چې ورته ووایي: «اوس هم امید شته، چې ژوندی پاتې شې!» خو چې کله یې د دهٔ حالت ته وکتل، نو پټه خوله پاتې شوه.

- زړهٔ مې غواړي د خلکو د خیر لپاره نور کار هم وکړم، خو دا چې انسان له کاره ولوېږي، نور یې نو ژوند عبث او بېهوده دی او په کوم درد نه خوري...

مور ته یو دم د آندري خبره: «یوازې په رښتیا ویلو د سړي زړهٔ نه ارامېږي» ور په یاد شوه او سوړ اسوېلی یې وکېښ. دا ډېره ستړې او وږې وه. د ناروغ یو نواخت ځگېروي ټوله کوټه نیولې وه او په ناتوان ډول د سپینو دیوالونو پر مخ تاوېدئ. د کړکۍ د باندې د زیرفون د ونو سرونه د را کښته شوي وریځې

په شــان ښــکارېدل چې تېرهٔ رنګ يې حيرانوونکې جامه ور اغوســتې وه. ټوله شاوخوا په حيرانتيا سره په غمجنه خاموشۍ کښې ډوبه وه او په خواشينۍ سره د شپې په تمه وه.

- حـال مې ډېر خراب دی!- ايګور دا وويـل، ســترګې يې پټې کړې او چوپ شو.

مور په مهربان آواز مشوره ور کړه:

- ويدهٔ شه، ګوندې ښهٔ شې!

وروســته يې د دهٔ ســاه کښــلو ته غوږ ونيو، مخ يې واړاوهٔ، څو دقيقې بې حرکته کښېناسته، د غم يخ شمال پر لګېدی او خوب يووړه.

په دروازه کښــې نري ږغ دا را ويښــه کړه؛ وربېږدېده، سر يې پورته او د ايګور خلاصې سترګې يې وليدې او په نرمه لهجه يې ورته وويل:

- وبخښه، خوب وړې وم.

له کړکۍ نه تورې تيارې مخ را ښـکاره او پر سترګو يې فشار اچاوهٔ، ټولو شيانو رنګ اړولی و، د ناروغ څېره لا تېره معلومېده.

د لودميلا زوږ او آواز واورېدل شو:

- په تيارهٔ کښــې ناســت ياســت او پس پس لرئ، چېرې دی د ګروپ سويچ؟

کوټه يو دم له سـپينې، مګر بې خونده روښـنايي نه ډک او په منځ کښې يې لودميلا؛ ټوله توره، جګه او مستقيمه څرګنده شوه.

د ايګور ټول بدن وربېږدېد او لاس يې ځيګر ته را پورته کړ.

- خيريت دی؟- لودميلا دا وويل او د دهٔ و خوا ته يې ور منډې کړې.

دهٔ ســـترګې د مور خوا ته نيولي وې، چې اوس له پخوا غټې او روښـــانه ځليدې.

خوله يې خلاصه او سر يې لوړ ونيو، لاسونه يې د مخ خوا ته اوږدهٔ کړل، مور يې پـه احتيـاط سره لاس ټينګ کړ او په ســـاه نيولي ډول يې د دهٔ و مخ ته کتل. دهٔ په سخت حرکت سره سر شا ته واچاوهٔ او په جګ آواز يې وويل:

- نور مې وس نه شته، کار مې خلاص دی!..

بدن يې لنډ ښور وخوړ او سر يې پر اوږو ولوېد. په خلاصو سترګو کښې يې د څراغ نور، چې په سر يې لګېدهٔ، په غمجن ډول منعکس شو.

مور په شونډو کښې وويل:

- ګرانه دوسته!

لودميلا يې د چپرکټ نـه ولاړه، کړکۍ تـه ودرېده، کوم نامعلوم ځای ته يې مخامخ کتل او په يوهٔ نابلده، غيرعادي، درانهٔ ږغ سره يې وويل:

- مړ شو....

دا ټيټه شـوه، څنګل يې د کړکۍ پر تخته کښېښوده، بې حرکته پر زنګنو پرېوته، سترګې يې په لاسو پټې او په ګونګ ډول يې زګېروی شروع کړ.

- مړ شو، آرام او باشهامته.... بې له دې چې فرياد وکړي.

مور د ايګور درانهٔ لاسونه پر ځيګر ورته کښېښودل او بې حده دروند سر يې پر بالښـته سم کړ، اوښکې يې پاکې او د لودميلا څنګ ته راغله، د دې خوا ته يې سر ټيټ او په ارامه يې د هغې پر ګڼو وېښتانو لاس تېر کړ. لودميلا د دې پلو ته مخ واړاوهٔ، ســترګې يې پراخې را وتلې، پاڅېده او په رېږدېدونکو شـونډو يې وويل:

- ډېر وخت کېږي چې له يو بل سره ملګري يو، موږ په تبعيد کښــې يو ځاى ژوند سره کاوۀ، په زندان کښې يو ځاى وو، يو ځاى تر شکنجو لاندې وو. ځينې وختونـه د زغم وړ نه وو، بېخي ډېر له موږ څخه روحاً ضــعيفه شــول... مېړانه يې له لاسه ورکړل... او ليونيان شول...

ژړا يې په جګ آواز سره ستونى تر فشـار لاندې را وست او په تکليف سره يې پر ځـان حاکميت پيدا کړ. مخ يې، چې د مينې او درد له مخې ځوان او ملايم ښکارېدۀ، مور ته نژدې او بې له اوښکو يې په زګېروي سره وويل:

- خو دى همېشــه خوښ او ټوکي وو او خندل يې، په مېړانه او شــهامت سره يې خپل رنځونه پټ ساتل... تل يې کوښـــښ کاوۀ، چې ضعيفو خلکو ته زړۀ او جرئت ور کړي. ډېر حساس او ملايم و... هلته په سايبريا کښې بېکاري د خلکو اخلاق فاسـدوي او بد احسـاس پکښــې را پاروي. ده د دې ټولو کارو په مقابل کښــې په ښـه توګه مبارزه کولاى شوه. خپل شخصي ژوند يې ډېر سخت او ځوروونکى وو، ولي هيچا د ده شــکايت وا نه ورېد؛ هېڅ وخت، هيچا. زۀ د ده نژدې ملګرې وم، لـه دۀ ډېر مننـدوى يم؛ هر څـه چې يې په وســه وه، په ما باندې يې زده کړه او په مقابل کښــې يې، که څه هم ځانګړى او ستړى هم وو، حتى د مهربانۍ او محبت هيله يې هم نه درلوده.

دا د ايګور خوا تـه راغلـه، سر يې ټيټ او د هغه لاس يې ښــکل کړ، په غمجنه لهجه يې په ارام آواز وويل:

- مهربانه، ګران ملګريه! مننه، د زړۀ له کومې مننه در څخه کوم. ستاسې څخه مننىويه يم. د خداى په امان! سـتاسـې په شـان به ټول ژوند د هغو خلکو

لپاره چې درد ويني، بې له کومې سټړيا او تزلزله کار وکړم... د خدای په امان! د خدای په امان!

ژړا يې ټول بدن ربړداوه، په نفس تنګۍ سره يې سر د ايګور پښــو ته پر چپرکټ کښېښود. مور په چوپ آواز سره ژړل او له سترګو يې د اوښکو رودونه روان وو، کوښښ يې کاوه چې د اوښکو مخه ونيــســـي، غوښتل يې لودميلا په مهربـان نـاز سره ارامـه کړي او د ايګور پـه هکلـه له مينې او غم نه ډک تعريف وکړي. د اوښـکو له منځه يې د دهٔ لوېدلي مخ، پټو سـترګو او تورو سړو شونډو ته کتل، ټوله کوټه له سوځوونکي روښنايۍ نه ډکه وه.

ايوان دانيلوويچ د تـل پـه څېر پـه چټکو کوچنيو ګـامونو سره راننوت، د کوټې په منځ کښــې ودريد، په چټکۍ سره يې لاســونه په جيبو ننايســتل او په عصبي لوړ آواز يې وپوښتل:

- ډېر وخت کيږي؟..

دهٔ ته چا ځواب ور نه کړ، پر پښـو را تاو شـو، تندی يې وچ کړ، د ايګور څنګ ته راغی، د هغې لاس يې کښېکښی او ترې لېرې لاړ.

- مـه حيرانېږئ، د دا ډول زړهٔ سره دهٔ بايد نيم کال پخوا لا ســترګې پټې کړې وای... اقلاً نيم کال...

د دهٔ جـګ او درونـد آواز چې پـه تکليف سره يې تر کنټرول لانـدې راوسـتئ، يو دم پرې شو، و دېوال ته يې تکيه وکړه، ګوتې يې په چټکۍ سره په بېره کښې وهلې، په داسې حال کښې چې د سترګو د رپېدو سرعت يې ډېر وو، د مړي د چپرکټ خوا ته يې کتل او په ارامۍ سره يې وويل:

- دا هم يو بل!..

لودمیلا پاڅېده، د کړکۍ خوا ته لاړه او هغه یې خلاصــه کړه. یوه شــېبه وروسـته دوی درې واړه کړکۍ ته ولاړل؛ یو بل یې ټینګ په غېږ کښې نیولي او د مني د شپې کرغېړن مخ ته یې سترګې اړولي وې. د ونو د تورو سرونو له پاسه ستوري ځلېدل، چې د اسمان په نه خلاصېدونکي ژوره کښې ور ننوتي وو.

لودمیلا مور د لاس نه ونیوله او په خاموشۍ سره یې د هغې په اوږو پورې ځان ونښـلاوهٔ. ډاکټر سر کښـته واچاوهٔ او د دستمال په واسطه یې عینکې پاکې کړې. د کړکۍ د باندې د شپې غوغا په ستومانه ډول اورېدل کېده، سرو موجونه پر مخ وهـل او وېښـــتان پر سرونو باندې رېږدېدل. لودمیلا ځګېروی کاوهٔ او پر مخ یې مړې اوښـــکې را روانې وې. د روغتون د دهلېز نـه بېرېـدلي، بې ترتیبـه ږغونه، د چټکو ګامونو ترپ ترپ، ســتمی او زوږ غوږ ته رســېدئ. دوی درې واړه خاموشه کړکۍ ته ولاړ او تیارې ته یې سترګې نیولي وې.

مور ځـان اضــافي وګاڼهٔ، خپل لاس یې ارام د لودمیلا نه آزاد، ایګور ته یې سر ټیټ او د دروازې خوا ته لاړه.

ډاکټر په داسـې حال کښـې چې د دې و خوا ته یې نه کتل، په ټیټ آواز ترې وپوښتل:

- تاسې وځئ؟

- بلې!

په کوڅه کښې مور د لودمیلا په فکر کښې ولوېده او د هغې اوښکې یې ور په یاد شوې:

«حتی ژړا یې هم نه ده زده...»

د مرگ نه مخکې د ایگور د خبرو په یادولو سره مور سـره ساه وکښله.
مور په کوټه کښې ارامه روانه او د ایگور ژوندۍ سترگې، ټوکې او د ژوند په هکله یې د دهٔ کیسې ور یادولې.

« د ښـو خلکو لپاره ژوند سخت، مرگ اسانه... آخر زهٔ به په څهٔ ډول مړه شم؟..»

وروسته یې لودمیلا او ډاکټر په سپینه روښانه کوټه کښې کړکۍ ته ولاړ او شا ته د ایگور پټې سترگې ور په یاد کړې او زړهٔ یې له غمه سره ټول شو. په تکلیف یې سوړ اسوېلی وکېښ او گامونه یې چټک کړل. کوم غمجن حس په تلوار را وستلې وه.

«مخ پر وړاندې چټکې په کار ده!»- مور دا فکر کاوهٔ او هغه نه لیدونکی ځواک چې یې په سینه کښې را پاڅېدلی و، دا یې مخ ته پاروله.

## «۱۱»

راتلونکې ټوله ورځ مور پر ولاړو پښو تېره کړه. د ورځې له خوا د ایگور د ښخولو لپاره د مراسمو تیاري روانه وه او ماښام هغه وخت چې دا، نیکولای او سوفیا په چای څښلو مصـــروف وو، ساشېنکه یې کور ته راغله. ډېره ژوندۍ او سرشاره معلومېده. باړخوگانو یې گلابي رنگ اخیستی و او سترگې یې په خوښۍ سره ځلېدلې. لـه یوې عجیبې خوښــۍ او امیـد نـه ډکه مور ته په نظر ورغله. د ساشېنکه دا خوشاله وضع، د ایگور د مرگ له غم او ماتم نه ډکې فضا ته بې له دې چې ور سره مخلوط شي، ور دننـه شــوه. پر ټولو بـانـدي یې داســې تاثیر

وښاندهٔ، لکه په توره تیاره کښې چې سترګې ناڅاپه له یوې سختې روښنایي سره مخامخ شي. نیکولای په فکر کښې ډوب تللی و، ګوتې یې پر میز باندې وهلې او ویې ویل:

- ساشېنکه، تاسې نن ځان ته ورته نه یاست!..

دې د نیکولای دا خبره تائید او له خوښۍ نه یې په ډک زړهٔ سره وخندل:

- هو، شونې ده!

مور دې ته په حیرانتیا سره کتل او سوفیا غوښتل، چې دا هم موضوع ته متوجه کړي، ور یاده یې کړه:

- او مورې د ایګور ایوانوویچ په باره کښې خبرې کولې...

ساشېنکه هم خبره واخیسته او زیاته یې کړه:

- څومره په زړه پورې انسان دی، بلې؟ ما دی بې له موسکا، خندا، ملنډو او ټوکو نه و لیدلی!. ډېر ښهٔ کار یې هم کاوهٔ، د انقلاب په کار کښې یو واقعي هنرمند و او په انقلابي تیوریٔ کښې یې د یو ستر استاد په شان تبحر درلود. په څومره مهارت یې د درواغو، فریب او استبداد منظره ترسیموله.

دې په ټیټ آواز سره خبرې کولې او د سترګو په تبسم کښې یې ژور فکر ښکارېدهٔ. خو دغه تبسم د دې په څېره کښې د هغې خوښۍ شعله، چې هېڅوک یې هم په معنا نه پوهېدل، نه خاموشه کوله.

دوی نه غوښتل خپل هغه غم او خواشیني چې د ملګري د مرګ نه ورته پاته وه، و هغې خوښۍ ته چې ساشېنکه ور سره راوړې وه، تسلیم کړي. بې ارادې یې د خواشینۍ په هکله د خپل حق دفاع کوله او کوښښ یې کاوهٔ، چې نجلۍ هم په خپل غم لړلي محفل کښې ور شریکه کړي...

سوفيا دې ته کتل او په جدي انداز يې وويل:

- او دا دی مړ شو!

ساشېنکه په چټک او پوښتنه پارونکي ډک نظر ټولو ته وکتل، تندی يې تريو شو، سر يې کښته واچاوهٔ او په ضعيف حرکت يې لوېدلي وېښتان سم کړل.

- مړ شو؟- له يو ځنډ وروسته يې په لوړ آواز وپوښتل او بيا يې ټولو ته په پرېشانه نظر وکتل او زياته يې کړه:

- مړ شـــو، يعنې څه؟ څه شي مړه شـــول؟ آيا زما احترام او مينه ايگور ته، ملگري ته، د دهٔ له فکر او کاره، زما خاطره مړه شـوه؟ آيا دا کيسه خلاصه شوه؟ آيا هغه احساس له منځه لاړ کوم چې دهٔ زما په زړهٔ کښې را پاڅولی و؟ آيا هغه تصـور چې ما د دهٔ په هکله د يو غيرت من او شريف انســان په توگه درلود، مړ شـو؟ آيا دا ټوله شـيان مړه شول؟ نه، نه هېڅکله دا له منځه تلونکي نه دي، هېڅ کله. زما په نظر موږ د انسـان په باره کښـې ډېر له وخت مخکې قضاوت کوو او وايو: مړ شـو! «يوازې شـونډې خاموشه کيږي، ولې هغه کلمې چې له شونډو نه وتلي، ابدي دي او د خلکو په زړونو کښې به ژوندۍ پاته وي!»

په مغشوش او پاشلي خاطر سره دا ېرته ميز ته کښېناسته، پر هغه يې تکيه وکړه، په فکر کښـې لاړه، په غمجن تبسم او پرېشانه سترگو يې ملگرو ته کتل او په ارامه يې زياته کړه:

- ښــايي زما خبرې لېونتوب درته ښــکاره شي، ولې زهٔ په دې عقيده يم، چې شريفـه انســانـان هېڅ کله نه مري، هغه څوک چې ما ته يې د روښــانه او نېکمرغه ژوند لار را ښودلې ده، کوم ژوند چې ما په خپل عجيب مغلق والي، د رنگ رنگ پديدو او افکارو نه په ډک والي باندې مســـروري، شاداب او نشه

کوي، د سترګو د تور په شان راته ګران او خاطره يې هېڅ وخت زما په زړهٔ کښې نه مري.

سوفيا په موسکا سره پوښتنه ترې وکړه:

- تاسې ته کومه خوشالي برابره شوې ده؟

دې سر وښوراوهٔ او و يې ويل:

- بلې، ډېره خوشالي! فکر کوم چې ټوله شپه مې د ويسوف‌شيکوف سره مجلس کـاوهٔ. پخوا مې ور سره لېوالتيا نه درلوده، فکر مې کاوهٔ چې توند خويه او تـاريکـه ســړی دی. بلې، بې لـه شــکـه، دی همداســې و. دی ډېر توند او خودخواه و، همېشه يې ځان له نورو نه جګ ګاڼهٔ او ويل به يې: زهٔ، زهٔ، زهٔ! د دهٔ دې عمل په خلکو کښې پيدا کاوهٔ...

دې موسکا وکړه او د ټولو پر شاوخوا يې سترګې ورغړولې.

- اوس وايي: ملګرو! بـايـد واورېدل شي، چې دا کلمه څومره له مينې په ډکه لهجه اداء کوي، چې د ســتاينې لپاره يې مناســب کلمات نه پيداکيږي. په عجيب ډول سره سـاده، صـميمي او صـادق شوی دی او ټول د کار په هکله له هيلو نـه ډک دی. دهٔ ځان وپېژاند، خپل ځواک ورته معلوم شــو، پوهېږي چې کوم شی په دهٔ کښـې سم نه دی، تر هر څهٔ مهمه دا چې د ملګرۍ اخلاص او د ريښتين والي حس پکښې را پاڅېدلی دی...

مور د ســاشــېنکه وينا ته غوږ نيولی او ډېره خوشــاله وه، چې دا جدي نجلۍ يې دومره ارامه او خوښـه ليدله. اما د زړهٔ په دننه کښـې د کينې پټ حس ور پيدا شو: «د پاول راتلونکی به څه وي؟..»

ساشېنکه خپلو خبرو ته دوام ور کړ:

- دی ټول وخت د ملگرو په باره کښې فکر کوي او پوهېږي چې څهٔ غواړي؟ غواړي چې د هغوی لپاره د تښتېدو چاره وسنجول شي. دی عقیده لري، چې دا کار ډېر ساده او اسان دی...

سوفیا سر پورته کړ او په ژوندي آواز یې ترې وپوښتل:

- تاسې څهٔ عقیده لرئ، ساشېنکه؟ دا ډېر ښه فکر دی!

د چایو پیاله د مور په لاس کښې رېږدېدله. ساشېنکه تندی تریو کړ، لږ ساکته شوه، بیا یې په جدي آواز چې د خوشالۍ موسکا پکښې ښکارېده، خبرو ته ادامه ور کړه:

- که چېرې واقعاً هم داسې وي، لکه دی چې کیسه کوي، موږ باید اقدام وکړو، دا زموږ دنده ده!..

د دې مخ سور شو، پر چوکۍ یې تکیه وکړه او خاموشه شوه.

مور په خوشالۍ سره فکر کاوهٔ: «زما گرانې، څومره مهربانه یې!» سوفیا هم موسکا وکړه، نیکولای په ارامه ډول د ساشېنکه خوا ته مخ واړاوهٔ او نرۍ خندا یې وکړه. په دې وخت کښې ساشېنکه سر پورته کړ، ټولو ته یې وکتل، رنگ یې ژیړ شو او په گیله من آواز یې وویل:

- تاسې خاندئ، زه پوهېږم... تاسې فکر کوئ چې زه دلته شخصاً لېوالتیا لرم.

سوفیا پاڅېده او د دې و خوا ته راتله، پوښتنه یې وکړه:

- ته ولې داسې فکر کوې؟

دا پوښتنه مور ته اضافي او د نجلۍ لپاره خپه کوونکې معلوم شو. دې سترگې پورته او په معنا لرونکي ډول یې سوفیا ته وکتل.

- زه خپله خبره بېرته اخلم، په هغه مجلس کښې چې تاسې به دا پوښتنه تر څېړنې لاندې ونیسئ، زه به اشتراک هم و نه کړم...

نیکولای په ارامه لهجه ور زیاته کړه:

- ساشېنکه دا خبرې پرېږده!

مور هم د دې و خوا تـه راغلـه او په ارامه سره یې پر سر لاس ور تېراوۀ. سـاشـېنکه د دې لاس ونیو، له شرمه سـور شوی مخ یې ور واړاوۀ او په تشویش سره یې ورتـه وکتل. مور هم موســکا وکړه او نه پوهېده چې څه ووایي، ســوړ اسـوېلی یې وکېښ. سوفیا د ساشېنکه څنګ ته پر څوکۍ کښېناسته، هغه یې په غېږ کښې ونیوه، په پلټونکي تبسم سره یې ورته وکتل او ویې ویل:

- تاسې د حیرانتیا وړ یاست!..

- بلې، معلومېږي، چې په احمقانه ډول مې موضوع مطرح کړه.

- نه، هېڅ احمقانه نه ده!- سوفیا دا وویل، خو نیکولای یې په خبرو کښې ور ولوېد:

- د تښـتېدو د چارې په هکله که چېرې شونې وي، باید دوه نظره موجود نـه وي. له هر څه مخکې باید موږ وپوهېږو، چې آیا زنداني ملګري دا غواړي، او کنه؟..

ساشېنکه سر کښته واچاوۀ.

سوفیا په داسې حال کښې چې سګرېټ یې لګاوۀ، ورور ته یې کتل او د اورلګیت خاشه یې کوم پلو ته لېرې وغورځوله.

مور په آرامه لهجه وویل:

- ځنګه کېدلای شي چې موافق نه وي. خو زۀ فکر کوم چې د دې کار شونتیا به نه وي.

ټول خاموش وو، اما مور ډېر غوښتل چې د تښتېدو د امکاناتو په هکله د دوی نظر واوري.

سوفیا وویل:

- زۀ باید د ویسوف‌شیکوف سره ووینم!

ساشېنکه په ټیټ آواز ځواب ور کړ:

- سبا زه خبر در کوم، چې کله او چېرې ور سره لیدلای شې.

سوفیا په داسې حال کښې چې په کوټه کښې تله او راتله، پوښتنه یې وکړه:

- دی باید څه کار وکړي؟

- د دۀ لپاره یې په نوي مطبعه کښې کار په نظر کښې نیولی او تر هغه وخته پورې به د ځنګلۀ د کارکوونکي سره هلته ژوند کوي.

د ساشېنکه تندی تریو شو او څېرې یې پخوانی جدي شکل ونیو، آواز یې هم وچ و. نیکولای د مور خوا ته، چې د پیالو په مینځلو بوخته وه، ولاړ او ورته یې وویل:

- سبا نه بل سبا باید تاسې زندان ته لاړه شئ او په هر شکل چې وي، پاول ته یوه رقعه ورسوئ. ځکه چې موږ باید خبر شو...

- بلې، پوه شوم، حتماً به یې ور ورسوم...

- زۀ ځم!- ساشېنکه دا وویل، ټولو ته یې لاس ور کړ او په چټکو ګامونو سره ووتله.

سوفیا د مور پر اوږو لاس کښېښود او په موسکا سره یې ترې وپوښتل:

- تاسې به نیلوفنا خوښه وای، چې دا ډول لور مو درلودلای؟

مور سمدستي په ژړغوني آواز سره ځواب ور کړ:

- ها، خدایه، کاشکي وکولای شم، چې اقلاً یوه ورځ خو دوی یو ځای جوړه ووینم!

نیکولای په ارامه خبره ونیوله او یاده یې کړه:

- بلې، د هر چا لپاره لږ نېکمرغي درلودل ښه شی دی، نو هغه خلک چې نېکمرغي په لږه پیمانه وغواړي، نه شــته او کله چې نیکمرغي زیاته شي، خپل اهمیت له لاسه ور کوي...

سوفیا پیانو ته کښېناسته او یو غمجن موزیک یې شروع کړ.

## «۱۲»

د راتلونکي ورځې په سـهار په لس گونو خلک؛ نر او ښـځې د روغتون دروازې تـه ولاړ او د خپـل ملگري د تـابوت را ایســتلو پـه تمـه وه. د دوی پر شـاوخوا جاسـوسـان گرځېدل، چې خپل تېز غوږونه یې په دقیق ډول د دوی و هرې خبرې تـه متوجـه کړي، کوښــښ یې کاوه، چې هر لغت یې د ویونکي د شکل سره فکر ته وسپاري او د جادې د بل اړخ نه یوه ډله پولیسانو د توفنگچو سره، چې په کمربند پورې یې ځړېدې، د دوی څارنه کوله. د جاســوســانو بې ځایه حماقت او پلټنه او د پولیسـو تمسخرآمیزه خندا او چمتووالي سره چې هره شېبه یې غوښتل خپل ځواک وښیي، په را ټولو شویو کسانو کښې سخته کرکه را

منځته کړې وه. ځینو به خپله کرکه او خشـــم پټاوۀ او په بې تفاوتۍ به یې یو بل سره خبرې کولې، ځینو به ځمکې ته سترګې نیولي وې او هڅه به یې کوله، چې د دوی ســپکونکي عملونه مشــاهده نه کړي او ځینو به خپل قهر او غضــب نه پټاوۀ او په معنا لرونکي ډول به یې پر اداره چیانو باندې، چې د هغو کسانو څخه چې بې له ژبې او خبرو بله هېڅ اسلحه نه لري، په ډار کښې دي، خندل. د مني شنه اسمان کوڅې ته چې په ډبرو سره فرش شوې وه، سترګې نیولي وې او نري شـــمال د ونو ژیړې رژېـدلي پاڼې د خلکو په پښــو کښــې یوې او بلې خوا ته خوځولې.

مور د ډلې پـه منځ کښــې ولاړه وه، شـــنـاختـه څېرو تـه یې کتـل او پـه خواشینۍ سره یې فکر کاوۀ:

«تاســې تر اوســه پورې لا لږ یاســت، لږ! او کارګران مو په منځ کښــې له تاسې نه هم کم دي...»

د روغتون ور خلاص شو، تابوت یې د ګلانو له ګېډیو او سرې پټۍ سره کوڅې ته را ویوســت. خلکو په ارامۍ سره سرونه لوڅ او غلي پاتې شــول، تا به ویل چې د تورو مرغانو ډله یې د سر له پاسه والوتله. د پولیسو افســـر چې جګه ونـه او پر سرۀ مخ یې تور ګڼ برېتونـه درلودل، پـه چټکۍ سره د خلکو منځ تـه ورننوت. په هغه پسې عسکر روان وو، چې په بې پروايۍ سره یې خلک یوې او بلې خوا تـه پورې وهـل او د خپلو درنو موزو سره یې پښــې پر ډبرینـه ځمکـه باندې کلکې -کلکې وهلې. افسر په نیولي، ولې آمرانه آواز سره وویل:

- خواهش کوم، پټۍ ترې لېرې کړئ!

د دهٔ پر شاوخوا نر او ښځې را وگرځېدل، کوم شی يې ويل، چا به لاسونه د خبرو په وخت کښې ښورول او چا به يو بل پورې وهل او ځان به يې مخ ته کاوهٔ. د مور په سترگو کښې سپېرهٔ مخونه، پارېدلي څېرې، چې شونډې يې په رېږدېدو راغلي وې، يو پلو بل پلو ته گرځېدل. د يوې ښځې پر مخ غمجنې اوښکې روانې وې...

- مړهٔ دې وي زور ازمويونکي!- کوم ځوان آواز دا وويل او د خبرو په منځ کښې په يوازيتوب سره ورک شو.

د مور زړهٔ هم له غمه ډک و، يو ځوانکسته يې، چې زاړهٔ کالي يې اغوستي او څنگ ته يې ولاړ و، مخ ور واړاوهٔ او په خفگان سره يې وويل:

- حتی د ملگري ښخولو ته، څنگه چې زموږ زړهٔ غواړي، نه مو پرېږدي. دا څه حال دی؟

گړی په گړی زياتېدهٔ. د خلکو پر سرونو تابوت له ورايه معلوم و، سرې پټۍ يې باد يوې خوا بلې خوا ته رپولې او د وريښمو عصباني زوږ يې غوږو ته رسېدئ.

مور د خلکو او پوليسو تر منځ د ټکر شونتيا حس کړل، نو يې په بيړه او ارام آواز سره ښۍ او کيڼې خوا ته کتل او و يې ويل:

- چاره نه شته، څه وکړو، نه مو پرېږدي. پټۍ به ترې لېرې کړو. عقب نشيني په کار ده، څه پروا لري!

درانهٔ او سخت آواز چې د خلکو غالمغال يې تر خپل تاثير لاندې راوست وويل:

- موږ غواړو بې له کومې لاسوهني خپل ځوانیمرګ ملګری، چې ستاسې د لاسه... پر اخېرنۍ لاره باندې بدرګه کړو.

د کومې خوا نه جګ آواز چې دا سندره یې ویله، واورېدل شو:

*د مبارزې قرباني یاست، تاسې....*

- خواهش کوم پټۍ لېرې کړئ! عسکر یاکوفلیف پټۍ پرې کړه!

د تورې غږ واورېدل شو، چې د پوښ نه را ایستل کېده. مور سترګې پټې کړې او د فریـاد او نـارې په تمه وه. خلکو د قهرجنو لېوانو غوندې غاښــونه را ایسـتلي وو. وروسـته خاموشه شول، سرونه یې کښته واچول، مخ پر وړاندې یې حرکت وکړ او کوڅه یې د خپلو ګامونو په ترپ ترپ ډکه کړه.

پـه هوا کښــې تـابوت چې پټۍ یې نه درلودې او د ګلانو ګېډۍ یې هم ماتې شوي وې، د سرونو له پاسه مخ ته حرکت کاوۀ او ور پسې پر اسونو سپاره پولیس یو پلو بل پلو روان وو.

مور پر پیاده‌رو روانه وه او تابوت د خلکو د ګڼې ډلې تر منځ، چې شمېر یې وار په وار زیاتېدۀ او ټوله کوڅه یې اشـغال کړې وه، د مور د سـترګو نه نهام وو. شا ته پولیس پر اسونو سپارۀ او بغلو ته پیاده روان وو، چې لاسونه یې د تورو پر لاستي ایښي وو. مور د جاسوسانو اشنا څېرې هرې خوا لیدلې.

دوه ښکلي آوازونه چې دا سندره یې ویله، واورېدل شول:

*په مخه دې ښه، اې ملګریه! په مخه دې ښه...*

د بلې خوا نه دا بږغ واورېدل شو:

- اړتیا نشته دوستانو، پرېږدئ، چې غلي لاړ شو.

نوموړي ږغ ټول تر اغېزې لاندې راوستل او اطاعت ته يې مجبوره کړل، غمجنه ســندره ودرېدل. فضــا خاموشــۍ ونيوه، يوازې د ګامونو منظم آواز پر ډبرينه ځمکه کوڅه ډکه کړې وه. ســوړ باد دم په دم زياتېدهٔ، د جادې ګرځ او دوړې يې د خواشينو خلکو خوا ته څنګ وهلې، کالي او وېښتان يې نارام کړي وو. سترګې يې په دوړو ډکولې او په پښو کښې تاويدې.

دا د خاموشــۍ جنازه، د پاپ نشــتون، متفکره څيرې، تريو تنديان، دې ټولو د مور زهير شوی زړهٔ تر سخت اغېز لاندې راوست، چې تاثيرات به يې په غمجنو خبرو پټول:

«بلې، شمېر مو لږ دی... خو بيا هم در څخه په ډار کښې دي...»

مور سر کښته اچولی، روانه وه. دې فکر کاوهٔ، چې دا ايګور نه دی، چې ښخوي يې، بلکه کوم بل شی، چې دې ته ډېر په کار او ورته په زړه پورې دی، ځنې اخلي يې. ځکه يې نو زړهٔ د غم او خواشينۍ نه ډک وو. فکر يې کاوه:

- «بلې پوهېږم، ايګور خدای ته عقيده نه درلوده... دوی هم...»

اما نه بريالۍ کېدل، چې خپل فکر را وګرځوي، کله چې به يې وغوښتل، خپل روح د دراندهٔ بار نه خلاص کړي، آه به يې وکېښ: «ها خدايه، حضرــت مسيح... آيا ما به هم دا ډول...»

هديرې ته را ورسېدل او ډېر وخت د قبرونو تر منځ پر نريو لارو تاوېدل، تر څو خالي ميدان ته، چې کوچني سپين صليبونه پکښې ښخ وو، را ووتل. د قبر څنګ ته غونډ را ټول او خاموش پاتې شول. د قبرو ترمنځ د ژونديو انسانانو خاموشــۍ د خوف او وهم وعده ور کوله، د دې کار په حســولو سره د مور زړهٔ وېرېدئ او په تمه کښــې بې حرکته پاته شو. د صليبونو تر منځ شمال د شپېلکي

د بړغ پــه ډول په تېزۍ سره تېرېدهٔ او د تابوت پر سر يې مړاوي ګلان په فرياد را وستلي وو...

پوليســو په تيارسي ډول صف جوړ او د خپل افـــسر و امر ته چمتو ولاړ وو. د قبر سر تــه يو ځوان چې جګه ونه يې درلوده، لوڅ سر د اوږدو وېښـــتانو، تورو وروځو او سپېرې څېرې سره ودرېد.

په همدې وخت کښــې د هغه بل لوري نه د پوليســو د آمر وچ بړغ پورته شو:

- ښاغلو...

جګ ځوان په لوړ آواز د هغه خبرې پرې کړې:

- ملګرو!

افسر خپل آواز له پخوا نه جګ او زياته يې کړه:

- اجازه را کړئ! غواړم درته اعلان کړم، چې د هېڅ وينا اجازه نه شته...

جګ ځوان په ارامه ور ياده کړه:

- زهٔ غواړم فقط څو کلمې ووايم! ملګرو! د خپـل اســتـاد او صـــميمي ملګري قبر ته سرونه ټيټوو او ســوګند خورو، چې هېڅ کله به د دهٔ وصــيتونه او تعليمات له ياده نه باسو. ټول عمر به د ګران وطن د بدبختۍ د منبع د قبر کېندلو لپاره د ژوند تر آخره پورې نه ستړی کېدونکی او نه پخلاکېدونکی زيار وباسو، تر څو چې مو د ظلم، استبداد او مطلق العنانۍ لمن نه وي ټوله کړي.

- بندي يې کړئ!- افسر دا امر وکړ، مګر آواز يې د خلکو د نارو تر منځ ورک شو، چې ويل يې:

- مړ دي وي استبداد!

پولیس د خلکو منځ تـه ور ولوېـدل او نطاق يې ونيو، هغه د ټولو خواوو نه احاطه، لاسو نه يې ښورول او نارې يې کړې:

- ژوندۍ دې وي آزادي!

مور يې يوې څنډې ته پورې وهله، هغې له وېرې پر صـليب باندې تکيه وکړه او د گوذار په تمه يې سترگې پټې کړې. له هر طرف نه غالمغال او آوازونو غوبړونه ور کاږهٔ کړې وو، څمکه د پښو د ترپهار لاندې رېږدېدله، باد هم په ډار کښې لوېدلی و او تنفس کول يې ستونزمن کړي وه. په هوا کښـې د پوليسـانو چيغو فضـا نيولې وه. بدرنگه آمرانه اوازونه پورته کېدل، ښـځو چيغې وهلې. د پښــو ترپهار پر وچه څمکه زوږ جوړ کړی وو. دې حالت ډېر دوام وکړ او پس له دې نور هم په پټو سترگو په تمه وه، د مور تر وس وتلي و.

دې سـترگې خلاصې کړې، چيغه يې وکړه او مخ ته يې ټوپ کړ، لاسونه يې خلاص نيولي وو. مور ته نژدې د قبرونو تر منځ پر نرۍ لاره پوليســو جگ ځوان را ايســار کړی و او د خلکو لـه ډلې څخـه يې، چې لـه هره پلوه يې پرې حمله کوله، لېرې کاوهٔ. ســپينې لوخړې تورې په هوا کښـــې ځلېدلې. د لرگيو او سوټيانو ټوټې هرې خوا ته رغړېدلې. له قهره ډکو فريادونو او نارو په فضا کښې وحشيانه گډوډي جوړه کړې وه. د جگ ځوان سپېره څېره له ورايه معلومېده او په خپل لوړ او دروند آواز يې ټول غالمغال تر تاثير لاندې را وســت، چې ويل يې:

- ملگرو! ولې بې فايدې ځانونه بربادوئ؟

نورو اطاعت وکړ، يو په بل پسې يې لرگي او سوټيان وغورځول او شا ته ولاړل. مور د يو نامعلوم ځواک په اثر نور هم مخ ته روانه وه. و يې ليدل چې د

نیکولای خولۍ پر سر کړه شـوې، له قهر او غضبه نشه خلک یې و شا ته پورې وهل او د دهٔ ګواښونکی آواز یې واورید:

- آیا لیوني شوي یاست؟... آرام شئ آخر!

د نیکولای یو لاس مور ته سور معلوم شو. د دهٔ و خوا ته یې ټوپ کړ او نارې یې کړې:

- نیکولای ایوانوویچ، لېرې شئ!

- تاسې چېرې منډې وهئ؟ هلته مو وهي، مه ځئ!..

سـوفیا مور تر اوږو ونیوله، مور ولیدل، چې سـوفیا یې و څنګ ته ولاړه، لوڅ سر، پرېشـانه وېښـتان او یو ځوان، چې تقریباً هلک ښکارېدهٔ، له بغل څخه یې نیولی و، هغه د وهلو له لاسـه زخمي شوی مخ پاکاوهٔ او په رېږدېدلو شونډو یې ویل:

- پرې مې ږدئ، زه جوړ یم...

سـوفیا د هلک لاس د مور په لاس کښـې ور کړ او خپله په چټکۍ ترې لاړه او ورته و یې ویل:

- د دهٔ پاملرنه وکړه او زموږ کور ته یې بوځه، دا دستمال واخله او زخمونه یې ور وتړه. بېړه وکړئ.... کنه بندیان کوي مو.

خلک د هدیرې و هرې خوا ته وپاشـل شول، ور پسې یې د قبرو تر منځ پولیس د خپلو اوږدو بالاپوښـو سره په درندو ګامو روان او ښـکنځل یې کول، تورې یې په لاسـونو کښـې نیولي وې او هرې خوا ته یې خوځولې. هلک په غضب ناکه سترګو دوی تعقیبول.

مور په دستمال باندې مخ ور پاکاوهٔ او و یې ویل:

- ژر شه، ځو!

دۀ له خولې نه وينې توف کړې او و يې ويل:

- تاسې تشويش مه کوئ... درد نه کوي. دۀ زه د تورې په لاستي ووهلم، ما په سوټي ښۀ وار پرې وکړ... آخر يې چيغې پورته شوې!..

دۀ په وينو سور سوک ښوراوۀ او په پرې کړي آواز يې وويل:

- صــبر وکړئ، تاســې ته به معلومه شي، کله چې ټول کارگران را پاڅي، موږ به تاسې له منځه يوسو، بې له دې چې در سره لاس او گريوان شو!

- ژر شه!- مور تلوار کاوه او په بېړه د هديرې د کټارې خوا ته ولاړه. دې فکر کـاوۀ، چې هلتـه پوليس د دوی پـه تمـه دي او ځنگـه چې ووځي، بريد به پرې وکړي؛ کله چې يې دروازه خلاصــه کړه او و يې کتل، معلومه شــوه، چې ميدان خالي دی او هېڅوک هم نه شــته، چوپه چوپتيا ده. دې حالت د مور زړۀ ارام کړ.

هلک ته يې پېشنهاد وکړ:

- پرېږده، چې زخمونه دي وتړم!

- پروا نه کوي، د زخمونو سره هم خجالت نه باسم. جنگ عادلانه وو، دۀ زه ووهلم، ما دی...

مور په بېړه زخمونه ور وتړل، د زړه سـوي نه يې سينه تنگه شوې وه؛ کله چې يې گوتو مرطوب تودوالی حس کړ، لـه ډاره ورېږدېدله. دې په چوپه خوله زخمي هلک له لاسـه نيولی و، ميدان ته يې را وسـت. هلک خوله له تړل شوي ټکر نه لږ آزاده او په تمسخر آواز يې وويل:

- ملگرې! تاسې کوم پلو ته ما کشوئ؟ زۀ په خپله هم تلای شم.

ولې مور دا حســول، چې دی کوږ ووږ روان دی، پښــې يې ټينګې نـه درېږي او لاسونه يې رېږدي. دۀ په ضعيف آواز خبرې کولې او بې له دې چې د مور ځواب ته په تمه سي، بيا يې ترې وپوښتل:

- زۀ حلبي ســاز او نوم مې ايوان دی.- تاســې ځوک ياســت؟ د ايګور ايوانوويچ په ګروپ کښې موږ درې تنه وو؛ درې تنه حلبي سازان، د ګروپ ټول شــمېر مو يوولس تنه وو. ډېره مينه مو ور سره درلوده، په آخرت کښــې جنتونه ورته غواړم؛ که څه هم زه خدای ته عقيده نه لرم...

په يو کوڅه کښـې مور ګاډی ونيوله، ايوان يې پکښې کښېناوۀ او په غوږ کښې يې ورته وويل:

- اوس چوپ شه!

او په احتياط سره يې د خولې پر زخم دستمال ور وتاړۀ.

دۀ لاس د خولې و خوا ته پورته کړ، خو و يې نه شول کولای، چې خوله خلاصه کړي، لاس يې بې حرکته پر زنګانۀ ولوېد، خو بيا هم تر دستمال لاندې له ځان سره ګڼ وو:

- ښـاغلو پوليسانو! دا زخمونه به ستاسې يادګار راته پاته وي او هېر به يې نه کړم... تر ايګور دمخه زموږ سره يو محصـــل هم کار کاوۀ... نوم يې تيتوويچ و... سياسي اقتصاد يې راته تشريح کاوۀ... وروسته بيا بندي شو.

مور ايوان په غېږ کښــې ونيو او د هغه سر يې پر خپله ســينه کښـېښـود، د هلک رنګ يو دم ژېړ او خاموش شو. مور ډار اخيستې وه، د سترګو لاندې يې شــاوخوا کتل، دې فکر کاوۀ چې اوس به د کومې خوا نه پوليس راشي، زخمي به وويني، را نه کش او مړ به يې کړي.

گاډی‌وان مخ ورته را واړاوهٔ او په خندا سره یې ترې وپوښتل:

- شراب یې څکلي؟ نشه دی؟

مور اه وکیښ او ځواب یې ور کړ:

- له حده یې زیات څکلي، بالکل لیونی دی!

- زوی مو دی؟

- بلې، موچي دی او زهٔ په خپله اشپزي کوم...

- ډېر ستونزمن کار دی...

گاډی‌وان شلاغ آس ته وښوراوهٔ، بیا یې مخ را واړاوهٔ او خبرو ته یې دوام ور کړ:

- اورېدلي مو دي، همدا اوس وایي په قبرستان کښې جنگ وشو، کوم کس یې ښخاوهٔ؛ یو سیاسي کس، د دغو کسانو څخه چې د حکومت څخه بد وړي... د دوی او حکومت تر منځ لکه چې مخالفت شته. پر جنازه باندې هم دا ډول خلک، د دغه سیاسي کس دوستان را ټول شوي وه او وایي چې هلته یې نارې وهلې: مړ دې وي حکومت، چې د خلکو وینه زبیښي... لکه چې پولیسو حمله ور باندې کړې ده او وایي، چې پکښې مړهٔ شوي هم دي... خو پولیسان هم ترې روغ نه دي تللي.

گاډی‌وان غلی شو، په حیرانتیا سره یې سر ښوراوه او په تشویش سره یې وویل:

- مړي هم په آرامه نه پرېږدي... جسدونه را ویښوي!

ګاډۍ د سړک پر ډېرو جمپ واهۀ، د ايوان سر د مور پر ځيګر په آرامۍ خوځېدۀ. ګاډۍوان چې د دوی خوا تـه مخ اړولی و، په متفکرانه ډول له ځان سره ګړ و:

- خلک په شـورشر راغلي... پر ځمکه بې نظمي ليدل کيږي. تېره شـپه زموږ د همسايه ګانو کره ژاندارم راغلي وو، تر سهار يې کورونه لټول، سهار يې يو آهنګر د ځان سره بوت. وايي چې د شـپې لخوا يې په پټه رود ته بيايي او هلته يې ډوبوي...نه پوهېږم ولې... آهنګر ډېر هوښيار او مهربان سړی وو.

- دا آهنګر څۀ نومېدۀ؟- مور پوښتنه ترې وکړه.

- آهنګر؟ نوم يې ساولي او کورنی نوم يې ايوچېنکو دی. تر اوسه ځوان او وايي چې په هر څۀ پوهېدۀ. معلوميږي لکه چې د پوهېدلو اجازه نه شـته. همېشـه به راتلۀ او پوښـتنه به يې را څخه کوله: «ګاډۍوانانو، ژوند مو څنګه دی؟» ځواب به مو ورکاوۀ:

« ژوند مو د سپي تر ژوند هم بدتره دی».

- صبر، و يې دروه!- مور ږغ پر وکړ.

هلـک د درېدلو په وخت کښـې د ګاډۍ د جمپ له لارې را ويښ او ځګيروی يې شروع کړ.

ګاډۍوان دۀ ته اشاره وکړه او ياده يې کړه:

- هلک ډېر نشه شوی دۀ! اخ ته ودکا- ودکا...

ايوان په ډېر تکليف ګامونه اخيسـتل، ټول بدن يې کوږ ووږ کېدۀ، ويل يې:

- پروا نه کوي... زۀ تلای شم...

«۱۳»

سـوفیا لهٔ وړاندې کور ته رسېدلي وه، په ډېر مشوشه ډول یې سګرېټ په خولهٔ، مور یې ملاقات کړه.

سـوفیا زخمي هلک پر کوچ باندې پرېوسـت، له سره یې دسـتمال څنې خلاص کړ، د سګرېټو له دوده یې سترګې رپېدې او په پالنه یې بوخته شوه.

- ډاکټر صاحب، ناروغ یې راوست! نیلوفنا ستړې یاست؟ ډېره وویریدې؟ استراحت وکړه. نیکولای، نیلوفنا ته یو ګیلاس شراب واچوه.

مور له سـتړیا په تکلیف تنفس کاوهٔ او روحاً تر فشـار لاندې وه، و یې ویل:

- تاسې زما له طرفه آرام اوسئ!..

ټول ځورېدلی وجود یې د پـالني او مهربـانۍ درخواسـت کاوهٔ. له بلې کوټې څخه نیکولای د تړل شـوي لاس سره او ډاکټر ایوان دانیلوویچ را ووتل. ډاکټر په چټکۍ سره د زخمي څنګ ته راغی، سر یې ور ټیټ کړ او و یې ویل:

- اوبه... ډېرې اوبه، پاک ټوکر..... او مالوچ راوړئ.

مور د اشپزخانې و خوا ته حرکت وکړ، اما نیکولای په خپل کیڼ لاس دا لـه لاسـه ونیولـه، د ډوډۍ خوړلو کوټې ته یې بوتله او په مهربانۍ سره یې ورته وویل:

- د سوفیا نه یې وغوښتل، تاسې ته نه وایي! نن مو ډېر تشویش حس کړ، بلې! تاسې ډېره مهربانه یاست!

مور دهٔ ته، چې په پاملرنه یې ورته کتل، نظر واچاوهٔ، زړه یې جوش وکړ، اوښکې یې له اختیاره ووتې او په ژړا سره یې وویل:

- دا څهٔ حال وو... خلک یې په تورو وهل... په تورو...

نیکولای سر ښــوراوهٔ، مور ته یې د شراب اچولو په وخت کې کتل او و یې ویل:

- و مې لیدل! دواړه طرفونه لږ گرم شـوي وو. تاسې آرام اوسئ، فکر کوم فقط یوکســشـدید زخمي دی، هغه یې زما و مخ ته وواههٔ او ولوېدئ او وروسته ما دی د خلکو له منځه را وکېښ...

د نیکولای خبرې او آواز، روښـــاني او تودې کوټې د مور زړهٔ آرام کړ، په ممنونیت سره یې نیکولای ته وکتل او ترې و یې وپوښتل:

- تاسې یې هم ووهلاست؟

- معلومېږي چې مـا پـه خپلـه پـه بې احتیـاطۍ سره د کوم شي سره لاس وهلی او پوسـت یې لږ پرې شوی دی. چای وڅښئ، یخ دی، کوم شی پر اوږو واچوئ.

دې لاس د پیالې و خوا ته اوږد کړ، و یې لیدل، چې گوتې یې د وینو په واســطه، چې پرې وچې شـــوي دي، ککړې دي. بې ارادې یې لاس پر زنگانه واچاوهٔ. لمن یې مرطوبه وه. سترگې یې خلاصې، وروځې یې پورته کړې، خپلو گوتو ته یې نظر واچاوهٔ، سر یې پرله گرځېد او زړهٔ یې ټپېدئ:

«ښایي، چې پاول هم یوه ورځ په دغه حالت کښې ووینم!»

ډاکټر په یوه کمیس کښــې، چې لســتوني یې پورته کړي وو، رانوت، د نیکولای غوښتونکي نظر ته یې په نرۍ آواز ځواب ور کړ:

- د مخ زخم يې وړوکی، خو د ککرۍ هډوکی يې مات دی، که څه هم ډېر زيات نه دی، ولې وينه يې ډېره ضايع شوې ده. هلک غښتلی دی، خو بيا هم بايد روغتون ته ولېږل شي.

- د څه لپاره؟ پرېږده چې همدلته تداوي شي.

- نن او سبا په هر صورت، اما پس له هغه، زما لپاره چې دی په روغتون کښې وي، کار اسانه دی، ځکه وخت نه لرم. د قبرستان د واقعې گذارش ترتيبول ته پر غاړه اخلې؟

- بلې، البته!

مور ارامه پاڅېده او د پخلنځي خوا ته ولاړه. نيکولای هغه ودروله او ورته و يې ويل:

- نيلوفنا تاسې چېرې ځئ، پرېږدئ، سوفيا پر خپل کار غښتلې ده!

نيلوفنا دۀ ته په تشويش سره نظر واچاوۀ، بې ارادې يې وخندل او و يې ويل:

- زۀ ټوله په وينو لړلې يم... ټوله!

مور په خپله کوټه کښې کالي بدلول او يو وار بيا د دې خلکو د زغم، ارامتيا او دا چې هر ډول تکليف په اسانۍ سره زغملای شي، په هکله په فکر کښې لوېدلې وه. دې فکر مور لږ پر سد را وستله او له زړۀ نه يې ډار ووت، هغه کوټې ته، چې زخمي پکښې پروت و، ور ننوتله، و يې ليدل، چې سوفيا د ځوان سر ته ځان ور خم کړی او وايي:

- وړکتوب دې کاوۀ، ملگريه!

هغه په ضعيف آواز ورته وويل:

- بلې، ستاسې د تکلیف لامل شوم!

- خبرې مه کوئ چې نقض درته لري...

مور د سوفیا شا ته ودرېده، لاسونه یې د هغې پر اوږو کښېښودل، په موسکا سره یې د زخمي هلک سپېرۀ مخ ته کتل او په خندا سره یې سوفیا ته کیسه وکړه، چې څه ډول دۀ په ګاډي کښې پرتې ویلې او په خپلې بې احتیاطۍ سره یې دا ووېروله. ایوان غوږ نیولی و او سترګو یې برق واهۀ. دۀ شونډې خوځولې، په آرامه لهجه او تشویش سره یې ویل:

- اخ... څومره احمق یم!

سوفیا شېرۍ پر سمه کړه او و یې ویل:

- موږ در نه ځو، ارام وکړه!

دوی د ډوډۍ خوړلو کوټې ته ولاړل او هلته یې ډېر وخت د دې ورځې د واقعو په هکله خبرې وکړې. بالاخره دا واقعه یوه ډېره لېرې ماضي ورته معلومېده، راتلونکي ته یې په اطمینان سره کتل او د سبا ورځې د کار ترتیب یې نیوئ. څېرې یې ستړي معلومېدې، اما فکرونه یې بشاش وو. هر کله چې به یې د خپلو کارونو په هکله خبرې کولې، خپل منفي ټکي به یې غندل. ډاکټر په عصباني ډول پر څوکۍ باندې ځان وښوراوۀ، په تکلیف سره یې خپل نری، تېز آواز ټيټ کړ او و یې ویل:

- تبلیغ، تبلیغ! دا اوس کفایت نه کوي، کارګر ځوانان حق په جانب دي! باید پراخ تیوریک ترویج پیل کړل شي. زۀ هم کارګران تائیدوم، چې یوازې ساده تبلیغ کفایت نه کوي!..

نیکولای په پرېشانه آواز یاده کړه:

- له هره ځایه څخه د مواد و د کموالي شــکایت راځي او موږ تر اوســه پورې هم نه شو کولای، چې یوه مکمله مطبعه ولرو. لودمیلا د ډېرو ستونزو سره مخـامخ ده، که چېرې ژر کوم کومکیکســـور نه کړو، حتماً به ناروغه او له کاره ولویږي...

په دې وخت کښې سوفیا پوښتنه وکړه:

- ویسوف‌شیکوف بې کاره دی؟

- دی نه شــي کولای، چې په ښار کښې پاته شي. دی باید په نوي مطبعه کښې کار وکړي. د لودمیلا لپاره یوکسلا تراوسه کم دی.

د دې خبرو په اورېدو سره مور په ټیټ آواز وپوښتل:

- د دې کار لپاره زهٔ ځنګه یم؟

نورو درو واړو د دې و خوا ته مخ واړاوهٔ او څو ثانیې چوپ و. آخر سوفیا چوپتیا ماته کړه:

- ډېر ښه نظر دی!

نیکولای په وچ آواز ځواب ور کړ:

- نه، دا کار ستاسې لپاره تکلیف دی، نیلوفنا! په دې صورت کښې باید له ښاره دباندې ژوند وکړې، د پاول سره ملاقات پرې کړې او په عمومي صورت...

مور ساه وکښله او یاده یې کړه:

- د پاول لپاره دا ډېره لویه ضـــایع نه ده. ما ته همدا رنګه، دا ملاقات مې یوازې پر زخم مالګې را پاشي. د هیڅ شي په باره کښې د خبرو اجازه نه شته، د زوی مخ تـه لېونۍ غوندې ولاړه یم، د هرې خوا نه یې ســـترګې او غوږونه راته نیولي وي، چې کومه اضافي خبره مې له خولې و نه وځي...

د وروستو ورځو واقعياتو مور روحاً ستړې کړې وه او دا چې د دې شونتيا را منځته شـــوې وه، تر څو دا د ښـــاري ژوند او له هغه سره د تړلو واقعيو څخه لېرې ولاړه شي، ډېره خوشاله وه او کوښښ يې کاوۀ، چې دا امکانات د لاسه ور نـه کړي، ولې نيکولای خبرې بلې موضـــوع تـه وګرځولې، ډاکټر ته يې مخ ور واړاوۀ او ترې و يې پوښتل:

- ته د څه شي په باره کښې فکر کوې؟

ډاکټر کښته اچولی سر پورته کړ او په نيولي آواز يې ځواب ور کړ:

- شـــمېر مو لږ دی، په دې باره کښـــې فکر کوم! بايد په ټول ځواک سره کار وشي... په هر صورت چې کيږي بايد پاول او آندري قانع کړو، چې له بنده وتښتي. دوی زموږ لپاره ډېر مهم او ناحقه بېکاره ناست دي...

نيکولای تندی تريو کړ، په شکمن ډول يې سر وښوراوۀ او د مور پر خوا يې نظر تېر کړ. نيلوفنا پوه شـــوه، چې د دې و مخ ته يې د زوی په هکله خبرې مناسبې نه ګڼې، نو يې کوټه پرېښودل او ووتله؛ په زړۀ کښې خفه وه، چې د دې خواهش پر غوږ و نه نيول شو. په خپله کوټه کښې پر چپرکټ په خلاصو سترګو غځېدلې وه، د دوی د آوازونو پس‌پسی يې اورېدۀ او اندېښمنه وه.

تېره شـــوي ورځ مور تـه نـامفهومه او له ګواښـــونکو اشـــارو ډکه وه، په تکليف سره يې د دې ورځې په هکله فکر کاوۀ او د دې لپاره چې دا خاطرې لۀ ياده وباسي، فکر يې د پاول و خوا ته را واړاوۀ. غوښتل يې چې پاول آزاد ووينې او په عين وخت کښې په وېره کښې وه: چې وضع هره ورځ شدت اخلي، د ټکر شـــونتيا زياتېږي، د خلکو د چوپتيا زغم له منځه ځي او ورځ په ورځ را پارېږي، د هرې خوا نه شـــديد اخطارونه، ټول کتله په حرکت راغلي... هرې اعلاميې په

بازار، دوکانونو او کوڅو کښې، د مزدورانو او کسبګرو تر منځ ولولې را وستې، د هر کس بندي کول په ټول ښار کښې حتی ډارن او ویدهٔ فکرونه را ویښول، چې د بندي کولو د علت په هکله فکر وکړي. مور هره ورځ حتی د ساده خلکو څخه هغه کلمې چې یو وخت یې دا په وېره کښې اچوله، لکه: انقلاب، اعتصاب، سوسیالیسټ، سیاست او نور اورېدل. که څه هم دا کلمې په ملنډو سره ادا کېدلې، مګر د دې ملنډو و شا ته قهر او وېره او د هیلي او ګواښ تفکر وو. د خلکو تر منځ نوي فکر په تدریجي ډول پراخوالی موند، ویښتیا را روانه وه، د عادي ارامتیا او زغم پایې په رېږدېدو راغلي وې. دا ټول شیان مور تر نورو ښهٔ لیدل، ځکه چې د ژوند ساده څېره ورته معلومه وه. له دې حالته هم خوشاله او هم په وېره کښې تللې وه؛ خوښي یې له دې جهته وه، چې د خپل زوی کار یې په دې کښې لیدهٔ او ډارېده، ځکه چې پوه وه، که چېرې پاول له زندان نه ووځي، حتماً د ټولو په مخکې دریږي او خطرناک ځای اشغالوي او ژوند یې برباد ورته برېښېدئ.

ځینې وختونه د زوی څېره د دې په تصور کښې د کیسو و قهرمانانو ته ورته ښکارېده او په دهٔ کښې ټول شرافت او دلاوري چې مور اورېدلې وه، ټول خلک چې د مور پر زړهٔ برابر وو، ټوله پاکي او اتلولي چې ورته معلومه وه، را غونډېدل. په دې وخت کښې به یې غرور را پاڅېد، له خپل ځان څخه به خوښه وه، د هیلو او امیدونو نه په ډک خاطر به یې فکر کاوهٔ:

«هر څه به په خیر تېر شي، هر څه!»

د دې مینه؛ مورنۍ مینه، را پاڅژده، پر زړهٔ به یې دومره فشار را وست، چې درد به یې پورته شو. دې مینې به یې د بشردوستۍ د علاقې په مقابل کښې

قرار نیوۀ او هغه به یې خاموشه کوله. د ستر او پاک حس پر ځای به یې د پرېشانی په سپېرو ایرو کښې دې فکر سر واهۀ:

«تباه کیږي.. له منځه ځي!..»

## «۱۴»

غرمه وه، مور د زندان په دفتر کښې د پاول مخ ته ناسته او په تشویش سره یې د دۀ لویې شوي ږیرې او غیرمنظم مخ ته سترګې نیولي وې او د داسي شیبې په تمه وه، چې پاول ته هغه رقعه، کومه چې یې د ګوتو تر منځ ټینګه نیولي وه، ور کړي.

پاول په ټیټ آواز وویل:

- زه جوړ یم او همدرانګه ټول جوړ دي! ستا صحت څنګه دی؟

- بد نه دی، ایګور ایوانوویچ مړ شو!

- رښتیا؟

- د ښخولو په مراسمو کښې د پولیسو سره جګړه ونښته، یوکسیې بندي کړ!- په ارامه او بې تفاوته لهجه مور دوام ور کړ.

د زندان د آمر مرستیال په تشویش کښې ولوېد، له څوکۍ پاڅېد او و یې ویل:

- دا ډول خبرې منع دي! په خپله پوهېږې، چې د سیاست په باره کښې د خبرو اجازه نه شته!

مور هم لـه څوکۍ پاڅېده او لکه چې پوهه شــوې نه وي، حق په جانبه لهجه سره يې وويل:

- زۀ په سـياسـت نۀ پوهېږم، ما خو د جنګ په باره کښې ورته وويل او دا جنګ رښتيا و، حتی د يوۀکسسر يې ور زخمي کړ.

- په هر صـورت، هيله کوم چې د ټولو شـيانو په باره کښــې چې په تاسې پورې شخصاً او ستاسې کورنۍ پورې اړه لري، هېڅ مه واياست.

د آمر مرســتيال پوه شــو چې دليلونه يې قانع کوونکي نه دي، بېرته خپل مېز ته کښېناست، د کاغذونو په کتلو بوخت شو او و يې ويل:

- مسؤليت ما ته راجع کيږي...

مور شــاوخوا وکتل، رقعه يې د پاول په لاس کښــې ور کړه او په ارامه يې ساه وکښله.

- نه پوهېږم چې د څه شي په باره کښې خبرې در سره وکړم...

پاول په خندا شو:

- زۀ هم نه پوهېږم چې د څه شي پوښتنه در څخه وکړم....

مرستيال په قهر سره ور ياده کړه:

- په دې صورت کښې مو د ملاقات ضرورت نه شته، نه پوهېږئ چې څۀ ووایاست او په خپل راتګ سره سردردی راته پېښوئ...

مور چوپ شوه او څنې و يې پوښتل:

- محاکمه به څه وخت وي؟

- څو ورځې مخکې څارنوال راغلی و او و يې ويل چې ژر به...

مور او زوی دواړو د بې معنا او غیرضروري موضــوعاتو په هکله خبرې کولې، مور لیدل، چې پاول په ډېرې مهربانۍ او مینې سره د دې مخ ته ســترګې ښــخې کړې دي. د پخوا په شــان ارام او بدلون یې نه و کړی، تنها ږیره یې ډېره لویه او لږ یې زوړ غوندې ځرګنداوۀ. لاسـونه یې هم له پخوا نه سپین شوي وو. دې غوښــتل چې پاول خوشــاله کړي او د نیکولای په باره کښــې خبرې ورته وکړي. نو بې لـه دې چې آواز بـدل کړي، پـه هماغـه پخوانۍ لهجه یې، چې د غیرضروري شیانو په باره کښې ږغېده، و یې ویل:

- ستا هغه ملګری مې ولید...

پـاول پـه ډېر دقـت سره د مور ســترګو تـه وکتـل. دې غوښــتـل چې د ویســوف‌شــیکوف کورکوري مخ ورته په یاد کړي، ځکه یې نو خپله ګوته پر باړخو ټکوله او زیاته یې کړه:

- ژوندی او جوړ دی، په دې ورځو کښې باید کار پیل کړي.

- شــکر چې جوړ دی!- پاول سر وښــوراوۀ او د خوښــۍ موســکا یې په سترګو کښې وځلېده.

مور چې د زوی له خوشالۍ څخه یوه نړۍ خوند یووړ، نو یې په خوښۍ سره یاده کړه:

- همدا، او بس!

د خدای په امانۍ په وخت کښې پاول د مور لاس ټینګ ونیو:

- مورجانې، ډېره مننه!

د زوی د نژدې والي لـه خوښــې نـه مور پـه کـالیو کښــې نه ځایېده، د رخصتېدو په وخت کښې یې مناسب کلمات پیدا نه کړای شول، ځکه یې نو په پټه خوله د لاس په کښېکښلو ځواب ور کړ.

په کور کښــې مور ســاشــېنکه ولیده. نجلۍ معمولاً په هغو ورځو کښــې راتلـه، چې مور بـه د پـاول سره ملاقـات درلود او هېڅ وخـت یې د پاول په باره کښې پوښتنه نه کوله، خو کله چې به مور په خپله په دې باره کښې خبرې کولې، ساشېنکه به په ډېره توجه د مور مخ ته کتل او په دې عمل به یې اکتفا کوله.

خو نن دې په خپله په تشویش سره ځنې وپوښتل:

- ښه، د دهٔ حال څنګه دی؟

- جوړ او ورغ وو!

- رقعه دې ور کړه؟

- البته، په ډېره چالاکۍ مې په لاس کښې ورکښېښوده....

- دهٔ ولوستل؟

- نه، هلته هېڅ امکانات نه شته!

- هو، بلې، زما بالکل هېر و، خیر په هر صورت یوه اونۍ به بله هم په تمه سو، یوه اونۍ. تاسې څه فکر کوئ، دی به موافقه وکړي؟

مور په فکر کښې وه او ځواب یې ور کړ:

- زهٔ نه پوهېږم، خو که دا کار بې خطره وي، ولې باید مخالفت وکړي!

ساشېنکه سر وښوراوهٔ او په وچ آواز یې وپوښتل:

- تـاســې پوهېږئ چې ناروغ ته څه شي ښــه دي؟ دی ډېر وږی دئ او غواړي چې کوم شی وخوري.

- هر شی ورته ښه دي، هر! زۀ به اوس د دۀ غم وخورم...

مور و پخلنځي ته ولاړه، ساشېنکه هم ور پسې رهي شوه:

- زۀ به مرسته در سره وکړم؟

- نه مننه، اړتیا نه شته!

مور سر ټیټ کړ، چې لوښي را واخلي. نجلۍ په ګونګه لهجه ورته وویل:

- صبر وکړئ...

د نجلۍ څېره واوښتله، سترګې یې غلي غوندې شوې، رېږدېدلو شونډو یې په تېزه لهجه ادامه ور کړه:

- ما غوښتل چې له تاسې هیله وکړم، زه پوهېږم چې دی مخالفت کوي، کوښښ وکړئ چې قانع شي، ورته ووایاست چې ډېر ضرورت ورته لرو. زه وېرېږم چې دی هلته ناروغ نه شي. و مو لیدل چې لا یې هم د محاکمې ورځ نه ده ټاکل شوې...

معلومېده چې دا په تکلیف سره خبرې کوي، د خبرو په وخت کښې یې مور ته مخامخ نه کتل، آواز یې منظم نه و، سر یې کښته نیولی و او شونډې یې چیچلې، ګوتې یې کښېکښلې چې بندونو یې ږغ کاوۀ.

مور د دې ولولو تر تاثیر لاندې راغلې وه، خو په مقصد یې پوه شوه، په تشویش سره یې په غېږ کښې ونیوله او ورته و یې ویل:

- پر ما ګرانې، تاسې پوهېږئ چې پاول بې لۀ ځانه بل د هېچا خبره نه اوري، د هېچا!

دوی دواړو یو بل په غېږ کښــې ټینګ نیولي وو او چوپ وې، وروســته نجلۍ په احتیاط سره د مور لاسونه د خپلو اوږو څخه واخیستل او په نیولي آواز یې وویل:

- بلې، تاســې ریښــتیا وایاســت! بې ځایه مې دا خبره یاده کړه، اعصــاب مې...

یو دم یې څېره جدي شوه او په ساده توګه یې خبرې دا ډول ختم کړې:

- په هر صورت، راځه چې ناروغ ته خواړه برابر کړو.

نجلۍ د ناروغ بســتر ته کښېناســته، له پاملرنې او مهربانۍ نه په ډکه لهجه یې پوښتنه ترې وکړه:

- د سر درد مو ډېر شدید دی؟

- نه، ډېر درد نه کوي، خو ټوله شــیان مې په نظر کښــې مبهم برېښــي او ضعیف غوندې یم!- ایوان دا وویل او شړۍ یې تر زنې پورې پر ځان کش کړه، ســترګې یې په تېزۍ سره لکه تېز نور چې پر برابر شــوی وي، رپېدې. ساشېنکه حس کړه، چې د دې و مخ تــه خجالــت باسي او تصــمیم نه لري، چې ډوډۍ وخوري، ځکه نو پاڅېده او ووته.

ایوان پر بســتر کښېناست، په رپېدونکو سترګو یې نجلۍ تعقیب کړه او له ځان سره یې وویل:

- څومره ښکلې ده!..

د ایوان ســترګې روښــانه او بشاشې وې، غاښونه یې میده او منظم او آواز یې تر اوسه لا نری و.

مور په فکر کښې تللې او پوښتنه یې ځنې وکړه:

- د څو کلونو یاست؟

- اووه لس کلن یم...

- مور او پلار دې چېرې دي؟

- په کلي کښې، لس کلن وم، ښوونځی مې خلاص کړ او دلته راغلم.

وبخښئ ملګرې، ستاسې نوم؟

مور ته همېشه دې ډول خطاب خوند ور کاوۀ، اوس هم په موسکا شوه او و یې پوښتل:

- د څۀ لپاره غواړې چې زما نوم زده کړې؟

هلک خجالت غوندې شو، غلی شو او وروسته یې یاده کړه:

- پوهېږې، زموږ د ګروپ څخه یوه محصل، یعنې هغهکسچې زموږ سره یې کار کاوۀ، د پاول ولاسوف په نوم کارګر د مور په باره کښې کیسې راته کړې وې. د مې د لومړی د مظاهرې موضوع درته معلومه ده؟

مور سر په مثبته علامه وښوراوۀ او دقیقه شوه.

- پاول لومړیکسو، چې په ښکاره ډول یې زموږ د حزب بیرغ پورته کړ!- هلک دا په ډېر غرور او ویاړ سره یاده کړه. د دې غرور انعکاس د مور په زړۀ کښې هم ښکاره شو.

- زۀ په هغه مظاهره کښې نه وم، موږ غوښتل چې دلته خپله مظاهره ترتیب کړو، خو و نه شوه! موږ هغه وخت لږ وو، خو په راتلونکي کښې به یې ووینې!..

زخمي هلک د راتلونکو واقعیاتو په فکر د خوشالۍ نه په ولولو راغی، کاچوغه یې په هوا کښې وښوروله او خبرو ته یې دوام ور کړ:

- مقصد دا چې دغه ولاسوفا؛ یعنې د پاول مور، هم پس لۀ هغه حزب ته راغله، وایي چې ډېره په زړۀ پورې ښځه ده، ډېره.

مور په خندا شوه، د هلک د خبرو څخه د ځان په هکله ډېره راضي وه، راضي او په عین وخت کښې ناراحته. غوښتل یې چې ووایي: «دا زه یم، ولاسوفا!» مګر ځان یې ټینګ کړ، په ملنډو او خفګان سره یې ځان ته وویل: «اخ، زه، زړه احمقه...»

د ناروغ و خوا ته یې سر ټیټ کړ او په ولولو سره یې ورته وویل:

- تاسې مو خواږه وخورئ، ډېره وخورئ چې ژر جوړ او ښۀ کارونه وکړئ.

دروازه خلاصه شوه، د مني سوړ یخ حس شو، سوفیا خوشاله، د سرو باړخوګانو سره راننوتله:

- جاسوسان مې د هغو عاشقانو غوندې، چې د شتمنې ناوې په خدمت کښې ولاړ وي، څارنه کوي. زۀ باید د دې ځایه ولاړه شم... ایوان، ستا څه حال دی؟ ښه یې؟ پاول څنګه و، نیلوفنا؟ ساشېنکه دلته ده؟

سګریټ یې په خوله کښې، بې له دې چې د ځواب په تمه سي، پوښتنې یې کولې، مور او ایوان ته یې په مهربانۍ سره نظر اچاوۀ، مور دې ته کتل، په زړه کښې یې خندا راتله او فکر یې کاوۀ:

«دا دی زما څخه هم ښه انسان جوړیږي!»

او بیا یې د ایوان خوا ته سر ټیټ کړ او و یې ویل:

- بچیه، صحت دې غواړم!

او د ډوډۍ خوړلو کوټې ته ولاړه. سوفیا ساشېنکه ته کیسه کوله:

- هلته یې اوس درې سوه شمېرې تیار کړي، دا ښځه ځان په دومره کار باندې بربادوي! او دا اصلي اتلولي ده! پوهېږې ساشېنکه دا ډېره نېکمرغي ده، چې د دغه ډول خلکو سره سړی ژوند او کار وکړي، د دوی ملګری اوسي...

- بلې، پوهېږم!

ماښام د چایو چښلو پر وخت سوفیا مور ته وویل:

- نیلوفنا، تاسې باید یو وار بیا کلي ته ولاړه شئ.

- ولاړه به شم، څه پروا لري، کله؟

- درې ورځې وروسته، کولای شې؟

- بلې...

نیکولای هم په ارامه نظر ښکاره کړ:

- دا پلا پیاده مه ځئ، د پوستې آسونه کرایه کړئ او د بلې لارې څخه؛ یعنې د نیکولسکي د سیمي څخه لاړ شئ.

دی چوپ شو او تندی یې تریو ونیو. دا حالت د دهٔ سره ښهٔ نه ایسېدئ، حیرت ناکه معلومېدی، ښکلا یې د لاسه ور کوله او د ارامتیا وضعې یې بدلون وکړ.

وروسته مور خپل نظر داسې څرګند کړ:

- د نیکولسکي لاره ډېره لېرې او د آسانو کرایه هم ډېرې پیسې کیږي...

- زهٔ اصلاً د دغه تګ مخالف یم، هلته اوضاع ناآرامه ده، یو تن ښوونکی یې بندی کړی هم دی، احتیاط په کار دی. باید کوم مناسب وخت ته په تمه سو...

سوفیا ګوتې پر میز ټکولې او یاده یې کړه:

- هلته مهمه دا ده چې د موادو په خپرولو کښې وقفه را نه شـي. آیا تاسې نه ویرېږئ، نیلوفنا؟

مور ځان حیران حس کړ:

- آیـا کوم وخـت زه وېرېدلې یم؟ حتی لومړی ځل مې بې له ډاره دا کار کړی دی... او اوس را څخه پوښتنه...

نیلوفنا خپله جمله هم ختمه نه کړه، سر یې کښـته واچاوهٔ. هر وخت چې بـه یې له دې نه پوښــتنه کوله: آیا وېرېږې؟ آیا تکلیف نه دی درته؟ آیا کولای شــې چې دا یا هغه کار وکړې؟- مور په دې ډول پوښــتنه کښــې حســول، چې د نومړي کار د ترسره کولو په هکله خواهش ترې کیږي، دې ته ښکارېدل، چې خلک دا له ځانه څخه لېرې کوي او نســبت و هغې رابطې ته، چې په خپل منځ کښې یې سره لري، د دې سره بل ډول چلند کوي.

ساه یې وکښله او خپله خبره یې بېرته ونیوله:

- نه پوهېږم چې ولې تاسې زما څخه پوښتنه کوئ، چې آیا نه وېرېږم او په خپله یو د بل نه په دې هکله پوښتنه نه کوئ.

نیکولای په چټکۍ سره عینکې وکښــلې او بېرته یې پر ســترګو کړې، په دقت سره د خور مخ ته متوجه شـو. د تشویشه ډکې چوپتیا مور پرېشانه کړه، په ملامته څېره پاڅېده، غوښتل یې چې کوم شی ووایي، خو سوفیا له لاس نه ونیوله او په کراره یې خواهش ترې وکړ:

- بخښنه غواړم! پس له دې به دا کار و نه کړم!

دې خبرې مور په خندا را وستله او څو دقیقې وروسته دوی درې واړو په دوستانه ډول و کلي ته د تګ په باره کښې خبرې کولې.

«۱۵»

د سهار په خړه کښې مور د پوستې په ګاډۍ کښې، چې د مني په باران کښې پر لاندۀ سړک آسانو کشوله، ناسته وه. يخ شمال چلېدئ او د ختو ټوټې هر طرف ته غورځېدې. ګاډۍوان د مخ پر تخته ناست، د مور و خوا ته يې مخ را واړاوۀ او په فکر کښې ډوب تللی و، د شکايت نه په ډکه لهجه يې وويل:

- ما دۀ ته وويل؛ ورور ته مې، راشه سره ويې ويشو! او ويش مو شروع کړ...

دۀ يو دم د کيڼ لاس آس په شلاغ وواهۀ او نارې يې کړې:

- هله، د شيطان بچيه چټک ځه!..

د مني چاغ کارغان پر خالي ځمکه باندې دې پلو ها پلو ګرځېدل، سوړ باد شپيلک واهۀ. کارغانو د شمال و خوا ته خپلې غبرې خلاصې کړې وې او بڼکې يې باد اخيستې وې، کله چې به د شمال سرعت زياتېدۀ، دوی به خپل مقاومت د لاسه ور کړئ، لوی وزرونه به يې وښورول، د يوه ځای نه به والوتل او پر بل ځای به کښېناستل.

ګاډۍوان بېرته خپلو خبرو ته دوام ور کړ:

- په دې ويش کښې نو دۀ زما غاښونه را وايستل... ومې ليدل چې هېڅ چاره نه شته.

مور د دۀ خبرې لکه په خوب کښې چې وي، اورېدلې. په فکر کښې يې يو لړ حادثې چې په اخېرو څو کلونو کښې ورسره مخامخ شوې وه، را ګرځېدې

او خپـل موقف يې د دې واقعيو پـه منځ کښــې ليدئ. پخوا ورته معلومه نه وه، چې ژونـد د چـا لـه خوا او د څـه لپـاره منځ ته راغلی دی، خو اوس ډېر کارونه دي، چې د دې و مخ تـه او د دې په کومک سره وړاندې ځي. دې فکر په مور کښــې د ځان په هکله د خوښــۍ او بې اعتمادۍ مبهم او پېچلی حس، چې له ضعف او خفگان سره ګډ وو، را پاڅاوۀ...

شـاوخوا ټولو شـيانو په يوه ارام حرکت سره اهتزاز کاوۀ، په اسـمان کښې تورې وريځې پـه تکليف يو له بل نه تېرېدلې. د ســړک دواړو خواوو ته لندې ونې چې سرونه يې ښــورېدل، د ســترګو نه پاته کېدلې، خالي ميدانونه يو په بل ګډېدل، غونډيو سر ښکاره کاوۀ او شا ته نهامېدلې.

د ګـاډیوان تونـد آواز، مرطوب شــپېلک او د باد زوږ سره ګډ وو او د مارپېچه تپاندې ولې په شــان په دښــت کښــې په ثابت څواک سره جاري وو. ګاډیوان همدرانګه د تختې پر څنډه ناست او زياته يې کړه:

- شـتمن خلک په جنت کښـې هم ځان تنګ حسـوي- همېشه همداسې ده. آخر مې ورور تر فشار لاندې را وستم، دی په حکومت کښې ملګري لري!

کله چې تم ځای ته راورسېدل، آسونه يې خلاص کړل او مور ته يې بې له اميده وويل:

- کـاشــکې دي يو پنځـه کوپيکه را کړي وای، يو ګيلاس شراب به مې څکلي وای.

يوه سکه يې مور په لاس کښې ور کړه، ګاډیوان څو واره پورته کښته په هوا کښې وغورځوله او په هماغه لهجه يې ور زياته کړه:

- په درو کپيکو يې ودکا خورم او په دوو کپيکو ډوډی...

ماپیښــین و چې مور ســترې ســتومانه د نیکولسـکي کلي ته را ورسـېده، مسـافرخانې ته راغله، چای یې ځان ته را وغوښـتې، کړکۍ ته کښېنستله او خپل دروند بکس یې تر څوکۍ لاندې کښـېښــود. د کړکۍ نه کوچنی میدان چې په ژېړو وښــو پټ وو او د کلي د ادارې تعمیر، چې ســپېرهٔ تیرهٔ رنګ یې درلود، د نامنظم بام سره معلومېدل. د ادارې په زینو کښــې یو ســړی، چې خریلی سر او اوږده ږیره یې درلوده، په یوه کمیس کښې ناست او پیپ یې څکاوهٔ.

پـه وښــو کښـــې یوه سرکوزي څړ کاوهٔ، چې په شـــکایت ناکه ډول یې غوړونه څنډل، خوله یې پر ځمکه باندې ایښې او سر یې ښوراوهٔ.

تورې اوریځې پـه هوا کښـــې روانې او یو پـه بـل ګـډېدلې. خاموشي او غمجنه چوپتیا حاکمه وه، داســې برېښــېدل، چې ژوند کومې نامعلومې خواته روان او په یوه بې پایه دریاب کښې ورکیږي. په دې وخت کښې نابره یوکسپر آس سـپور راغی، سـور آس یې د ادارې زینو ته ودراوهٔ. شلاغ یې په هوا کښې ښـورول، هغه سـړي ته، چې سر یې خریلی و، په نارو او قهر سره کوم شی وایهٔ، آواز یې د کړکۍ د ښیښو سره ټکر کاوهٔ او کلمات یې نه سره بیلېدل. هغه سړی پـاڅېـد، لاس یې اوږد کړ او لېرې یې کوم ځای ته اشــاره وکړه.کســد آس نه ځمکې ته را وغورځېد. جلو یې د سر خریلي ســړي په لاس کښــې ور کړ، په چټکۍ سره په زینو کښې پورته او د ادارې په دروازه ننوت او پټ شو...

بیـا خـاموشـــی ځواک پیـدا کړ، آس دوه ځلې ښــنګري پر نرمه ځمکه وټکول. کوټې ته یوه نجلۍ چې پېچلي لنډ وېښــتان او په ګردي مخ کښــې یې ســترګې مهربانه رپېدلې، راننوته. شونډې یې تر غاښو لاندې نیولې، په خلاصو لاسو کښې یې زوړ پتنوس، چې د لوښو نه ډک و، درلود.

مور په مهربانۍ سره ورته وویل:

- سلام، ګلالۍ!

- سلام!

نجلۍ د مور مخ ته پر مېز قابونه او نور د چايو لوښــي ايښــودل او يو دم يې په ژوندي آواز وويل:

- يو غل يې نيولی دی، اوس يې راولي!

- دا غل څوک دی؟

- خبره نه يم...

- غل څه کړي و؟

- زه نـه يم خبره، مـا مطلق واورېـدل چې نيولی يې دی، محـافظ پـه آمر پسې لاړ، چې خبر ور کړي.

مور د کړکۍ نه وکتل، په ميدان کښــې خلک را ښــکاره شــول، ځينې په ارامه روان وو او ځينې نور چټک تلل او د تګ په وخت کښــې يې د بالاپوښــو تنۍ تړلې؛ د ادارې زينو ته ودريدل، ټولو و کيڼې خوا ته سترګې نيولي وې.

نجلۍ هم کوڅې تـه وکتـل، پـه ټوپ لـه کوټې څخـه ووته او دروازه يې وتړله. مور ووېرېدله، خپل بکس يې نور هم پورې واهۀ او پټ يې کړ، پر سر يې شـال واچاوۀ او د دروازې خوا ته ولاړه،کوښښ يې کاوۀ چې خپله عادي وضع وساتي...

کله چې زينو ته راغله، سوړ يخ يې په سترګو او سينه ننوت، آه يې وکېښ او پښې يې د لرګيو په شان وچې شوې. د سړک په منځ کښې ربين، لاسونه د شا

و خوا تـه تړلي، روان و، پر اړخ يې دوه محافظان ور سره تلل. د ادارې په زينو کښې د خلکو ډله ولاړه وه او په خاموشۍ سره په تمه وه.

مور په وارخطايي او تشويش سره کتل، ربين کوم شی وايۀ، آواز يې مور واورېـد، خو کلمات يې د دې د زړۀ پـه خالي رېږدېدونکي تيارۀ فضــا کښــې ورکېدل.

په تکليف سره يې عادي حالت ونيو، سترګې يې خلاصې شوې، پر زينو باندې يو سړی د پراخې روښانې بړيرې سره ولاړ و او خپلې شنې سترګې يې په دقت سره د دې مخ ته نيولي وې. مور ټوخل او له ويرې نه يې په ضـعيفو لاسو ستونی نيولی و او د سړي نه يې په تکليف سره پوښتنه وکړه:

- دلته څه کيسه ده؟

- هغه دی، ورته وګورئ- سړي دا وويل او مخ يې واړاوۀ.

يو بل سړی هم راغی او پر څنګ يې ودرېد.

محافظان د خلکو د ډلې مخ ته چې وار په وار په خاموشۍ سره زياتېدل، ودرېدل، يو دم د ربين ګڼ آواز پورته شو:

- وطنوالو! هغـه پاڼې مو در په ياد دي، چېرې چې زموږ دهقانانو د ژوند په باره کښـې حقيقت نوشته و، دغه دی زۀ د هغه  حقيقت قرباني يم، هغه پاڼې ما خلکو ته وېشلې...

خلـک د ربين پر شـــاوخوا را وګرځېدل. د دۀ آواز په ارام او منظم ډول پورته کېدئ او دې حالت پر مور تاثير کاوۀ، چې عادي وضع ونيسي.

- ښه دې واورېدل؟- يوهکسد شين سترګي سړي څخه پوښتنه وکړه، هغه بې له دې چې ځواب ور کړي، سر يې پورته کړ او بيا د مور مخ ته دقيق شـــو.

هغه بلکسهم مور ته وکتل. دی له لومړي سړي ځوان ښکارېدهٔ، بڼیره یې تارتار راغلې، مخ یې ډنګر او تور کوچني خالونه یې درلودل، وروسته دواړه د زینو څخه لېرې ولاړل.

- «وېرېږي!»- مور له ځان سره دا فکر وکړ.

مور په احتیاط او توجه څارنه کوله، له لوړې زینې نه یې کولای شول چې د ربین تور، شین وهل شوی مخ په ښهٔ ډول ووینې، د هغه د سترګو توده ځلا یې حسوله، غوښتل یې چې ربین هم دا ووینې، ځکه نو د پښو پر ګوتو ودرېده او سر یې جګ ونیو.

خلکو په نیولي ډول او بې اعتمادۍ سره بې له دې چې څه ووایي، دهٔ ته کتل. یوازې د ډلې د شا و خوا ته په پای کښې د خلکو خبرې اورېدل کېدې.

د ربین جګ آواز بیا پورته شو:

- وطنوالو! پر هغو پاڼو باندې باور ولرئ، زه هم پرې باور لرم او د هغو په خاطر ښایي له ژونده هم تېر شم، ویې وهلم، شکنجه یې کړم، غوښتل یې چې ورته ووایم، د کومه ځایه زه دا پاڼې تر لاسه کوم. بیا به مې هم ښایي شکنجه کړي، ټوله به وزغمم، ځکه چې په دې پاڼو کښې حقیقت پروت دی. رښتیا او حقیقت باید زموږ لپاره تر ډوډۍ هم ضروري او ګران وي...

یوکسچې زینو ته نژدې ولاړ و، پوښتنه وکړه:

- د څه لپاره دی دا وایي؟

شین سترګي سړي په ارامه ځواب ور کړ:

- اوس نو ورته بې تفاوته ده. انسان دوه ځله نه مري، د یو ځل نه چاره نه شته.

خلک چوپ وو، څېرې يې غمجنې ښـــکارېدې، معلومېدل چې د ټولو پر اوږو يو نه ليدونکی دروند بار پروت دی.

هغهکســـچې پر آس راغلی و، د ادارې د دروازو نه زينو ته راووت، يوه بغل، بل بغل ته کوږ ووږ کېدئ، په نشه غوندې آواز يې نارې کړې:

- دا خبرې څوک کوي؟

يو دم له زينو راکښته او ربين يې له وېښتانو ونيو، سر يې د شا او مخ خوا ته ځنې وځنډئ او و يې ويل:

- دا ته يې چې لا هم خبرې کوې، د سپي بچيه، دا ته يې؟

د خلکو ډله سره وښـــورېده، په شـــور راغلل. مور له ډېره غمه سر کښـــته واچاوهٔ، د ربين آواز بيا واورېدل شو:

- دا دی، وگورئ، اې شريفو خلکو...

- چوپ!- هغـه دا ورتـه وويل او د غوږ په بيخ کښـــې يې ټينگ ســـوک وواههٔ، ربين سره وخوځېدهٔ او اوږې يې پورته کړې:

- د سړي لاسونه وتړئ او څنگه چې يې زړهٔ غواړي، ځوروئ يې!

- محافظينو! دی بوځئ! خلکو، ځئ په خپلو کارونو پســـې!- دی د ربين مخ ته د ځنځيري ســـپي په شان، چې د غوښو د ټوټې په لور حوصله د لاسه ور کړي، غورځېدئ، په مخ، ځيگر او نس کښې يې په سوکانو واههٔ.

د خلکو له منځه د يوهکسږغ پورته شو:

- بس ده، د وهلو حق نه لرې!

په تعقيب سره يې بل آواز پورته شو:

- د څه لپاره يې وهې؟

- راځه چې ځو!- شین سترګي سړي خپل ملګري ته وړاندیز کړه او په آرامه رهي شو. مور په مهربان نظر بدرګه کړ او په اسانۍ سره یې تنفس وکړ. وهونکسبیا و زینو ته پورته شو، ګواښونکی سوک یې په هوا کښې نیولی و او په غرغر سره یې ناري کړې:

- زهٔ درته وایم... دلته یې راولئ!

د شا له خوا دروند بږغ پاڅېد:

- نه، مه یې وروليئ!

مور پوه شوه چې دا د هماغه شین سترګي سړي بږغ دی.

- ورونړو، مه یې پرېږدئ. هلته یې بیايي او تر مرګه یې وهي او وروسته یې بیا پر مورړ تاوانوي، چې ګواکې مورړ وژلی دی. مه یې پرېږدئ.

ربین بیا پر خبرو راغی:

- دهقانانو! آیا تاسې خپل ژوند نه وینئ، آیا نه پوهېږئ، چې څه ډول مو کالي کاږي، په څه شکل مو وینه څښي. هر څه په تاسې پورې اړه لري، د ځمکې پر مخ لومړی ځواک تاسې یاست او څه حقوق در کړل شوي دي؟ یوازنی حق مو دا دی، چې له لوږې مړه شئ!..

دهقانانو یو په بل پسې ناري کړې:

- ربښتیا وایي!

- آمر را خبر کړئ، هغه چېرې دی؟

-کسپسې تللی دی!

- نشه دی!..

- د آمرینو را غونډول زموږ کار نه دی...

غالمغال نور هم وار په وار ډېرېدئ.

- ووایه، خبرې کوه، نه یې پرېږدو، چې و دې وهي...

- لاسونه یې ور خلاص کړئ...

- ګورئ، اول فکر وکړئ...

ربین په لوړ آواز چې نور یې تر تاثیر لاندې را وستل، وویل:

- لاسونه مې درد کوي! وروڼو، زه نه تښتم! د حقیقت نه پټېدلای نه شم، ځکه چې هغه زما په وجود کښې دی...

څو تنه په آرامۍ د ډلې څخه بېل شول، په ټيټه لهجه یې یو د بل سره خبرې کولې او سرونه یې ښورول. خو د ډلې شمېر وار په وار د هغو خلکو په واسطه، چې زاړۀ کالي یې اغوستي او سخت لمسېدلی وو، ډېرېدۀ.

دوی د ربین پر شاوخوا په جوش راغلل او دی یې د یوې کلیسا په شان، چې په ځنګله کښې ولاړه وي، معلومېدئ، لاسونه یې پر سر پورته نیولي، خوځول یې او ډلې ته یې په خطاب سره ویل:

- مننه، مهربانو خلکو، مننه! موږ باید په خپله یو د بل لاسونه آزاد کړو، که موږ او تاسې له یو بل سره مرسته و نه کړو، څوک به له موږ سره مرسته وکړي؟

دۀ پر بېره لاس تېر کړ او بیا یې لاسونه، چې ټول په وینو لړلي وو، پورته کړل:

- دغه ده زما وینه چې د حقیقت پر لاره تويیږي!

مور د زینو نه کښته شوله، خو د ځمکې ځخه نه ورته معلومېدی، ځکه چې د خلکو تر منځ ورک و، بېرته پورته شوله. زړهٔ یې په جوش راغی او یوه نامعلومه خوښي پکښې حسیدله.

- دهقانانو! هغه کوچنی پاڼې تر لاسه کړئ، و یې لولئ، د حکومتي کسانو او پاچانو خبرې، چې وایي بې‌خدایان او غلهٔ دا پاڼې لیکي، مه منئ. حقیقت پر ځمکه ګرځي او د خلکو په زړونو کښې ځان ته ځای لټوي. حقیقت د حکومت لپاره د چړې او اور په څېر دي، نه یې شي قبلولای، ځکه چې غاړې یې ور پرې کوي او سوځوي یې! حقیقت ستاسې لپاره یو مهربان ملګری او د حکومت لپاره یو سرسخت دښمن دی! اوس وپوهېدلاست، چې حقیقت ولې خپل ځان پټوي؟..

بیا د خلکو تر منځ یو ځای او بل ځای بړغ پورته شو.

- وطنوالو، غوږ ونیسئ!..

- اې، بېچاره ژوندی به دې وخوري...

- ته کوم خاین ور وښودلې؟

یوه محافظ ځواب ور کړ:

- پاپ!

د دې کلمې په اورېدو سره د دوو تنو دهقانانو تر خولې غلیظ ښکنځل ووتل.

- ورونو، هوښیار اوسئ!- له بلې خوا دا اخطار لرونکی بږغ واورېدل شو.

«۱٦»

د خلکو د ډلې خوا تـه د کلي حاکم را روان و، جگ پیاوړی ســړی و، خولۍ یې پر سر کېږه، یو برطت یې لوړ تاو شـوی او بل کښته را لوېدلی و، چې په دې ډول یې مخ هم کوږ معلومېدی او مړې موسکا یې څېرې ته احمقانه بڼه ور کړې وه. ښی لاس یې په هوا کښې ښوراوۀ او په کیڼ لاس کښې توره ور سره وه. درانۀ او محکم گامونه یې ایښودل. خلک یو پلو او بل پلو ته کېدل او دۀ ته یې لار خلاصـوله. د دۀ په راتگ سره د خلکو پر څېرو کرکه خپره شـول، شـور غلی شـو. داسې ښکارېدل، لکه ټول چې ځمکې جذب کړي وي. مور ولیدل، چې پر تندي باندې یې پوسـت رېږدي او سترگې یې گرمې شوي دي او بیا یې وغوښـتل، چې د خلکو منځ ته ور ننوزي. مور سر خم کړ او په تمه کښـې وچه پاته وه.

حاکم د ربین مخ ته راغی، سترگې یې شاوخوا واړولې او و یې ویل:

- څه خبره ده؟ لاسونه یې ولې خلاص شوي؟ ور و یې تړئ! ساتونکو!

غبږ یې نری او جـگ، خو بې خونده و. یوه د محافظینو څخه ځواب ور کړ:

- لاسونه یې تړلي وو، خلکو ور خلاص کړل!

- څه شی؟ خلکو؟ کومو خلکو؟

حاکم شاوخوا خلکو ته وکتل او په هماغه جگ آواز یې زیاته کړه:

- څوک دي؟ دا خلک، اولس؟

د تورې په سر یې د شین سترگي سړي سینه وچخوله:

- دا ته چوماکوف اولس یې؟ بل څوک دی؟ میشین ته یې؟

او یوکسیې له بړیرې ونیو او کش یې کړ:

- بې شرفو، پست فطرتو، ځئ لاړ شئ، کنه زه به مو خوښ شم.

د دهٔ په څېرهٔ کښې قهر او ګواښ نه معلومېدهٔ، په آرامه یې حرکت کاوهٔ او په عادي وضعیت یې په خپلو اوږدو لاسونو خلک وهل، خلکو د دهٔ په مقابل کښې مقاومت نه کاوهٔ، سرونه یې کښته اچول او مخونه یې بل طرف ته اړول.

حاکم ساتونکو ته مخ را وګرځاوهٔ او و یې ویل:

- هله، ژر شئ! لاسونه یې وتړئ!

بیا یې ښکنځل له خولې ووتل او ربین ته یې وویل:

- هې، تاته وایم، لاسونه شا ته واړاوه!

- زهٔ نه غواړم چې لاسونه مې را وتړئ! د تښتېدو تصمیم نه لرم، جنګ نه کوم، نو لاسونه مې د څه لپاره تړئ؟

حاکم د دهٔ و خوا ته ګام واخیست او و یې پوښتل:

- څه دي وویل؟

ربین نور هم آواز جګ کړ او دوام یې ور کړ:

- وحشیانو! بس ده د خلکو شکنجه کول، ژر به تاسې ته هم د آخرت ورځ را ورسیږي...

حاکم د دهٔ په مقابل کښې ولاړ، مخ ته یې سترګې نیولي او بریتونه یې تاوول. وروسته یو ګام شا ته لاړ او په حیرانونکي ږغ یې وویل:

- اخ، ته... د سپي بچیه! ته پوهېږې چې څه وایې؟

یو دم یې پـه چټکۍ سره ربین پر مخ پـه سـوک وواهـهٔ، هغـه په ځواب کښې ورته وویل:

- په سـوک حقیقت نه مري! د وهلو حق هم نه لرې! د سـپي بچی ته په خپله یې!

- زه د وهلو حق نه لرم؟

حاکم بیا د ربین سر په نښـه کړ او غوښـتل یې چې د سوک په وهلو سره خپل حق ثابت کړي، مگر ربین ځان وکېښ، سـوک پر هغه و نه لگېد او حاکم لـه ډېر زوره مخ تـه ولاړ، لږ پـاتې وه چې پر ځمکـه ولوېږي. د ولاړو خلکو تر منځ یو چا وټوخل او بیا د ربین له قهره ډک غږ پورته شو:

- لیعن شیطانه! درته وایم چې د وهلو حق نه لرې!

حاکم شـاوخوا وکتل- خلک سره وښـورېدل او یوه تنگه حلقه یې جوړه کړې وه. حاکم یوهکسته مخ واړاوهٔ او و یې ویل:

نیکیته، اې، تا ته وایم!

د خلکو لـه منځـه یو تن، چې میـانـه قـد یې درلود او لنـډ بـالاپوښ یې اغوستی و، راووت، دهٔ ځمکې ته کتل او غټ سر یې د پاشلي وېښتانو سره کښته اچولی و.

حاکم برېت تاواوهٔ او په ارامه یې دهٔ ته وویل:

- نیکیته! ونیسه، د غوږ په بیخ کښې څو ټینگ سوکان ور کړه.

هغه سړي مخ ته گام واخیست، د ربین مخ ته ودرېد او سر یې پورته کړ. ربین دهٔ ته مخامخ وکتل او په کلکو جدي کلمو سره یې وویل:

- دغه دی، وروڼو، وگورئ، ظلم تر کومه حده رسېدلی دی، تاسې په خپلو لاسونو سره خفه کوي، آخر وگورئ! فکر وکړئ!

کس په آرامه لاس پورته او په نرمه یې د هغه پر سر کښته کړ.

- ته هم د دهٔ غوندې د سپي بچی یې، آیا وهل دا ډول وي؟

د خلکو له منځه غږ پورته شو:

- اې، نیکیته! خدای هېر نه کړې!

حاکم دی له غاړې ونیو، پورې یې واهۀ او امر یې وکړ:

- درته وایم، وهه یې!

نیکیته و څنگ ته قدم واخیست، سر یې کښته نیولی و او و یې ویل:

- بس ده، نور یې نه شم وهلای!

- څه شي؟

د حاکم وجود پر رېږدېدو راغی، پښې یې پر ځمکه وهلې او پر ربین یې برید وکړ. په لومړي گوذار یې ربین ولړزاوۀ، خو په دوهم گوذار سره پرېووت، وروسته حاکم پر ځمکه لوېدلی دهقان پر سر، ځیگر او نس باندي په لغتو واهه.

خلک له ډېر قهره په ښور راغلل او د حاکم خوا ته یې حرکت وکړ. ده فوراً دا حس کړه، شا ته یې قدم واخیست او توره یې له پوښه را ویستله:

- اه، پوه شوم، بغاوت کوئ؟ بلې؟ ها؟

آواز یې رېږدېدئ او وروسته لکه مات شوی چې وي، خرپ خرپ یې کاوۀ. له آواز سره سم یې خپل ځواک له لاسه ور کړ، سر یې د اوږو تر منځ ننوت، کوږ شو، خالي سترگې یې شاوخوا اړولې او ورو یې پښې د شا و خوا ته

پر ځمکه کشولې، وروسته د شا پلو ته ولاړ او په نیولي آواز یې په تکلیف سره وویل:

- ډېر ښه، هغه دی وایې خلځ او زه درنه ځم، ها؟ اما تاسې رذیلان خبر یاست کنه، چې دا سړی سیاسي مجرم دی، د تزار مخالف دی، هرج و مرج جوړوي او تاسې یې پلوي کوئ، ها؟ تاسې هم باغیان یاست...

مور سترګې ښخې نیولي وې، بې له قوې او فکره بې حرکته ولاړه، لکه خوب چې ویني، د وېرې او زړه سوي نه تر سخت فشار لاندې راغلي وه، په فکر کښې یې د سپکو شویو خلکو د قهره ډک ږغونه د حاکم د آوازو سره ګډ شوي وو. د ډلې له منځه ږغونه پورته کېدل:

- که چېرې مجرم دی، محاکمه یې کړئ!..

- تاسې بخښنه ورته وکړئ!..

- تاسې بې له قانون او محاکمې نه د وهلو حق نه لرئ!..

- آیا دا روا کار دی چې د هر چا زړۀ وغواړي، د خلکو په وهلو شروع وکړي؟ دا په خپله د نظم اخلالول دي!..

خلک پر دوو برخو وویشل شول؛ یوه ډله د حاکم پر شاوخوا را غونډه شول، د هغه نه یې بخښنه غوښتله او بله برخه چې شمېر یې لږ و، د زخمي پر شاوخوا را وګرځېدل، له قهره یې شونډې رېږدېدلې او سترګو یې برق واهۀ. څو تنو هغه له ځمکې را پورته کړ. ساتونکو بیا وغوښتل چې لاسونه یې وتړي.

- صبر وکړئ، شیطانانو!

ربین له خپل مخ چټلي او وینې پاکې کړې، شاوخوا یې کتل او چوپ و.

نظر یې پر مور ولګېد، مور بې ارادې د دهٔ و خوا ته ور کش شـــوه. هغه مخ ځنې واړاوهٔ، اما څو دقیقې وروسته یې بیا پر مور سترګې برابرې شوې او دې تـه داســـې وبرېښــېدل، چې سر یې جګ نیولی او په وینو لړلي باړخوګان یې وربېږدېدل...

«و یې پېژندلم... آیا کېدلای شي چې پېژندلې به یې یم؟»

د غم او خوښـی تر تاثیر لاندې راغله، هغه ته یې په سر سره اشاره کوله. وروسـته یې ولیدل چې د دهٔ څنګ ته شین سترګی سړی ولاړ او هغه هم و دې ته ګوري. د دهٔ نظر په مور کښې د یوې شیبې لپاره د خطر فکر را پاڅاوهٔ...

«باید څه وکړم؟ ما به هم ونیسي!»

شـین سترګي ربین ته کوم شی وویل، هغه سر وښوراوهٔ او په رېږدېدلي ، ولې پوره واضح آواز یې وویل:

- پروا نه لري! د ځمکې پر مخ زهٔ یوازې نه یم، د حقیقت لاسـونه څوک نه شي تړلای، له چا سره چې ما کار کړی دی، زما خاطره به یې په یاد کښې پاته وي. که څه هم دوی زمونږ ځالی را خرابه کړه... هلته اوس نه دوســت پاته دی، نه رفیق...

مور فوراً په مقصد پوه شوه: «دا ما ته وایي!»

- امـا هغـه ورځ لېرې نـه ده، چې د عقـاب مرغان به والوزي او خلک به آزاد کړي.

یوې ښځې په سطل کښې اوبه راوړې او د ربین د مخ په وینځلو سره یې پیل وکړ، د دې نری او له شــکایت نه ډک آواز د ربین د خبرو سره ګډ شــو او

مور په تکليف کولای شول، چې د ربين خبرې سره جلا کړي. د خلکو اوله ډله چې حاکم يې په مخ کښې و، هم راغله، يوهکسله دوی څخه نارې کړې:

- گاډۍ راولئ چې زنداني پکښې بوځي، اې، د چا نوبت دی؟

وروسته د حاکم انديښمن آواز واورېدل شو:

- زه کولای شم چې تا ووهم او ته نه شې کولای، ځکه چې حق نه لرې، احمقه!

- ولې، ته خدای يې؟

له ډلې څخه د خلکو آوازونه پورته شول:

- پرېږده، دليل مه وايه، آمران امر لري!

- حاکم صاحبه، خواهش کوو، ته مه خفه کېږه!..

- ته چوپ شه، نورې خبرې مه کوه!

- اوس به دې ښار ته بوځي...

- هلته ښايي د کلي غوندې قانون تر پښو لاندې نه وي.!

د خلکو په آوازونو کښې زارۍ او بخښنه غوښتل حسېدل، مگر د شکايت نه ډک او د هيلې او اميد نغمه يې نه درلوده. ساتونکو ربين له لاسو نيولی و، په زينو کښې يې پورته کړ، د ادارې په دروازه ننوتل او ورک شول. دهقانان يوې خوا او بلې خوا ته خواره شول. مور ليدل چې شين سترگی د دې خوا ته راغی او تر سترگو لاندې ورته گوري. د دې پښې په رېږدېدو راغلې او غمجن حس يې زړۀ زبېښئ او حالت يې د قي وهلو حالت نيولی و.

له ځان سره يې فکر کاوۀ: «نه بايد ولاړه شم، نه بايد!» کتارې ته يې تکيه کړې وه او په تمه وه.

حاکم د ادارې مخ ته پر زینو ولاړ و، لاسونه یې ښورول، په بې پروایی او گواښونکي آواز سره یې وویل:

- اې احمقانو، اې د ســـپي بچیانو! په هېڅ شي نه پوهېږئ او په دې ډول کارونو کښې لاسونه وهئ... په حکومتي کارونو کښې لاسوهنه کوئ! بوده گانو! تاسې باید زما د سر دعا وکړئ، باید په پښو کښې را ولوېږئ. که چېرې وغواړم، کولای شم تاسې ټوله په زندان کښې وراستهٔ کړم...

د شـلو تنو په شـاوخوا کښـې خلک ولاړ وو، خولې یې د سره کښـلي او غوږ یې نیولی و. هوا مخ پر تاریکېدو وه، تورې اوریځې را کښـته کېدلې. شین سترگی زینو ته را نژدې، ساه یې وکښله او و یې ویل:

- دغه مو حال دی...

مور په ارامه ځواب ور کړ:

- بلې، وینم یې!

دهٔ د دې و خوا ته سترگې را واړولې او پوښتنه یې وکړه:

- څه کسب کوې؟

- د ښځو څخه تورونه او ټوکران رانیسم!

سړي پر بېره لاس تېر کړ، بیا یې د ادارې خوا ته وکتل، په غمجن او ټيټ آواز یې وویل:

- دا شیان زموږ په سیمه کښې نه پیدا کېږي...

مور دهٔ ته د پاسـه نه کښته کتل او د داسي شیبې په تمه وه، چې کوټې ته ولاړه شي. د سړي څېره ښکلې او متفکره، سترگې یې غمجنې ښکارېدې، اوږې یې پراخې او جگه ونه یې درلوده.

د مور حالت لږ آرام شو، د يو نامعلوم ځواک تر تاثير لاندې راغله او بې ارادې يې پوښتنه ځنې وکړه:

- آيا کولای شم چې ستاسې کره شپه تېره کړم؟

د دې پوښـــتنې په وخت کښـــې يې هډوکي او عضـــلې تر فشــار لاندې راغلې، مسـتقيمه ودرېده او په نيولو سترګو سره يې سړي ته نظر واچاوۀ. په فکر کښې يې ډارونکي فکرونه را ګرځېدل:

«د نيکولای ايوانوويچ ژونـد بـه په خطر کښـــې واچوم، پاول به نور و نه وينم... ډېر وخت به مې شکنجه او وځوروي...»

ســـړي ځمکې ته کتل، پر ځيګر يې لاس تېراوۀ او بې عجلې يې ځواب ور کړ:

- غواړې چې شپه زموږ کره تېره کړې؟ بلې، کولای شې، خو کور پوره د ستاينې وړ نه دی!

- زۀ نازولې نه يم، څه پروا لري!

سړي په پلټونکي ډول ورته کتل او تکرار يې کړه:

- په دې صورت کښې کولای شې!

هوا تقريباً تاريکه شـوې وه. د سړي سترګو سړه ځلا اخيستې او څېره يې سـپيره غوندې معلومېده. مور لکه د غرۀ څخه چې را کښـته شـوې وي، په ټيټ آواز يې وويل:

- يعنې زه اوس ستا سره ځم او ته به مې بکس را سره واخلې...

- ډېر ښه!

سړي اوږې پورته او د کورتۍ څنډې يې برابرې کړې، و يې ويل:

- هغه ده، ګاډئ وينې؟
ربين په زينو کښې را ښکاره شو، لاسونو يې بيا ور ترلې وو، سر او صورت يې په يوۀ بې رنګه ټوکر کښې پېچلي وو.
- د خداى په امان، مهربانو خلکو! حقيقت ولټوئ او هغه پاک وساتئ، پر هغو کسانو چې حقيقت درته راوړي، باور وکړئ، د حقيقت په خاطر خپل ځانونه مه سپموئ!..
د حاکم ږغ بيا له يوې خوا واورېدل شو:
- چوپ شه، سپيه! ساتونکيه، آسونه په چټکۍ سره بيايه، احمقه!
- د ځان سپمولو حاجت نه شته، آيا دا ژوند دى چې تاسې يې لرئ؟..
ګاډئ حرکت وکړ، ربين د دوو ساتونکيو تر منځ پکښې ناست او نارې يې وهلې:
- بې له هغه هم د لوږې څخه مرئ، په آزادۍ پسې کوښښ وکړئ، هغه هم ډوډۍ او هم حقيقت در کوي! د خداى په امان، مهربانو خلکو!..
د ګاډۍ د څرخو زوږ، د آسانو د پښو ترپهار او د حاکم د ښکنځلو آواز د ربين په غږ کښې ايسار او خفه يې کړ.
سړي سر وښوراوۀ او و يې ويل:
- بو يې تلئ!
بيا يې د مور خوا ته مخ را واړاوۀ او زياته يې کړه:
- تاسې په مسافرخانه کښې کښېنئ، زه څو دقيقې وروسته راځم.
مور کوټې ته ننوته او د سماوار څنګ ته پر څوکۍ کښېناستله، د ډوډۍ ټوټه يې په لاس کښې واخيستله، ورته و يې کتل، بېرته يې په قاب کښې

کښېښـوده. اشتها يې نه درلوده، بيا يې د قی وهلو حالت احساساوۀ. دې حالت يې بدن ضـعيف کړ، له زړۀ څخه يې وينه را کشــوله او سر يې پرله ګرځاوۀ. و سـترګو ته يې شـين سـترګی سړی عجيبه ولاړ و، چې د اعتماد او باور حس يې ځان ته نه راپاڅاوۀ، خو بيا هم مور په ښــکاره ډول دا فکر نه شــو کولای، چې ښـايي هغه يې د پوليسـو په لاس ور کړي، که څه هم دا فکر ورته پيدا شو، ولې په درانۀ ډول يې پر زړه فشار اچولی او بې حرکته پروت و. دا په پرېشانه حواسو ناسته او له ځان سره يې فکر کاوۀ:

«زه يې وپېژندلم، حتماً يې پېژندلې يم... ګومان يې کړی...»

فکر يې نور مخ ته نه تلئ او د قي وهلو په ستومانه غوندې حالت کښې پاته وه. د کړکۍ دباندې پراخې خاموشۍ د غالمغال او نارو ځای نيولی و، چې په کلي کښـې يې د فشـار او ډار حس پيدا کړی او په زړونو کښـې يې د يوازې والي حس را پاڅولی و.

نجلۍ را ننوته، په دروازه کښې ولاړه او پوښتنه يې وکړه:

- خاګينه درته راوړم؟

- نه، نه يې غواړم، اشتها مې لاړه، په نارو او چيغو يې ووېرولم!

نجلۍ يې مېز ته را نژدې شـوه، معلومېدله چې پارول شوې، خو په آرامه يې خبرې کولې:

- څومره ډېر يې ووهۀ! زۀ نژدې ولاړه وم او ښه مې ليدل، ټول غاښونه يې ور مـات کړل، هره پلا چې به يې تف کول، غړک غړک توره وينه يې له خولې وتله... سـترګې يې بالکل نه معلومېدې. دی قير جوړونکی و. د سـاتونکو آمر دلته پروت دی، نشه دی او نور شراب هم غواړي. وايي چې دوی بشپړه ډله وه،

دغه بړیره ور یې مشر و. درې تنه یې نیولي او یو ځنې تښتېدلی دی. یو ښوونکی یې هم نیولی دی، د دوی ملګری و. وایي چې دوی پر خدای عقیده نه لري او نور خلک هم را پاڅوي، چې کلیســاوې چور کړي. عجیب خلک دي دوی. زموږ دهقانان ځیني پر دغه بړیره ور باندې زړهٔ ســوځي او ځیني نورو ویل چې باید فیصله شي. دلته ډېر سختزړي دهقانان شته.

مور په دقت سره د نجلۍ چټکې او سره پاشلي خبرې اورېدلې او غوښتل یې په دې ډول خپل خفګان هېر کړي. نجلۍ خوښــه وه، چې د دې و خبرو ته یې غوږ نیولی، آواز یې لږ ټیټ کړ او په خوښۍ سره یې زیاته کړه:

- بـابـا مې وایي چې دا ټول د قحطۍ د لاســه دي، دوهم کـال دی چې ځمکه هېڅ حاصـل نه ور کوي، خلک په تکلیف دي...ځکه نو دغسې خلک پیـدا کیږي، چې خپل ځان بلا ته ور کوي. هر چېرې نارې وهي، جنګ کوي. څو ورځې مخکې یې د واســیوکوف ځمکه خرڅوله، ځکه چې مالیات پر پاته ول. هغه هم د مامور پر مخ کلکه څپېړه ور کړه او ورته و یې ویل: دغه دي زما مالیات، وایې خله...

د دروازې نه دباندې د درنو ګامونو بږغ واورېدل شـو، مور لاسـونه پر مېز تکیه او پاڅېده...

شین سترګی سړی راننوت، خولۍ یې پر سر وه او پوښتنه یې وکړه:

- بکس مو کومه دی؟

دهٔ په اسانۍ سره بکس پورته او و یې ویل:

- خالي دی! ماري، دا مسافره زموږ کور ته راوله.

هغه ووت او ولاړ. نجلۍ پوښتنه وکړه:

- هلته غواړې شپه تېره کړې؟

- بلې، په تورونو پسې راغلې يم، غواړم چې تورونه رانيسم!

نجلۍ خبرو ته دوام ور کړ:

- دلته څوک تورونه نه جوړوي، دا شيان د تينکوف او دارينو په کلي کښې جوړيږي، خو دلته نه شته.

- هغو کليو ته سبا ور ځم...

نجلۍ ته يې د چايو د پيسو له ور کولو وروسته نور درې کوپيک هم ور کړل، چې ډېره ور باندې خوښه وه. په کوڅه کښې نجلۍ په لوڅو پښو سره پر لنده ځمکه چټک چټک گامونه اخيستل او ويل يې:

- غواړې چې زۀ د دارينو کلي ته ولاړه شم او سپين سرو ښځو ته خبر ور کړم چې تورونه راوړي؟ هغه يې په خپله راوړي، ته هلته مه ځه ځکه چې ډېره لېرې لار ده.

- نه، ته مه ځه گلالۍ، پروا نه لري، زه په خپله ځم.

په سړه او تازه هوا کښې مور ته مبهم فکرونه ور پيدا شول. فکرونه تاريک ولې د کوم شي وعده يې ور کوله، خو د پرمختگ سرعت يې لږ وو. ښځې غوښتل چې سرعت يې ور زيات کړي، ځکه يې نو په ټينگه له ځانه پوښتنه کوله:

«که چېرې ښکاره اقدام وکړم... نتيجه به يې څه وي؟..»

هوا تاريکه، مرطوبه او ساړه وه. د کورونو له کړکيو نه ضعيفه روښنايي، چې سور غوندې رنگ يې درلود، معلومېده. په خاموشۍ کښې د کورنيو

حیواناتو لنډ لنډ ږغونه کله کله اورېدل کېدل، نور ټول کلي په خاموشه پرېشانه فکر کښې ډوب و.

نجلۍ خبر ور کړ:

- دغه يې کور دی. د شپې لپاره مو ښۀ ځای په نصيب نه شو، دا دهقان بېچاره ډېر بې وزله دی.

نجلۍ دروازه خلاصه کړه او په لوړ آواز يې ور نارې کړې:

- تاتيانا خاله!

وروسته نجلۍ بېرته د شا و خوا ته وګرځېده، ټوپ يې کړ او له تاريکۍ يې آواز واورېدل شو:

- د خدای په آمان!..

## «۱۷»

مور په دروازه کښې ولاړه وه، لاسونه يې پر سترګو نيولي او کتل يې؛ کور ووړ، تنګ او ډېر پاک و، د بخارۍ د شا نه ځوانه ښځه را ښکاره، په ټيټه خوله يې تعظيم وکړ او ولاړه لږ ګوښــې تــه، پــه يوه کونج کښــې د مېز پر سر څراغ لګېده.

د کور څښتن مېز ته ناست، ګوتې يې پر مېز ټکولې او سترګې يې د مور خوا ته نيولي وې او وروسته يې ږغ کړ:

- راشئ! تاتيانا، ژر شه پيتر هم را خبر کړه!

ښځه بې له دې چې میلمه ته مخ واړوي، لاړه او ووته. هر کله چې د کور د خاوند مخ ته پر څوکۍ کښېناستله، مور شاوخوا وکتل او خپل بکس یې و نه لید. ستومانه خاموشۍ کور نیولی و، یوازې د څراغ د لمبې پچ پچ اورېدل کیدهٔ. د سـړي څېره د پاملرنې ډکه او سترګی د مور په نظر راتلی، چې په دې کښې یې هم خفگان را ژوندی کاوهٔ. مور بې ارادې یو دم په لوړ آواز وویل:

- زما بکس چېرې دی؟

سړي اوږې وښورولې، په فکر کښې تللی او و یې ویل:

- نه ورکیږي...

وروسته یې آواز ټیټ او زیاته یې کړه:

- ما قصــداً د نجلۍ په مخ کښــې وویل، چې بکس خالي دی، خو هغه خالي نه دی، ډېر درانهٔ شیان پکښې پراتهٔ دي!

- هو، نو څه؟

دی پاڅېد، د مور څنګ ته راغی، سر یې ټیټ کړ او و یې پوښتل:

- دغه سړی پېژنې؟

مور وربېږدېدله، خو په متانت سره یې ځواب ور کړ:

- پیژنم یې!

دې لنـډې جملې مور تـه موضــوع روښــانـه او زړهٔ یې ور ارام کړ، پـه هوســایۍ سره یې ســاه وکښــله او پر څوکۍ باندې په اســتراحت سره کښېنستله.

دهقان په خلاصه خولهٔ وخندل:

- زما فکر و، چې تاسې دۀ او هغه تاسې ته اشاره وکړه، ما په غوږ کښې پوښتنه ترې وکړه، چې دا ښځه چې په زینو کښې ولاړه ده، اشنا ده؟

- نو هغه څه درته وویل؟

- دۀ؟ دۀ وویل چې موږ ډېر یو، بلې! ډېر...

د کور خاوند د مېلمه سترګو ته په ځیر سره کتل، بیا یې موسکا وکړه او خپلو خبرو ته یې ادامه ور کړه.

- د ټینګې ارادې خاوند و!.. غیرتمن... مستقیم یې ویل چې بلې ما دا کار کړی! دوی یې وهې او دی پر خپله خبره ولاړ و...

د دۀ نامطمئن او ټیټ آواز، خلاص مخ او روښانو سترګو یې مور نوره هم ارامه کړله. ډار او وهم یې په زړۀ کښې د ربین په هکله په زړۀ سوي سره تبدیلېدئ. د قهره په ډکه لهجه یې خوله خلاصه او و یې ویل:

- د ځناور په شان بې رحمه دي!

دهقان د مور څنګ ته ولاړ، سر یې وښوراوۀ او ویل یې:

- بلې، حکومت ځان ته پوره دښمنان زېږولي دي!

بیا یې د مور خوا ته مخ را واړاوۀ او ورته و یې ویل:

- زه فکر کوم، چې په بکس کښې اخبارونه دي، صحیح ده؟

دې اوښکې پاکولې او لنډ ځواب یې ور کړ:

- بلې، دۀ ته مې راوړې وو!

دهقان تندی تریو کړ، بېره یې په لاس کښې ونیوله، مخ یې واړاوۀ او چوپ پاته شو.

- موږ ته هم کله کله د دهٔ د لارې اخبارونه او کتابونه را رسېدل، دی موږ ښه پېژندئ...

دهقان بیا د مور څنګ ته ودرېد او و یې پوښتل:

- اوس به په بکس څه وکړې؟

مور دهٔ ته وکتل او ځواب یې ور کړ:

- تاسې ته به یې پرېږدم!..

دی حیران نه شـو، مخالفت یې هم و نه کړ، یوازې یې په لنډ ډول تکرار کړه:

- موږ ته...

سر یې په مثبت ډول وښوراوهٔ، ږیره یې د لاسه ایله کړه او کښېناست.

د مور په فکر کښې په پرېشـانه ډول د ربین د ځورولو او وهلو صـحنه را ګرځېدله، ټول حواس یې دې پلو ته را ټول شـــول او نور یې د بکس یا بل کوم شي په هکله فکر نه شوای کولای. بې اختیاره یې له سترګو اوښکې روانې شوې او په آرام اواز یې د کور خاوند ته وویل:

- خلک چور کوي، ځوروي یې، تر پښـو لاندې کوي یې، یقیناً وحشت دی!

دهقان په ټیټ آواز وویل:

- ځواک او وړتیا یې زیاته ده!

- د کوم ځـایـه یې کوي؟ زموږ څخـه یې اخلي؛ د خلکو څخه، ټول یې زموږ څخه اخیستی دی!

د دهقان روښـانه او نامعلومې څېرې پر مور تاثیر اچولی و. دهٔ د دروازې پلو ته سر ټیټ کړ، غوږ یې ونیو او و یې ویل:

- را روان دي...

- څوک؟

- باید... خپل خلک وي...

د دهٔ ښـځه په دروازه راننوته، تر شـا بل دهقان پسې روان و، خپله خولۍ یې په یوه کونج کښې کښېښوده، د کور د خاوند څنګ ته راغی او ترې و یې پوښتل:

- خیریت دی؟

دهٔ سر په مثبت ډول وښوراوهٔ.

ښځې د خپل مېړه و خوا ته مخ واړاوهٔ او و یې ویل:

- ستېپنه، ښایي مېلمه وږې وي؟

مور ځواب ور کړ:

- وږې نه یم، مننه، مهربانه یې!

راغلی دهقان مور ته نژدې شو، په چټک او پرې کړي آواز یې وویل:

- اجازه را کړئ چې ځان معرفي کړم، نوم مې پیتر ریابینین او خلک مې شیلو هم بولي، ستاسې په کارونو لږ پوهېږم، سواد لرم، یعنې احمق نه یم...

دهٔ د مور لاس ونیو، هغه یې وښوراوهٔ، د کور خاوند ته یې مخ واړاوهٔ او و یې ویل:

- دا دی، ستېپنه، وګورئ! بې شکه، نیکولاینفا ډېره مهربانه مېرمن ده، خو بیـا هم د دغو ټولو کـارونو پـه هکلـه یوازې د «چټې» او «تخیلات» کلمات

اســتمعـالوي. دا وايي چې ناپوه محصــلين او ځوانان د خپل حماقت له مخې ځوانان پاروي. لېکن حقيقت بل ډول شاهدي ور کوي: څه وخت مخکې دوی يو مـــــــشر سړی او لکه چې ښرگنديږي د احترام وړ بزگر توقيف کړی دی. برسېره پر دې دا دی اوس دغه مشـــره ښـځه وينې، چې په دې کارونو کښـې شريکه ده او لکه څنگه چې ښکاري د اشرافو له ډلې څخه نه ده، تاسې مه خفه کېږئ- ستاسې پښت څۀ دی؟

دۀ په ډېرې چټکۍ سره خبرې کولې، د خبرو په وخت کښې به د دۀ ږيره رېږدېدله، سـترگې به يې چوغې کولې او په ځير سره به يې د ښځې اندام او مخ ته کتل. له بهر څخه دی ډېر ناپاک او ناسوتره معلومېدۀ؛ کالي يې څيرې او ټوټه ټوته وو، پر سر باندې يې وېښـــتان بېخي گډوډ او بې منظمه وو، چې تا به ويل هغه به يو څو شــېبې مخکې له کوم چا سره جنگ کړی وي، پر دښــمن باندې يې غلبه موندلې وي او اوس د برياليتوب ولولې او الهام د دۀ سر گيچ کړی وي. دی د خپل اخلاص او صميميت له مخې د مور خوښ شو. مور چې د دۀ مخ ته په مهربانۍ سره کتل، د دۀ پوښتنې ته يې سپين ځواب ور کړ- د دې د ځواب تر اورېدو وروسته دۀ يو ځل بيا د مور لاس ټينگ ونيو، بيا ئې کښېکښې او وروسته يې په وچه نرۍ خندا شروع وکړه.

- دا کار ډېر شرافتمند دی، ستيپنه، وينې يې؟ ما درته ويل چې آخر به يې خلـک په خپله شروع کړي او هغه خانمه چې ما يې کيســـه درته کړې وه، هېڅ وخت رښــتيا نه وايي، ځکه چې ضرر ورته لري او خلک غواړي چې مســتقيم ولاړ شي، د ضرر او تـاوان څخه نه وېرېږي، وينې؟ ټول ژوند يې ضرر او تاوان

دی، هر پلو ته چې مخ واړوې، بې له دې چې (خبردار) واورې، بل هېڅ شی نه شته.

- زۀ یې وینم.- سټیپن سر وښوراوۀ دا یې وویل او زیاته یې کړه:- دا د خپل بکس په خاطر ناآرامه ده!

پیتر مور ته مخ راواړاۀ، لاس یې وښوراوۀ او په آراموونکې لهجه یې وویل:

- تشویش مه کوه مورجانې، خیر خیریت دی. بکس مو زموږ کره دی. کله چې سټیپن ماته وویل، چې تاسې هم په دې کار کښې مصروف یاست او هغهکسپېژنئ، ورته مې وویل، چې خوله دې پټه وساته، دا موضوع ډېره مهمه ده او تاسې هم ښایي موږ پېژندلي یو، کله چې هلته ولاړ وو؛ د شریفو خلکو څېرې معلومې دي، ځکه چې شمېر یې په کوڅه کښې لږ دی. ستاسې بکس زما سره دی...

دی یې څنګ ته کښېناست، مخ یې ورته اړولی او خبرو ته یې دوام ور کړ:

- که چېرې غواړې چې بکس خالي کړې، موږ په ډېرې خوښۍ سره کومک در سره کوو، ځکه چې کتابونه زموږ په کار دي...

- دا غواړي چې ټوله موږ ته را پرېږدي!- سټیپن ور زیاته کړه.

- ډېر ښه، مورجانې، موږ ټولو ته ځای پیدا کولای شو!..

دی له ځایه را پاڅېد، په خندا شو او په داسې حال کښې چې په خونه کښې یې په چټکۍ سره ګام اخیست، په خوښۍ سره یې ویل:

- دا یوه ډېر نایابه نېکبختي ده! که څه هم زه دا دومره عجیبه نه بولم، خو بیا هم پړي یې یو ځای نیولي دي او بل ځای کښېږدي! ورځپاڼه، مورجانې، ډېره ښه ده او خپل کار سر ته رسوي- د خلکو له سترګو پردې لېرې کوي، اشراف خلک په دې اړه ناکرار دي. زه د یوې دولتمنې ښځې نجار یم، د هغې د استوګنې ځای اته کیلومتره لېرې دی. دا په دې برخه کښې ډېره لېوالتیا لري، موږ ته کتابونه او نور ډول ډول شیان راکوي. په ځینو وختونو کښې داسې شیان په کتابونو کښې پیدا کیږي، چې د سړي سترګې رونوي! عموماً موږ له هغې شکرګزاره یو. مګر یوه ورځ ما دغه ستاسې ورځپاڼه دې ته ور کړه او عکس العمل یې دا ډول و؛ دې راته وویل: «بېتره، دا ډول شیان نور مه لوله، دغه پاڼې هغه ناپوهه خلک لیکي، چې هېڅ عقل نه لري. د دې ډول شیانو مطالعه به دومره مرسته در سره وکړي، چې تا په جیل کښې واچوي او یا دې سائبریا ته ولیږي...»

دی بیا ناڅاپه غلی شو، تر لږ فکر وروسته یې ترې نه پوښتنه وکړه:

- دغه د نن ورځې سړی تا سره د خپلوۍ اړیکې لري؟

- یا، بالکل پردی دی!- مور ځواب ور کړ.

پیتر کرار کرار وخندل او خپل سر یې وښوراوه، لکه په یو ډېر ښه شي چې خوشاله شوی وي. په همدغه ثانیه کښې مور وپوهېدله، چې د ربین په هکله د «پردي»کلمه سمه نه ده، نو له دې کبله یې خپله وروستۍ وینا اصلاح کړه او و یې ویل:

- هغه زما کوم خپل نه دی، مګر له ډېر وخت را په دې خوا یې پېژنم او د یوه ورور په توګه ډېر احترام ورته لرم... د یوه مشر ورور!

مور وغوښتل چې نور څه هم ووايي او د دوی اشتباه په دې برخه کښې لېرې کړي، دې د همدې مقصد لپاره کومه درسته جمله پیدا نه کړه، نو یو ځل بیا یې په ژړا شروع وکړه. یوه ظالمه او ناهیلي کوونکې خاموشي پر کوټه مسلطه شوه. پیتر سر ځړولی و او داسې معلومېده، لکه کوم شي ته چې یې نظر اچولی وي. ستیپن پر مېز تکیه کړې وه او په داسې حال کښې چې په چرت کښې ډوب تللی و، هغه یې ټکاوۀ. د دۀ ښځې و تنور ته تکیه کړې وه، مور پوه شوله چې هغې دواړه سترګې دې ته نیولي دي. په خپله به مور هم ښځې ته کتل؛ د دې مخ یو بیضوي شکل درلود، تیز تور رنګ یې و، جګه مستقیمه پزه یې درلوده، زنې یې ډېر عجیب شکل درلود، لکه پرې شوې چې وي. د دې شنو او زیرکو سترګو و مور ته په ډېر دقت سره کتل.

- ښه، ښه، یعنې هغه ستا ملګری دی!- پیتر کرار کرار وویل.- دۀ خپل شخصي فکر پیدا کړی دی، خپل شخصي! خپل ځان ته یې لوی قیمت ور کړی دی! تاتیانا، دا څنګه پیاوړی سړی دی! او تا ویل چې...

- دۀ ښځه کړې ده؟- تاتیانا د خپلې خولې نرۍ شونډې کښېکښلې او د دۀ په خبره کښې ور ولوېده او و یې ویل.

- دی کونډ دی!- مور په غمجنۍ سره وویل.

- همدغه علت دی چې ډېر زړه ور دی!- تاتیانا په یوه غښتلي بږغ سره وویل.- یو کوروالا سړی هېڅ کله دغه لار د ځان لپاره نه غوره کوي، هغه بېرېږي...

- زما په باره کښې څه فکر کوې؟ ښځه مې کړې ده او نور- پیتر نارې کړې.

- آه، ګـاونـډویه!- بې له دې چې و دۀ ته نظر واچوي او په داســې حال کښې چې شونډې یې کږولې، ښځې وویل.

- تا نو څه کړي دي؟ ته یوازې خبرې کوې او یو یا دوه کتابه دې لوستي دي، دا کار و خلکو ته څه ګټه لري؟ ته او سـتیپن په یوه تور کونج کښې ناست یاست او پس‌پسی کوئ.

- ډېر خلک ماته غوږ نیســـي!- بزګر د ښځې د اهانت په مقابل کښې په ارادتمنـدانه ډول سره وویل.- زه دلته د خمیرې وظیفه ترسره کوم، ته باید دغه و نه وایې...

ستیپن پټه خوله و، خپلې ماندینې ته یې وکتل او بیا یې خپل سر وخوځاوۀ.

- یو بزګر د څه لپاره ښځه کوي؟- تاتیانا وپوښتل.

- دی ځکه ښځه کوي، چې دی و کار ته اړ دی؟ څه کار یې وکړئ؟

- آیا ته دلته ډېر کار نه لرې؟ - ستیپن په تریو تندي سره وویل.

- دغـه کـار چې زه یې کوم څـه ګټه لري؟ یوازینۍ ګټه یې دا ده چې په وږي نس سره ژوند وکړم. که چېرې زما کوچنی پیدا شي، د هغه د روزنې وخت لرم؟ ته د کوچنیانو لپاره کافي خواړه راوړای شې؟- ښځې ځواب ور کړ.

ښـځه د مور و خوا ته راغله، د دې په څنګ کښــې کښېنستله او خبرو ته یې دوام ور کړ. که څه هم دغه پلا د دې په لهجه کښې ټینګار موجود و، خو بیا هم پکښې ګیله او غمجني نه معلومېده.

- ما دوه زامن درلودل، یو یې چې دوه کلن شو، د ایشېدلو اوبو له امله یې بدن خوړین او مړ شــو. بل مې د ټاکلي مودې نه مخکې مړ وزېږاوۀ- دا کار هم له بده مرغه د ډېرو درنو کارونو له امله و. آیا زه د دغو دوو زامنو مرګ خوشـاله

کړم؟ زه وایم چې د بزګرو وادهٔ هېڅ معنـا نـه لري، دوی پـه وادهٔ کولو سره خپل لاس په خپله تړي، په داسـې حال کښې که دوی وادهٔ و نه کړي، دوی د آزادئ ژوند کولای شي، د دغه سـړي په شـان د یوه ښـه ژوند د را وستلو لپاره لاس او پښې وهلای شي! مورجانې، ته ووایه څه چې وایم، حقیقت نه لري؟

- حقیقت همدغه شی دی!- مور وویل.- زما ګرانې، د رښتیا خبره دغه ده. په بل هېڅ ډول سره شونې نه ده، چې مور، و دغه پلیت ژوند ته بدلون ور کړو...

- تا مېړه کړی دی؟- تاتیانا د مور څخه وپوښتل.

- هو، مګر هغه مړ شو، اوس یو زوی لرم...

- زوی دې تا سره ژوند کوي؟

- هغه په جیل کښې دی!- مور وویل.

د دې کلمو عادي غمجني چې د غرور سره ګډه وه، د مور په زړهٔ کښـې پیدا شوه.

- دا دوهم ځل دی چې دوی هغه په جیل کښې اچوي. دا ځکه چې دی غواړي د حقیقت تـخم د خلکو په منځ کښـې وپاشي، دی ځوان، ښکلی او ډېر هوښـیار هلک دی، همدغه زما زوی و، چې ستاسو د پاڼو غم یې خوړلی دی، کـه څـه هم ربین زمـا د زوی دوه برابره ژوند لري، مګر دغه د حقیقي ژوند لاره هم هغه ته دهٔ ښـودلې ده! په دغو ورځو کښې به حکومت هغه محاکمه کړي او سائبریا ته به یې ولېږي، مګر ښایي چې دی ځان خلاص کړي او بېرته دغه کار ته د ادامه ور کولو لپاره دلته را شي...

کله چې مور خبرې کولې، د غرور حس پکښې ژوندی شو، دې غوښتل چې دوی ته خپل د ژوند قهرمانه اړخونه وښـایي، دغو الفاظو د دې پر شـونډو

حمله راوړه او و  يې ښورول. لازم دا وو، چې مور يو روڼ او معقول شی د دغې ورځې د تاريکې او مدهشـې پيښې د توازن لپاره پيدا کړی وای او هغه تاريکې چې د بې حســه او  نامعلوم گواښ په واســطه را کشــول کېده، رڼا کړي. په غير ارادي ډول د دې د ســپېڅلي روح د غوښـــتنې سره ســـم دې ټول هغه روڼۀ او خالص شـــيان په يوه داســـې وړانگه کښـــې را ټول کړل، چې د هغې تاو د دې سترگې ور سوځولې....

- اوس دا ډول خلک ډېر شـوي دي او د دوی شمېر مخ پر زياتېدو دی او دوی ټول به د خپل ژوند تر وروســـتنۍ شـــيبې پورې د خلکو د ښـــېگړې، د حقيقت او آزادۍ په خاطر مبارزه وکړي...

مور احتيـاط هېر کړی دی او کـه څـه هم د هېڅا نوم پر خولۀ نه راوړي، دې ټول هغه مخفي شـــيان چې د دې کار لپاره کېدل، وويل، دې ټول هغه پټ فعـاليتونه چې د ظلم ورکېدلو، د ظلم د وژلو، د آزادۍ راوســـتلو او وروړگلوۍ ټينگولو لپاره کېدل، ياد کړل.

کله چې دې د خپلو ملگرو او نژدې دوسـتانو په باب خبرې کولې، نو په کلمو کښـې يې داسې د مينې اور وپاشه، چې د ژوندانۀ د بدلون راوستلو شونتيا يې احساس کړه.

دې په ډېره خوشالۍ او نشاط سره د خپلو ملگرو څېرې د خيال په سترگو ليدلې، دا په خپلو افکارو سره منوره او روښانه شوه.

- په ټوله نړۍ کښـــې دا ډول کارونه مخ ته روان دي، په هر ښـــار او کلي کښې دغه فعاليت روان دی، د ښو خلکو د ځواک لپاره سرحد نه شته. دا ځواک

بـه ورځ پـه ورځ وده وکړي، دومره بـه زياتوالی ومومي، څو زموږ د بريا ورځ را ورسيږي...

د دې آواز عادي و، دې د مناســبو کلماتو په پيداکولو کښــې تکليف نه درلود، پورتنۍ کلمې د تسپو د دانو په شان د دې و زړۀ او فکر ته راتلې او د نن ورځې وينه او چټلي يې د دې د زړۀ څخه لېرې کاوۀ.

مور دا درک کړه چې بزګران د دې د خبرو تر تـاثير لانـدې راغلي دي، دوی بې حرکته ناست وو او و دې ته يې په ډېر ټينګار سره غوږ نيولی و. مور د ښـځې متشنج حال ليدۀ. دغې صحنې د مور اراده لا ټينګه کړه او هر څه يې په ډېر متين غږ سره ويل:..

- ټول هغه کسـان چې سخت ژوند لري، ټول هغه کسان چې د بډايانو او د هغو د نوکرانو له خوا ژوبل کيږي، دوی بايد ټول د هغه چا سره لاس يو کړي، کوم چې د دوی د ښـېګړې لپاره په جېل کښــې دي يا د دوی د ښــه والي لپاره هلته مړۀ کيږي. هغوی د خپل ځان د ګټې فکر نه لري، دوی د ټولو د خوشالۍ او نيکمرغۍ لار لټوي، دوی د خلکو د خطا ايسـتلو کوښـښ نه کوي. دوی تل دا وايي: «هغـه لار چې موږ ور باندې روان يو، ډېره پيچيده او ســـخته لار ده». دوی هېڅوک نه مجبوري، چې پر دغه لار روان شي، خو که يو سړی د لومړي ځـل لپـاره د دوی تر څنـګ يو پل واخلي، هغه به د ژوند تر پايه پورې د دوی وفادار ملګری وي، ځکه چې بې له دغې لارې څخه بله صــحيح لار نه شـــته، يوازينۍ حقه او معقوله لار همدغه لار ده!

مور د دې ډول خبرو ډېره هيله درلوده او نن چې يې وخت پيدا کړی و، نو ډېره خوشاله وه. دې چې خپلو نويو ملګريو ته حقايق بيانول، زياته يې کړه:

- تاسې کولای شئ چې په پټه سره دغه خلک تعقیب کړئ، دوی به په لږ پرمختګ قانع نه شي، دوی به تر هغه وخته ارام نه کښېني، تر څو چې هر ډول غدر، تقلب، تزویر، فساد د خلکو له منځه څخه ورک نه کړي، دوی به هېڅ کله له خپل فعالیت څخه لاس وا نه خلي، تر څو چې ټول خلک د اتحاد لاس سره ور نه کړي او په یوه غږ سره و نه وایي:- موږ د خپلو ځانونو باداران یو، د خپل ژوند لپاره په خپله قانون جوړوو!

پـه ناڅاپي ډول دې د سـتومانۍ احســاس وکړ، خبرې یې بس کړې او ملګرو ته یې وکتل. د دې په سینه کښې اعتماد حاصل شو، چې خبرې یې عبث نـه دي او حتماً بـه کوم اثر له ځانه پرېږدي. بزګرو و دې ته د تمي په ډول کتل. پیتر خپل لاسونه د ټټر له پاسه کښېښودل، سترګې یې چوغې کړې او په شونډو یې موسکا ظاهره شوه. ستیپن پر مېز څنګله ولګوله او خپل ټول بدن یې د مخ خوا ته داسې اچولی و، لکه تر اوسه چې یې غوږ نیولی وي. د دهٔ پر مخ سیوری پروت و، لـه همـدې کبلـه ښــه پوره نـه معلومېـدهٔ. د دهٔ ماندینې، چې د مور تر څنګ ناسته وه، خپلې څنګلې پر زنګنونو ولګولې او ځمکې ته یې کتل.

- دا خبره ده!- پیتر غلي وویـل او پـه احتیـاط سره پـه یوه اوږده څوکۍ کښې کښېناست.

سـتیپن ورو-ورو را پورته شـو، خپلې ماندینې ته یې وکتل او وروسته یې لاسـونه له خپل ځان څخه لیرې کړل او داسې معلومېده، لکه دی چې غواړي د دغه ټولو خلکو او یا کوم بل شي سره په غېږ ورشي، دهٔ په متفکرانه ډول وویل:

- که سړی یو ځل په دغه لار کښې پښه کښېږدي، لازمه ده چې په خپل ټول وس او ځواک سره په دغه برخه کښې کار وکړي...

پیتر په عاجزۍ سره وویل:

- طبعاً، شاته کتل فایده نه لري!...

## «۱۸»

مور و دېوال تـه تکیه کړې وه او له هغه ځای څخه یې د پیتر او ســتیپن خبرو تـه غوږ نیولی و. تـاتیـانا ولاړه شـــوه، یو ځل یې شـــاوخوا وکتل او بېرته کښېنستله. کله چې تاتیانا بزګرو ته وکتل، نو په شنو سترګو کښې یې غمجني او نارضایتي وه. دې ناڅاپه و مور ته مخ را واړاوهٔ او و یې ویل:

- تا به په خپل ژوند کښې ډېر کړاوونه لیدلي وي؟

مور ځواب ور کړ:- هو!

- زه سـتاسـې په خبرو خوشاله کېږم- ستاسې خبرې له زړه څخه زنګ او ناپاکي لیرې کوي. کله چې زه سـتاسې بږغ اورم، له ځان سره فکر کوم، چې اې خدایه، کله به داســې وخت را شي، چې زه دغه خلک چې تاســې د هغو بیان کوئ، د نژدې څخـه ووینم! د دوی د ژوند، افکارو، هیلو او امیدونو سره آشـــنا شـــم! مورې دلته څه لیدلي دي؟ مورې ټول د پســونو یوه رمه یو! زموږ ټول ژوند دا ډول دی، د مثـال په توګه ما ته وګورئ: زه په خپله په لیک او لوســت پوهېږم، کتابونه لولم او په هغو کښې ډېر چرت وهم، ځیني وختونه زهٔ د ډېر چرت څخه ټوله شـپه خوب نه شم کولای، خو دا کار ما ته څه ګټه لري؟ که زه چرت وهل پرېږدم، له هر څه به پاته شم او که دوام هم ور کړم، ما ته هېڅ ګټه نه لري. عبث چرتونه!

د خبرو په وخت کښې د دې په سترګو کښې د استهزا شغلې څرخېدلې او غوښتل يې چې خپل بيان د پوښتنې په توګه پرې کړي. بزګرو هېڅ و نه ويل. باد د کړکيو پر چوکاټ نښتئ، په دودکش کښې کښهار او د بام د پاسه يې پروړ بادول. يوه سپي وغپل. په دې وخت کښې د باران څاڅکي د کړکيو پر مخ لګېدل. د څراغ لمبې د شيشې سره سرپ وواهۀ او نژدې وه، چې خاموشه شي، وروسته يې بيا و خپلې ثابتې رڼا ته دوام ور کړ.

- زۀ چې ستاسې خبرې واورم، ځان ته وايم: دا دی وګوره، خلک په څومره ډېر شيانو باندې پوه دي! دا ټکی نورو ته يوه ټوکه ښکاري، مګر ما ته داسې معلوميږي، چې ټول خلک پر دغه اصل پوهېدلو ته اړ دي. ما پخوا هېڅ کله داسې شی نه و اورېدلی او نه ما په خپله دا ډول فکر کړی و...

- تاتيانا، ښه به دا وي چې ډوډۍ وخورو او څراغ مړ کړو!- ستيپن و خپلې ماندينې ته په تريو تندي سره وويل.- ځکه ښايي خلک متوجه شي، چې نن شپه ولې د دې کوډلې څراغ تر نورو عادي شپو ډېر بل پاته شوی دی، د دوی دغه توجه به موږ ته کوم ضرر و نه رسوي، مګر د مېلمه لپاره ښايي تاوان ولري...

تاتيانا ولاړه شوه او نغري ته ولاړه.

- داسې موضوع ده!- پيتر کرار -کرار او په موسکا سره په خبرو پيل وکړ- ښايي چې دوی په دغو ورځو کښې زموږ و تګ ته لا متوجه وي! کله چې دوی دغه ورځپاڼې پيدا کړي...

- زۀ د خپل ځان په فکر کښې نه يم. زما نيول به کومه لويه ضايعه نه وي. د ستيپن ماندينه راغله او ورته يې وويل:

- لېرې شه...

دی ولاړ شـو او خپلې ماندينې ته، چې پر مېز يې لوښي ايښودل، وکتل. دۀ په استهزا سره وويل:

- زه او ته نســبت و دې ډلې ته د پنځو کوپېکو ارزښـــت نه لرو، حال دا چې په ډله کښې په سلگونو خلق برخه لري...

مور ناڅاپه د دۀ په حق کښې زړۀ سواندې او غمجنه شوه، هر څومره چې بـه يې ورتـه کتـل، په هماغه اندازه به ورته گران او عزيز معلومېدۀ. دې تر خبرو وروســته داســې فکر کاوۀ، چې دې مدهشــې ورځې ټوله چټلي ور ځنې لېرې کړي دي، نو ځکـه يې د هر چـا پـه بـاب ښـــه نظريه درلوده او د ټولو لپاره يې ښېگڼه غوښتله.

دې وويل:- تاسې خطا کوئ، تاسې بايد هغو ته اهميت ور نه کړئ، کوم چې ستاسې وينې زبېښي. ستاسې ارزښت ډېر دی، تاسې ډېر مهم ياست، تاسې هغه قدر او قيمت په نظر کښې ونيسئ، کوم چې ستاسې ملگري يې تاسو ته در کوي، نه هغه چې دښمنان...

بزگر پـه حيرانتيا مگر په ټيټ آواز سره وويل:- آيا موږ ملگري لرو؟ موږ تل پره يوه گوله ډوډۍ سره جنگېږو...

- زه درته وايم چې عام خلک رښتيني ملگري لري...

- ښـايي چې ملگري ولرو، مگر نه دلته!- ســتيپن د تفکر په حال کښـې ځواب ور کړ.

- تاسې کولای شئ چې دلته هم ملگري پيدا کړی.

ستيپن تر لږ فکر وروسته وويل:

- هام، دغه شی مهم دی چې موږ یې دلته وکړو...

تاتیانا وویل:- ډوډۍ تیاره ده!

کله چې دوی ډوډۍ خوړله، پیټر داسې ښکاریدۀ، لکه د مور په خبرو چې ډېر جذب او وارخطا شوی وي. دۀ په ډېره چابکۍ سره و مور ته وویل:

- مورې، تاسې باید سهار وختي ولاړه شئ، څو چې هېڅوک تا و نه ویني، ښار ته په دوهم سټیشن کښې د پوستې یوه گاډۍ پیدا کړه او پکښې سپره شه...

- ولې باید داسې کار وکړي؟ زه به یې بوځم،- ستیپن وویل.

- یا! ته باید دا کار و نه کړې! ته څه وایې که دوی ستا څخه پوښتنې وکړي، چې دې تېره شپه ستاسې په کور کښې تېره کړې ده؟ هو، دې دلې شپه کړې ده. بیا به دوی در څخه وپوښتي: دا اوس چېرې ده؟ ته به ورته ووایې: هغه ما و سټیشن ته بوتله. آها، تا بېولې؟ مهرباني وکړه جېل ته ځه! پوه شوې؟ ستا پای... ته د جیل په تګ تلوار مه کوه، هر څه په خپل مناسب وخت کښې ښه دي. دوی وایي: که د تزار مرګ را ورسیږي، هغه به هم مړ شي. مګر ښه لاره دا ده چې دا شپه دلې تېره کړي، سبا ورځ آس کرایه کړي او په خپله لاره ولاړه شي، ډېر خلک دلته کورونه کرایه کوي او شپه تېروي، ځکه موږ د لویې لارې پر اړخ پراتۀ یو...

- پېتره، تا ته دا دومره بې زړۀ توب چا در ښودلی دی؟- تاتیانا د استهزا په ډول ور ځنې وپوښتل.

- د سړي باید هم وېره او هم زړه ورتیا زده وي!- پیټر خپل زنګون وټکاوۀ او نارې یې کړې.- واګانوف در په زړۀ کړه، کله چې یې د ورځپاڼې سره ونیو،

څه یې پرې وکړل؟ تاسې اوس نه شئ کولای، چې هغه حتی په ډېرو پیسو سره قانع کړئ، چې ساده کتاب په لاس کښې واخلي! مگر مورې، ته باور وکړه، زهٔ ډېر چالاک او مکار یم- دا هر چا ته معلومه ده! زه به ټولې شاوخوا ته ستاسې اخبارونه او نــــــشریې وویشم، زهٔ به یې هر ځای ته په هره اندازه چې لازمه یې گڼې، ورسوم. دا رښتیا خبره ده چې موږ عام خلک په لیک او لوست نه پوهېږو او لږه وېره هم په زړهٔ کښې لرو، مگر یو سړی چې تر سختې شکنجې لاندې وي، د ډېر عذاب او ظلم څخه اجباراً سترگې خلاصولای شي او دا فکر به ورته پیدا شي، چې ولې ټوله دنیا له کړاوونو ډکه ده او ولې عام خلک پکښې دا ډول ژوند لري؟ او کتابونه او نورې نــــشریې دا ډول پوښتنو ته ساده ځواب ورکوي، صرف په خپله لږ فکر وکړئ او مغز په کار واچوئ! هغه خلک چې لوســـت نه شي کولای، هغوی ښــه فکر لري او ښــه پوهېږي، دوی لـه هغـه چـا نـه ښـه پوهېدلای شي، کوم چې لوست کولای شي، مگر په نس ماړهٔ دي. ما د مملکت په دغه برخه کښې سفر کړی دی او هر څه راته معلوم دي، دغه خلک له آمرانو څخه وېرېدلي دي، خو که موږ غواړو چې ژر و نه نیول شـــو، لازمه ده، چې د خپل فکر څخه کار واخلو، څو چې په هر کار کښې ښهٔ دقیق او زیرک واوسو. د حکومـت غړي هم پـه دې پوه دي، چې بزگران د دوی څخـه کرکجن دي. بزگرانو خنـدا بس کړې ده او پـه زړونو کښـــې یې یوه ذره مینـه ورتـه نه شـــته. حکومت ته دا ښـکاره شـوې ده، چې بزگران د موجوده نظام په متلاشي کېدلو خوښ دي! وړمه ورځ د سمالیاکووه په کلي کښې چې له دې ځای څخه دومره لېرې نه دی، دوی د مالیې د ټولولو لپاره راغلي وو. یوه کس هم د ور کولو لپاره پیسې نه درلودې. ټول بزگران را پاڅېدل او سوټي یې په لاسو کښې واخیستل.

کوتوال هغوی سخت سپک کړل او نارې یې کړې: «اې رذیلانو، تاسې د تزار په مقابل کښې را پورته شوي یاست؟» هلته یو بزگر و، چې دۀ ته یې متقابل ځواب په ډېر سختو الفاظو سره ورکړ، بزگر کوتوال ته وویل: «ته به د تزار سره یو ځای دوزخ ته ځې، دا څۀ ډول تزار دی، چې له خلکو څخه د غاړې کالي کاږي؟..» دغه بزگر سپیواکین نومېدۀ. مورې، ته لیدلای شې، چې حالاتو دلته څه شکل نیولی دی! دوی طبعاً سپیواکین په جېل کښې واچاوۀ، مگر الفاظ او ویناوې یې دباندې پاتې شوې. د دۀ د خبرو په مطلب لا ماشومان خبر دي، په هر ځای کښې یې فوق العاده انعکاس کړی دی.

پیتر نوره ډوډۍ و نه خوړله او مور ته یې په نرمه لهجه سره د کلیوالي ژوند څرنگوالی بیاناوۀ.

دوه ځله ستیپن په خبرو کښې ور ولوېد، چې لږه ډوډۍ وخوره، دۀ به یوه گوله ډوډۍ واخیستله او بیا به یې د بلبل په څېر په اسانۍ سره خپلو خبرو او ترانو ته دوام ور کړ. کله چې د شپې ډوډۍ پای ته ورسېدله، دی په ناڅاپي ډول پاڅېد او و یې ویل:

- زما د تگ وخت دی، د خدای په امان!..

د مور و مخ ته ودرېد، خپل سر یې وښوراوۀ، د مور لاس یې ونیو او و یې ویل:

- د خدای په امان، مورې! ښایي چې زه بیا هېڅ کله تا و نه وینم، مگر زه باید تاسو ته ووایم، چې زه ستاسو په لیدلو او خبرو سره ډېر خوښ یم! آیا په بکس کښې بې له نشریو څخه کوم بل شی هم شته؟ یو وړین شال پکښې دی.

ډېر ښه- وړین شال، ستیپنه، دغه په یاد ولره! دی به اوس سمدستي ستا بکس راوړي! ستیپنه، راځه! مورې د خدای په امان! نېکبختي دې غواړم!..

کله چې دوی د کور څخه ووتل، په کوډله کښې خاموشي خپره شوه. راز راز آوازونه اورېدل کېدل؛ د خزندو ږغونه، د بام پر سر او دودکش کښې د باد چلېدل، د کړکیو پر مخ د باران د څاڅکو لوېدل... تاتیانا و مور ته د بسترې په جوړولو سره بوخته شوه؛ د نغري له پاسه یې راز راز کالي واخیستل او پر یوه اوږده څوکۍ باندې یې کښېښودل او پر هغه باندې یې و مور ته بستره جوړه کړه.

- دی ډېر ژوندی سړی دی!- مور د پیتر په هکله وویل.

- دی ډېرې خبرې کوي، مگر عمل یې نه شته.

- ستا مېړۀ څنگه دی؟- مور ترې نه پوښتنه وکړه.

- دی ډېر ښه سړی دی، شراب نه څښي، صرف لږ ضعیف النفسه دی... تاتیانا تر لږ ځنډ وروسته وویل:

- موږ بـاید اوس څه وکړو؟ موږ باید اوس قیام وکړو! بې شـکه موږ یې باید وکړو! همدغه شی دی، چې هر څوک یې په اړه فکر کوي، خو دوی هر یو د خپـل ځـان سره دا فکر کوي. دوی مجبور دي چې دغـه فکر تقویه کړي، یو باید اقدام وکړي...

تاتیانا پر څوکۍ کېناسته او ناڅاپه یې د مور څخه دا پوښتنه وکړه:

- تاسو وویل چې ځوانې نجونې هم د دغه فکر لپاره فعالیت کوي، دوی د کـارگرانو سره یو ځـای کیږي، دوی ته کتابونه وایي. آیا دوی د دې کار لپاره غوره دي؟ آیا دوی د کارگرانو څخه کرکه او وېره نه لري؟

دې چې د مور ځوابونه واورېدل، نو يوه اوږده ساه يې وکښله، سترګې يې واړولې او سر يې وخوځاوه. تر لږ ځنډ وروسته يې زياته کړه:

- ما يوه ورځ کتاب وايه، و دې جملې ته را ورسېدلم:

«بې معنا ژوند...». زه سمدستي د هغې په مفهوم پوه شوم، زه په دغه ژوند ښه پوهېږم. دا ژوند يو داسې وروست ژوند دی، لکه يوه د پسونو رمه چې شپون و نه لري. دا وو د بې معنا ژوند مفهوم. که زه وکړای شم د دغه ژوند څخه به وتښتم. يو سړی چې په يوه شي پوه شي، مګر د هغه په باب کوم اقدام نه شي کولای، ډېر کمزوری وي.

مور دغه وضعيت د ښځې په شنو سترګو، خبرو او غږ کښې ليدلای شوای، مور وغوښتل چې دا لږ آرامه کړي.

- زما ګرانې، تاسې خو پوهېږئ چې څه بايد وکړئ...

تاتيانا په همدې وخت کښې د مور په خوله کښې ور ولوېدله او په نرمۍ سره يې وويل:

- مهارت او استعداد په کار دی. بستره تياره ده!

دا نغري ته ولاړه او هلته پټه خوله ودرېدله. مور بې له دې چې کالي وکاږي، په خپل ځای کښې پرېوتله. د دې ټولو هڅوکو له ستومانۍ څخه درد کاوه، نو ځکه يې تر خولې يوه سانده را ووتله. تاتيانا ښراغ مړ کړ او کله چې کوډله له تورتم څخه ډکه شوه، دې په ټيټ او هموار آواز سره خبرې شروع کړې. د دې له ږغ څخه داسې ښکارېده، لکه په تيارۀ کښې چې کوم شی پاکوي.

- تاسي لمونځ نه کوئ، زه هم پر خدای عقيده نه لرم او نه يې معجزات منم.

مور په ناآرامۍ سره پر اړخ را واوښتله. د کړکۍ څخه د کور ټول تورتم معلومېدۀ. د کور د باندې په چوپه چوپتيا کښې واړۀ آوازونه اورېدل کېدل. مور و تاتيانا ته په وېرې سره وويل.

- زه د خدای په باره کښې معلومات نه لرم، مګر حضرت عيسی منم... د دۀ پر خبرو عقيده لرم. د دۀ دې وينا ته د قدر په سترګه ګورم، چې وايي: خپل ګاونډي سره د ځان په څېر مينه وکړئ!..

تاتيانا پټه خوله پاته شوه، د بخارۍ په څنګ کښې بې حرکته ولاړه وه. مور د خفګان څخه سترګې پټې کړې. ناڅاپه ښځې په ماته خوا او ټيټ آواز سره وويل:

- زه به هېڅ کله خدای او د هغه بندګان د خپلو ماشومانو د مرګ په برخه کښې و نه بخښم! هېڅ کله!

مور په ناکرارۍ سره سر پورته کړ او د دغو کلمو په درد پوه شوله.

- تاسې لا تراوسه پورې ځوانه ياست، ښايي چې نور کوچنيان دي هم وشي،- مور له ناز نه په ډک آواز سره وويل.

تر لږ ځنډ وروسته ښځې ځواب ور کړ:

- يا! زما صحت خراب دی او ډاکټر راته ويلي دي، چې ته به بيا د کوچني مېرمن نه شې...

د دغې مکالمې په ترڅ کښې يو موږک په ځغستا تېر شو، يو شی په لوړ آواز سره لاندې ولوېد او دغه توره چوپتيا يې په نه ليدونکو رڼا سره ماته کړه. يو

ځل بیا د باران د څاڅکو ږغ د بام په نغولو کښــې واورېدل شــو، لکه نرۍ او عصباني ګوتې چې ټپيږي، باران په کرارۍ سره د شپې تېرېدل ښودل...

کله چې مور په نیم خوبه حالت کښـې وه، دې د خونې دباندې په دهلیز کښـې د درنو ګامونو ږغ واورېد. وروسـته دغه ګامونه دروازې ته را نژدې شول. ور په ډېر احتیاط خلاص شو او د یوه سړي ټيټ غږ واورېدل شو، چې ویل یې:

- تاتیانا، ویده یې؟

- یا.

- او دا ویده ده؟

- زه فکر کوم، چې ویده ده.

څراغ یو ځل روښـانه شـو، مګر تر لږ ځنډ وروسته بیا خاموش شو او رڼا په تورتم کښـې ورکه شـوه. بزګر د مور و بسـترې ته راغی او کوټ یې سـم ور باندې واچاوۀ. د بزګر ناز او دې مهربانۍ پر مور باندې عجب تاثیر وکړ، مور بیا سترګې پټې کړې او موسکا یې وکړه، ستیپن پټه خوله کالي وکښل او خپل ځای ته پورته شو. په خونه کښې یو ځل بیا چوپه چوپتیا مسلطه شوه.

مور بې حرکته وه او په دقت سره یې په تاریکۍ کښــې غوږ نیولی و. په دې وخت کښــې بیا د دې په ســترګو کښــې د ربین په وینو ککړه څېره ور پیدا شوه...

په پس پس سره یو آواز واوریدل شو:

- وګورئ څه ډول خلک د دې مقصــد لپاره کار کوي! دغه زاړۀ خلک چې خپل ټول عمر یې په کار کښې تېر کړی دی، د ډېرو غمو څخه بالکل نشه دي. دا هغـه وخـت دی چې دوی باید اســتراحت کړی وای، مګر دوی دغه د

ســتونزو لار ځان ته نیولې ده! اخ، ســتیپنه، ته خو لا ځوان یې، عقل هم تا سره دی....

د نارینه یوه ځواکمن غږ ځواب ور کړ:

- اولاً په دې باره کښــې باید پوره فکر وشي او بیا په دې کار لاس پورې شي...

- دا خبره مې پخوا هم در څخه اورېدلي ده...

دوی دواړه د یو وخت لپاره پټه خوله شـول، وروسته یې بیا په خبرو پیل وکړ. د ستیپن غږ واورېدل شو:

- دغـه لار ده، چې اوس یې موږ بـایـد ځان ته غوره کړو، لومړی باید له بزگرو سره جلا خبرې وکړو، مثلاً د الکســـي ماکوف سره. دی لیک او لوست کولای شي، ډېر چـالاک دی او د آمرانو لـه خوا ځورېـدلی هم دی. ســیرگي شــورین هم یو هوښــیار بزگر دی. کنیازیف هم زړه ور او صــادق ســړی دی، همدغه درې تنه د شروع لپاره کفایت کوي. موږ باید د هغو خلکو سره په اړیکه کښې شو، کوم چې مور په خپله کیسه کښې یاد کړل. زه به یو تبر واخلم او ښار ته به د لرگیو ماتولو په قصـد لاړ شم او هغه کسان به، چې ښځې د هغوی په اړه کیســه وکړه، له نژدې ووینم. موږ باید محتاط واوســو. دې رښــتیا ویل چې هر څوک پـه خپله باید خپل ځان ته په قیمت او ارزښــت قایل شي. د یوه انســان واقعي ارزښــت د هماغه انســان په عمل پورې اړه لري. هغه د نن ورځې بزگر په نظر کښې ونیسه، دی که حتی د خدای په حضور کښې هم ودرېږي، ځواب به یې ور نه کړي او هغه نیکیتا؟ خجالت یې وکېښ،- معجزه!

- ستاسو په مخ کښې ستاسې بې گناه ملگري وژني، مگر تاسې رډ رډ ورته گورئ...- تاتیانا د دۀ په خبرو کښې ور ولوېدله.

- لږ صبر وکړه! ته باید خوشاله اوسې چې موږ هغه بزگر په خپل لاس و نه واهۀ.

دۀ خپل پس‌پسي ته دوام ور کړ. کله کله به يې بږغ دومره ټيټ کړ، چې مور به هغه نه اورېدۀ. مگر کله به يې ښه واضحې خبرې کولې، نو په همدې وخت کښې به ښځې ورته وويل چې:- خوله دې پټه کړه، دا به را ويښه کړې...

مور په يوه درانۀ خوب کښې ولوېدله.

سپيدې لا نه وې چاودلې، چې تاتيانا مور را ويښه کړه.

- سماوار ايشېدلی دی، چای وڅښه، ښايي چې بې له چايو دې ساړۀ وشي...

ستيپن چې خپله ږيره ږمنځوله، له مور څخه يې د دې ښار آدرس وپوښتئ. دغه پلا مور ته معلومه شوه، چې نن سهار ښه آرامه ښه لري. کله چې دوی چای څښلې، و يې خندل:

- په عجيب ډول سره دا پېښه وشوله!

- کومه پېښه؟- تاتيانا ور څنې پوښتنه وکړه.

- زموږ ساده پېژندگلوي!

مور د تفکر په حال کښې، مگر په مطمئن ډول سره وويل:

- ټول هغه شيان چې زموږ په کار پورې اړه لري، دغه ډول ساده او بسيط دي.

مېږه او ښـځه د مور په جلاکېدو سره لږ شـان ته غمجن شول. دوی لږې خبرې کولې اما خپله مينه او محبت يې په مبذوليت سره د دې د هوساينې لپاره په بې شمارو لارو باندې ښودل.

مور په گاډۍ کښې ناسـته وه او په فکر کښـې ډوبه شـوله. مور پوه شوه، چې سـتيپن به په حتمي صـورت سره د يوه ړانده مورږک په څېر محتاطانه او بې شـوره فعاليت وکړي او هېڅ کله به له همدې فعاليت څخه سـتړې نه شي. خو د دهٔ د ښـځې شکايت او گيله به د تل لپاره د دهٔ په غوږونو کښې زنگ ووهي. دا چې ژوندی وي، د خپلو زامنو د مرگ غچ به هېر نه کړي.

مور ته د ربين په وينو ککړه څېره، سوځندې سترگې او سختې خبرې ور په زړهٔ شــولې،- کله چې يې دغه د ځناورانو منظره د ځان سره تصــوير کړه، له ډېره غمه څخه به يې زړه منجمد شو. په ټوله لار کښې د ربين غم ور سره و. تل به دی د دې و سترگو ته ولاړ و: ببره توره ږيره، شکېدلي کالي به يې اغوستي و، له تور سر څخه به يې وينې بهېدلې، لاسـونه يې تر شـا تړلي وو؛ داسې سړی و، چې پـه بې وزلۍ سر تر پـايـه پورې پـټ و، خو د ځـان سره يې د حقيقـت د را ژوندي کولو د اتلولۍ خيال درلود. مور د بې شــمېرو ښـارو او کليو په باب فکر کاوهٔ او د هغو و خلکو ته يې چرت واهۀ. دوی ټول په پټ ډول د عدالت په تمه دي. دا د هغو زرگونو خلکو په فکر کښـې ډوبه شوله، چې هغوی بې معنا ژوند کوي.

دې ته دا د دوی د ژوند يوه وچه او نه يوې شـوې کرونده معلومه شـوه، کومه چې د خلکو څخه د آبادېدو تمه لري او د حال په ژبه ورته وايي:

«په ما کښې د عقل او حقیقت تخم وپاشئ، هغه وخت به نو زه تر حده زیات حاصلات در کړم!»

مور چې خپله کامیابي ور په یاد کړه، په خپل زړه کښې یې آرامه خوشالي احساسوله او د ننګ له مخې یې دا خوشالي غلې کوله.

## «۱۹»

نیکولای چې کالي یې غیر منظم و او یو کتاب یې په لاس کښې درلود، و مور ته د سرای دروازه خلاصه کړه.

- څومره ژر بېرته راغلې!- دهٔ و مور ته په ډېره خوشالۍ سره وویل.- ما ستاسو د ژر راتګ هیله نه درلوده.

د دهٔ مهرباني سترګې د عینکو تر شا رپېدلې. دهٔ له مور سره د بالاپوش په کښلو کښې مرسته وکړه او په ډېره مهربانۍ سره یې ورته کتل. دهٔ وویل:

- دوی تېره شپه زموږ کور تلاشي کړ، زه ووېرېدلم، چې تا ته خو کوم شی نه دی در پېښ شوی، دوی زه و نه نیولم. که دوی ته په لومه کښې اچولې وای، نو زه به یې هم حتماً جیل ته بېولی وم!..

دهٔ چې مور د ډوډۍ خوړلو خونې ته بوتله، نو خپلو خبرو ته یې دوام ور کړ:

- مګر دوی به ما له کاره وشړي، لېکن زه په هغه خفه نه یم، ځکه چې زه له دې څخه ناروغه یم، چې ټوله ورځ پر مېز ناست یم او د کلي هغه خلک شمېرم، چې آسان نه لري!

د دۀ کوټــه داســـې معلومېــده، لکه چا چې په لاس کښـــې نیولې وي او خوځولې یې وي، څو د خونې ټوله شـیان بې نظمه شي. عکسونه لوېدلي وو، د دیوالونو کـاغـذونه څیرې شـــوي وو او ځینې ټوټې یې لا پر دېوالو ځړېدلې. د غولي یوه تـخته لېرې شوې وه، د کړکۍ تبنگ هم نړېدلی و، له بخارۍ څخه یې ایرې د خونې په منځ کښـې پاشـلي وې. مور ته دغه منظره لا پخوا بلده وه. مور خپل سر وښـــوراوۀ او نیکولای ته یې په فکر سره وکتل. د نیکولای په ســـلوک کښې او همدارنگه د دۀ په څېره کښې نوي گواښمن شیان احساسېدل.

ســورِ ســماوار د چایو له ناپاکو لوښــو سره پر مېز پروت و، د مېز منځ په کتـابو، د ډوډۍ په څخوڅکو او د ســـماوار د ســـکرو په ټوټو ډک و. مور لنډه خندا وکړه. نیکولای هم خجل تبسم وکړ.

- البتـه دا د بې ترتیبۍ منظره مـا نوره هم ور زیـاته کړه، مگر پروا نه لري، نیلوفنا! زه فکر کوم چې دوی به نن شـپه بیا د تلاشۍ لپاره دلته راشي، نو له دې کبله زه خپله کوټه نه جوړوم. ښه، دا وواياست چې سفر دې څنگه و؟

دې پوښتني پر مور سخت تاثیر وکړ او یو ځل بیا د ربین څېره ور په زړۀ شــوه. دا وشرمېدله، چې ولې دغه بیان په خپله دې و نه کړ. دې د مخ و خوا ته ځان کوږ کړ او د سـفر په بیان یې پیل وکړ. مور کوښـښ کاوۀ چې خپله آرامي وساتي او د ربین ټول حکایت بې له کمي څخه ټکي په ټکي وکړي.

- دوی هغه نیولی دی...

د نیکولای د مخ بڼه واوښتله.

- رښتیا؟

مور د لاس پـه اشـــاره ودراوۀ او خپلو خبرو تـه يې دوام ور کړ. مور تـه داسې معلومېدله، لکه د عدالت په مخ کښې چې ولاړه وي او د هغه وحشت او ظلم په مقابل کښـــې احتجاج کوي، کوم چې شرافت او انســـانيت گواښـــي. د نيکولای مخ بالکل ســـپېرۀ شــو، پر خپله څوکۍ يې تکيه وکړه او شـــونډې يې چيـچلې. هغـه ورو ورو عينکې لـه ســـترگو څخـه لېرې کړې او پر مېز يې کښـيښـودلې. پر مخ يې داسې لاس را تېر کړ، لکه د کومې غيرمريي غنې ځاله چې لـه خپـل مخ څخه پاکوي. ناڅاپه د دۀ څېره بالکل واوښـــتله، د باړخوگانو هډوکي يې په عجب ډول سره ښکاره شول او سږمې يې غورځېدلې،- مور هېڅ کله نيکولای په دغه وضعيت کښې نه و ليدلی، نو ځکه لږ څه وويرېدله.

کله چې د مور نکل تمام شـو، دی ولاړ شـو، په جيبونو کښې يې لاسونه منډلي وو او د لږ وخت لپاره يې کښـته او پورته قدم وواهۀ. وروسـته دۀ د خپلو غاښونو تر منځ وويل:

- دی بايد يو غټ سړی وي، د دۀ وضـعيت به په جېل کښې ډېر خراب وي، دا ډول خلک هلته ځان آرام نه گڼي او ډېر په عذاب وي.

دۀ لاســـونه لا ژور په جيبونو کښـــې دننه کړل او کوښـــښ يې کاوۀ، چې خپل اعصـاب آرام کړي. مور چې د دۀ غمجني وليدله، نو په هغه کښې ور سره شريکه شـوله. دۀ خپلې ســترگې تنگې نيولي وې او د يوه خنجر په شـان تېرې ښـــکارېدلې، دۀ خبرې کولې، مگر ټولې په غم لړلي وې او حرکت ته يې دوام ور کړ:

- تاســې د دغې وېرې او ډار فکر وکړئ! د ابلهو کسـانو يوه جزيي ډله د دې لپاره چې پر خلکو خپل تباه کوونکی حکومت وساتي، نو يوه ډله مظلومان

نیســـي، وژني يې او هر څه چې يې زړهٔ غواړي، هغه پر کوي. غلامي او بندګي ورځ په ورځ ډېرېږي، ظلم او اســتبداد د ځمکې په يو قانون بدلېدونکی دی. د دغه عمل په اړه فکر وکړئ! ځينې د دوی څخه لکه وحشـــي حيوانات، په قهر او غضـب کښې وي، ځکه دوی ډاډه دي، چې د قانون له خوا يې ملاتړ کيږي، دوی يوه طبيعي هيله لري، چې خلک وترړي، وترټي او وځورويي. د هغوی دغه هيله د غلامانو هغې ناورغۍ ته ورته ده، کومه چې د خپلو غلامانه احسـاساتو او ځنـاوري غريزو د ښـــودلو لپـاره پوره آزادي لري. بلـه ډلـه يې د انتقـام او غچ اخيسـتلو په زهرو لړل شوې ده. نور يې د ډېر استبداد له مخې بالکل بې مغزه او بې فکره ګرځولي دي. خلک خراب او بې لاري کوي- ټول خلک!

ودرېد او سر يې په دواړو لاسونو ونيو.

- په دې وحشـي ژوند کښې سړی په غيرارادي ډول ځناور کيږي.- دهٔ په نرمۍ سره وويل.

دی په ډېر کوښښ او زحمت سره پر خپلو افکارو او اضطراب مسلط شو او مور تـه چې کرار کرار يې ژړل، وکتـل او په ســـترګو کښــې يې يوه ثابته رڼا ځلېده:

- نيلوفنـا، مور بـايـد وخـت له لاســـه ور نه کړو، زما ګرانې، مور په خپله ځانونه په لاس ور کوو...

دی د غمجنې موســـکا سره و دې ته راغی او د دې لاســـونه يې په لاس کښې ونيول:

- ستاسې بکس چېرې دی؟

- په پخلنځي کښې!- مور ځواب ور کړ.

- زموږ د سرای په دروازه کښې جاسوسانو ځای نیولی دی. موږ نه شو کولای، چې له کور څخه په آسانۍ دومره زیات کاغذونه دباندې وباسو. دلته یې هم نه شو پټولای. زه فکر کوم چې دوی به نن شپه زموږ کور وپلټي او که څه هم د دغو پاڼو سوځول ښه کار نه دی، خو بیا هم مجبوراً یې باید وسوځوو.

- څه شي سوځوئ؟- مور ور ځنې پوښتنه وکړه.

- ټول شیان چې ستا په بکس کښې دي.

دا ژر د دهٔ په مقصد پوه شوله او که څه هم ډېره غمجنه وه، سره له هغې یې هم د غرور موسکا و نه شوای ساتلای. دې وویل:

- زما په بکس کښې هیڅ شی نه شته. حتی یوه نشریه هم نه شې پیدا کولای- وروسته یې نکل ورته شروع کړ. ټوله واقعه یې په مفصل ډول ورته بیان کړه. کله چې یې خبرې کولې، بېرته عادي حالت ته راغله. په لومړي سر کښې نیکولای په غم سره تندی تریو کړی و، مګر ژر یې د خفګان څېره په تعجب او حیرت بدله شوه، وروسته په ولولو سره د مور په خبرو کښې ور ولوېد او نارې یې کړې:

- دا ډېر د حیرانتیا او تعجب ځای دی! څومره لوړ بخت لرې...

دهٔ د مور لاس ونیو او په نرمۍ سره یې وویل:

- هغه عقیده چې تاسې یې د خلکو په حق کښې لرئ، ډېر ژر به په زړونو باندې اغېزه وکړي. په رښتیا سره ویلای شم، چې زه تاسې د خپلې مور په څېر مهربانه او ګرانه ګڼم!..

دې چې دهٔ ته په دقت سره کتل، و یې خندل، مګر حیرانه شوه چې دی څنګه په ناڅاپي ډول ژوندی او هوسا شو.

- داسې معلومېږي چې هر څه روښانه دي!- دهٔ خپل لاسونه مښل او په داسې حال کښې چې له ډېرې خوشالۍ څخه په کالیو کښې نه ځایېده، ویل یې.- زه په خپله په دې ځو ورځو کښې بالکل خوښ یم، کارګرانو ته به مې ډېرې خبرې کولې او ډېر لوست به مې هم کاوهٔ. دوی تل سړی د ښو او سپېڅلو افکارو سره پرېږدي. نیلوفنا، دوی ډېر باعظمته خلک دي! زما مقصد له کارګرانو څخه ځوانان دي، دوی ډېر قوي، حساس او له زده کړې سره ډېره مینه لري! که چېرې سړی دوی ته وګوري، نو نه شي کولای، چې دغه فکر وساتي: ښایي یوه داسې ورځ ژر راشي، چې روسیه په ټوله نړۍ کښې لومړنی ډیموکراتیک حکومت شي.

دی ودرېد او یو لاس یې داسې پورته کړ، لکه غواړي چې سوګند یاد کړي:

- خو زهٔ په دې رسمي کار کښې بېخي وروست شوم، ټوله ورځ و کتابو او اعدادو ته ناست یم. د یوه کال په موده کښې دې ډول ژوند زه بېخي لیونی کړی یم. ما د کارګرانو له ژوند سره عادت نیولی، زه چې بل هر ځای یم، تر فشار لاندې ځان احساسوم، مګر زه به اوس بیا د یوه آزاد سړي په څېر ژوند وکړم. زما ژوند به ډېر ساده، ښایسته او حیرانونکی وي. داسې ژوند به وي چې سړی به ځوان او غښتلی کړي. نیلوفنا، دغه د ژوندانهٔ ډېره ښه لار ده.

دهٔ د ډېرې خوښۍ او هوس خندا وکړه، مور پوه شوله، چې دی ډېر خوښ شوی دی او په هغه کښې یې ځان ور سره شریک کړ.

- او برسېره پر دې تاسې هم یو عجیب موجود یاست!- نیکولای ور بږغ کړ.- تاسې څومره په صراحت خلک شرح کوئ او دوی څومره ښه پېژنئ!

دی د مور په څنګ کښېناست، لومړی یې خپله له خندا څخه څېره واړوله، په وېښتانو کښې یې ګوتې وهلې، غوښتل یې چې خپله وارخطايي پټه کړي، مګر بيا يې و دې ته مخ را واړاوۀ او په داسې حال کښې چې مور ته يې کتل، د دې و ساده او روښانه نکل ته يې په بخل سره غوږ نيولی و.

- بالکل نادره نېکبختي ده!- دې ناري کړې.- د دې پوره امکان موجود و، چې تاسې يې بندي کړي وای، مګر له ښه مرغه تاسو د تښتېدلو لار پيدا کړه. هو، داسې معلوميږي چې کليوالي خلک را ويښ شوي دي، لېکن د دوی ويښول يو طبيعي قانون دی! هغه ښځه زه په صراحت سره ځان ته تصور کولای شم!.. موږ و مخصوصو خلکو ته ضرورت لرو چې هغوی و کليو ته وليږو. خلک! موږ د دې ډول خلکو کافي شمېر نه لرو... زموږ سلګونه کسان پکار دي...

- بس چې پاول او آندري آزاد وای!- مور په نرمۍ سره وويل.

دۀ و دې ته نظر واچاوۀ او وروسته يې خپل سر وخوځاوۀ.

- دا به ډېره سخته وي، چې زه اوس تاسو ته ووايم، خو سره له هغه هم زه مکلف يم، چې تاسو ته دغه شی ووايم: زه پاول ښه پېژنم، دی به هېڅ کله دا و نه مني، چې له جيل څخه وتښتي. دی محاکمه غواړي، دی هيله لري، چې خپل ځان په ټول قامت سره و ټولو خلکو ته وښيي او په علني ډول خپلې عقيدې او افکار اظهار کړي؛ دی به هېڅ کله دغه د محاکمې چانس له لاسه ور نه کړي. دی کولای شي چې له سايبريا څخه وتښتي.

مور سوړ اسوېلی وکېښ او په نرمۍ سره يې وويل:

- زه فکر کوم چې دی تر ما ښه پوهيږي...

نیکولای تر خپلو عینکو لاندې و مور ته وکتل او تر لنډ ځنډ وروسته یې وویـل:- زه خواهش لرم، چې دغه بزګر ژر زموږ کور ته راشي! موږ باید کلیوالو ته د ربین د وهلو په باب یوه نـــــــشریه ولیکو او هغه به ربین ته هېڅ ضرر و نه رسوي، ځکه چې دی ډېر زړه ور او شجاعتمن سړی دی. زه به یې نن ولیکم او لودمیلا به یې ژر چاپ کړي، مګر څوک به یې ورسوي؟

- زه به یې ورسوم...

- یا، مننه!- نیکولای په چټکۍ سره ځواب ور کړ.- ویسوف‌شیکوف دغه کار نه شي کولای؟

- زه به په دې باب خبرې ور سره وکړم؟

- خبرې ور سره وکړئ او هغه ته یې چل هم ور زده کړئ!

- خاطر جمع اوسه، زه به نو دا کار وکړم!

دی د میز و خوا ته کښېناست او په لیکلو یې پیل وکړ. مور د مېز پاکولو په وخت کښــې پټ پټ و دۀ ته کتل او و یې لیدل، چې د دۀ په ګوتو کښې قلم څومره په چټکۍ سره کار کوي. کله کله به د دۀ د غاړې عضلې غورځېدلې. دۀ به خپل سر شـا ته واچاوۀ او سترګې به یې پټې کړې. زنه به یې رېږدېدله. مور د دۀ په لیدلو سره مشوشه شوه.

- نشرـیه تکمیل شـوه!- دی بالاخره پورته شـو او و یې ویل.- دغه کاغذ واخلئ او و یې ساتئ. مګر هوښیاره اوسه که ژاندارم راشي، تاسو به هم وپلټي.

- پروا نه کوي!- مور په آرامۍ سره ځواب ور کړ.

د مازدیګر له خوا ډاکټر ایوان دانیلوویچ راغی.

- ولې حکومتي ارګانونه په ناڅاپي ډول دومره په تشویش شوي دي؟- په داسې حال کښې چې په خونه کښې یې قدم واهۀ، له ځان سره یې وویل- دوی برابې شپه اووه کوره پلټلي دي. زما ناروغ چېرې دی؟

- هغـه لا پرون ولاړ!- نیکولای ځواب ور کړ.- نن ورځ شـــنبه ده او دی هېڅ کله د قرائت مخصوصه غونډه نه هېروي...

- دا ډېر حماقت دی، چې په مات سر په یوه قرائت خانه کښـــې ناســـت وي...

- خپل ټول کوښښ مې وکړ، چې دغه خبرې ورته وکړم، مګر قناعت یې و نه کړ او ولاړ...

- البتـه دی غواړي د ملګرو مخ ته تظاهر وکړي،- مور زیاته کړه،- چې دا دی خپله وینه مې توی کړې ده....

ډاکټر و مور ته وکتل، خپل مخ یې غضبناک کړ او تر شونډو لاندې یې وویل:

- څومره خونخواره ښځه...

- ښه، ایوانه، اوس ځه، مور ستا څخه کوم کار نه غواړو او علاوتاً د میلمنو په تمه یو، ځه له خیره! نیلوفنا، هغه نشریه و ډاکټر ته ور کړئ...

- بله نشریه؟- ډاکټر نارې کړې.

- هو، دا واخله او چاپخانې ته یې ور کړه.

- زه به دا واخلم او ور به یې کړم. بل شی نه شته؟

- بل شی نه شته. یوازې په دروازه کښې مخبر ولاړ دی.

- هغه ما ولید، زما په دروازه کښــې هم ولاړ دی. ښــه، د خدای په امان! خونخوارې ښځې، د خدای په امان! په هر حال د هدیرې جنګ تر ټولو زحمتو وروسته ښه انعکاس کړی دی، ټول ښار د هغه باب خبرې کوي. هغه نشـــریه چې تا لیکلې وه، ډېره ښــه وه او پر ډېر ښــه وخت را ووتله. ما تل ویل چې ښــه جنګ تر بدې سولې ښه دی...

- خیر دی، ولاړ شه...

- زه به و نه وایم، چې تاسې مېلمه پالونکي یاست! ستاسې لاس، نیلوفنا! دغه هلک ډېره ناپوهي کړې ده، چې غونډې ته تللی، ته پوهېږې چې دی چېرې ژوند کوي؟

نیکولای دهٔ ته د هغه ادرس ور کړ.

- زه به سبا ور شم، ښه هلک نه دی؟

- ډېر...

- مور یې باید پاملرنه وکړو، ښــه فکر لري!- ډاکټر چې په لار کښې تلئ، ویې ویل.- مور دغه ډول ملګري خوښــوو چې هغه د کارګر عالي ذهنیت لري او کله چې مور و یوې داسې دنیا ته سفر وکړو، چې هلته طبقاتي تضاد نه وي، نو دی به هرومرو زمور ځای ونیســـي او په پرولتاري روښانفکرانو کښې به لوی رول ولوبوي...

- ایوانه، په دې ورځو کښې خورا ډېرې خبرې کوې...

- دا ځکه چې نن ډېر خوښ یم او تاسې د جیل په تمه یاست، ښه، هلته ډېر ښه استراحت وکړئ!

- مننه، زه تر اوسه ستومانه نه یم!

مور د دوی له هغې علاقې څخه، چې د دغه کارګر هلک په برخه کښې یې ښکاره کړه، خوشاله شوه.

کله چې ډاکټر ولاړ، نیکولای او مور د شـــپې ډوډۍ خوړل پیـل کړل، ډېرې کرارې خبرې یې کولې او د نیمې شـــپې د میلمنو پـه تمه وو. نیکولای و مور ته د خپل تبعید او هغو ملګرو په باب، چې له تبعید څخه تر تښتېدو وروسته یې په جعلي نوم سر بیا و خپل فعالیت ته دوام ور کړئ، بیان وکړ. د کوټې لوڅو د دېوالونو د ده خبرې بیرتـه منعکســـه کولې او داســـې معلومېـدل، چې د هغو متواضـع قهرمانانو په هکله داستان، کوم چې د نړۍ د سمون په غرض یې خپل ټول وس او ځواک پـه فداکارانه توګه وقف کړی، نه منل کیږي. د دغو ناآشـــنا خلکو په باب د مور په زړهٔ کښې د دوستۍ او ناز تود حس پیدا شو او دغه ټول خلک د مور په خیال او تصـور کښـې په داســې یو غټ او غښـتلي انسـان بدل شـول، کوم چې له نه خلاصېدونکي میراني څخه ډک و. دغه تصوري انسان په ډېر اطمینان او کرارۍ سره مخ په وړاندې ځي او د پیړیو، پیړیو زاړهٔ قشـرونه یې پاکوي، څو چې خلک په اســانۍ سره د ژوندانهٔ ســاده او واضـع حقایق درک کړي او دغه ســتر او بیا را ژوندی شـوی حقیقت ټول خلک بې له اســتثنا څخه ځـان تـه را خپـل کړي. دغـه حقیقت له حرص، کرکې او تقلب څخه د نړۍ د آزادولو وعده ور کوي. دا درې واړه هغه وحشـــــي دېبان دي، چې ټول خلک وېروي او په دنیا کښـــې یې د مرییتوب ځنځیر غوړولی دی. دغو افکارو د مور په زړهٔ کښـــې یو داســـې احســـاس را ژوندی کاوهٔ، کومو چې هغه وختونه ور په یادول، کله چې به دا پر ســجده پرېوتله او له ښــادۍ او ممنونیت نه په ډکه دعا سره به یې هغه ورځ خلاصوله، کومه چې و مور ته د نورو ورځو په مقایسه آسانه

ښکارېده. مور دغه ورځې هېرې کړې، اما هغه افکار او احساسات چې په دغو ورځو کښې را زېږېدلي وو، لا نور هم روښانه او د خوښۍ نه ډک شول او د دې په روح کښې يې ژورې ريښې وځغلولې او د يوه ژوندي موجود په شان يې وده وکړه.

- ژاندارم نه راځي!- نيکولای په ناڅاپي ډول خپله کيسه پرې کړه او و يې ويل.

مور و دهٔ ته وکتل، لږه شيبه پټه خوله پاته شوه او وروسته يې له ځور سره ځواب ور کړ:

- ما ورته وويل چې دوی به دوزخ ته ولاړ شي!

- زه ستاسې د نظريې سره بالکل موافق يم! لېکن اوس بايد خوب وکړې، نيلوفنا، تاسې به ډېره ستړي ياست، تاسې څومره يوه پياوړې او ټينګه اراده لرئ! دغه ټول ګواښ او ولولې تاسو ته آسانه ښکاري، مګر بيا هم ستاسې وېښتانو خاکي رنګ پيدا کړی دی. اوس ځئ، لږ استراحت وکړئ.

«۲۰»

مور د دروازې په سختو ټکولو سره له خوب څخه را ويښه شوه. دروازه په ډېر ټينګار او سختۍ سره ټکېدله. هوا لا تر اوسه پورې تيارهٔ وه او له دې ډول دروازې ټکولو څخه د خطر احساس کېدهٔ. مور په چټکۍ سره کوم شی پر اوږه واچاوهٔ او پخلنځي ته ولاړه او بيا يې و دروازې ته ځان ورساوهٔ. مور وپوښتل:

- څوک يې؟

- زه یم!- یوه ناآشنا ږغ ځواب ور کړ.

- څوک؟

- ور خلاص کړئ!- سړي په ټیټه لهجه او خواهشانه آواز سره وویل.

مور د دروازې قلف خلاص او ور یې په پښه وواهۀ. کله چې ور خلاص شو، ایګناتي په دروازه راننوت او په خوشالۍ سره یې نارې کړې:

- ښه دی، کور مې نه دی غلط کړی!

دی تر ملا پورې په ختو لړلی و، مخ یې بالکل سپېرۀ شوی و او سترګې یې لوېدلي وې. یوازې د دۀ زنګوله وهښتان له خولۍ څخه و هر طرف ته را وتلي وو.

- مور په ډېر مشــقت کښــې یو!- کله چې هلک دروازه وتړله، غلي یې وویل.

- زه خبره یم...

هلک چې دا ځواب واورید، په حیرت کښــې ولوېد. دۀ خپلې ســترګې ورپولې او و یې پوښتل:

- تاسې څنګه په دې باره کښې پوه شوي یاست؟

دې و دۀ ته لنډ معلومات ور کړل او ور ځنې یې وپوښتل:

- دوی هغه دوه نور ملګري هم ونیول؟

- یـا، هغوی نـه وو، دوی دوه تنـه د عســکري خدمت لپاره ولاړل! مګر دوی پنځه تنه چې ربین کاکا هم پکښې شامل و، ونیول...

دۀ یوه اوږده ساه وکښله او تر یوې لنډې خندا وروسته یې زیاته کړه:

- زه یوازینی کس وم، چې پاتې شوم او دوی به زما په لټه کښې هم وي.

- ته څنګه له دوی څخه خلاص شــوې؟- مور ور ځنې پوښــتنه وکړه. په دغه شیبه کښې د کوټې دروازه نیم خلاصه شوه.

- زه؟- ایګنـاتي چې پر څوکۍ نـاســت و او شــاوخوا ته یې کتل، ناري کړې.- یوه دقیقه پخوا د دوی د راتګ څخه ځنګل‌وان راغی او د کوټې کړکۍ یې ووهله او و یې ویل:

«دوی په تاسو پسې راغلي دي، پر ځانونو پام کوئ!..»

هلـک کرار کرار وخندل او په چپنې سره یې مخ پاک کړ او خبرو ته یې دوام ور کړ:

- کاکا ربین حتی د چکش په ګوذار نه کوڼ کیږي. په دغه وخت کښــې یې ما ته وویل: «ایګناتي، ته باید د ځان چاره وکړې، ښــار ته باید ولاړ شــې او هغې مشـــــرې ښـځې ته ځان ورسـوې!» په خط لیکلو یې پیل وکړ او ما ته یې وویـل: «دغـه پرزه خط و هغې تـه ور کړه...» وروســتـه بیا زه په وښـــو او نورو بوټه‌زارو کښــې داسـې پټ شـوم، څو چې مې د پټېدلو پوره باور حاصل شو. د دوی د پښـو دربهار مې په ښــه ډول اورېدهٔ. دوی رذیلان بالکل ډېر وو! پر ټوله شــاوخوا باندې را ګرځېدلي وو او زموږ ټاټوبی یې محاصره کړی و. زهٔ ډېر پټ په وښـو کښــې پرېوتلم او دوی زما له پاســه څخه تېر شـول! وروسته زهٔ را پورته شوم او په خپل ټول واک او توان سره مې په ځغاسته شروع وکړه! دوې شپې او یوه ورځ مې بې له ځنډ څخه مزل وکړ.

مور ولیدل چې دی له خپل چل څخه ډېر خوند وړي او ور سره ډېر قانع دی. د دهٔ په نصواري سترګو کښې موسکا لیدل کېدله او غټ او ښکلي شونډان یې رېږدېدل.

- ډېر ژر به چای تیاري کړم!- مور په تلوار سره سماوار واخیست او و یې ویل.

- د ربین لیک دغه دی...

دۀ په سختۍ سره خپله پښه په داسې حال کښې چې درد او مشقت یې بل سړي لیدلای شوای، پورته کړه او د څوکۍ په اړخ کښې یې کښېښودله.

په دروازه کښې نیکولای ور معلوم شو.

- شپه دې په خیر، ملګریه!- دۀ خپلې سترګې چوغې کړې او و یې ویل.- اجازه را کړه چې مرسته در سره وکړم.

نیکولای ور چوخ شو او د ایګناتي له پښو څخه یې د خیرنو ټوټو په خلاصولو پیل وکړ.

- اخ،- هلک په نرمۍ سره نارې کړې او خپله پښه یې کش کړه. وروسته یې په حیرانتیا سره و مور ته وکتل.

مور بې له دې چې د دۀ کتل په نظر کښې ونیسي، وویل:

- مور! باید د دۀ په پښو الکول وهو.

- البته!- نیکولای ځواب ور کړ.

ایګناتي په وارخطایۍ سره ساه وکښله.

نیکولای لیک پیدا کړ، خلاص یې کړ او دغه چملوک شوی کاغذ یې و سترګو ته نژدې ونیو او په ویلو یې شروع وکړه. په لیک کښې لیکل شوي وو:

«زموږ کار مه پرېږدئ، مورې، و هغې جګې مېرمنې ته ووایه، چې تر څو ډېرې پاڼې زموږ د فعالیتونو په باب ولیکي، زه ستاسو سره خدای په اماني کوم. ربین».

نیکولای چې مکتوب یې په لاس کښېـــږ و، لاس وځړاوهٔ او د زمزمې په توګه یې وویل:

- څومره ښه!..

ایګنـاتي ناســـت و، په ډېر ځیر سره یې دوی ته کتل او په محتاطانه ډول یې د لوڅې پښــې په ختهو لړلي ګوتې خوځولې؛ مور کوښــښ وکړ چې د خپلو سترګو اوښکې په هغه وخت کښې پټې کړي، کله چې یې د اوبو ډک لوښی دهٔ ته راوړ، چې پښې یې ور پرېمنځي. هلک په چټکۍ سره پښه تر څوکۍ لاندې کش کړه او د ویرې او حیرانتیا په ډول یې نارې کړې:

- آخ، تاسو ته لازمه نه ده!

- ژر دې پښې را نژدې کړه، ژر شه...

- زه به الکول راوړم،- نیکولای وویل.

هلک یو څه لا نور خپلې پښې تر څوکۍ لاندې کش کړې او و یې ویل:

- دا څه شي دي؟ آیا دا ځای روغتون دی...

مور د دهٔ د بلې پښې په خلاصولو شروع وکړه.

ایګناتي په زوره سره ساه وکښله او د غاړې و پېچلو ته یې دوام ور کړ او د پاسه یې و مور ته کتل.

- ته خبر یې،- مور په رېږدېدلي آواز سره وویل،- چې دوی ربین سـخت وواههٔ؟

- و یې واههٔ؟- هلک په وېرې او ډار سره په ټیټ آواز نارې کړې.

- هو، دی پخوا لـه دې چې نیکولسـکي ته یې راوړي، ډېر یې وهلی و.
کوټوال دی پر مخ وواهۀ او تر پښــو لاندې یې واچاوۀ، تر هغه وخته پورې یې وواهه، څو چې په خپلو وینو کښې لت پت شو!...
- هو، دوی پـه دغه کار کښـــې ډېر ماهر دي!- هلک خپل تندی تریو او ویې ویـل. د دۀ اوږې په غیرارادي ډول سره وریږدېدلې.- زه د زرو بلاوو څخه دومره نه ویریږم، لکه له دوی څخه! آیا بزګرو هم دی وواهۀ؟
- یوه بزګر هغه هم د کوټوال په امر سره وواهۀ، مګر نور ټول زموږ پر زړۀ جوړ وو. حتی دوی د دۀ د خواخوږۍ نارې وهلې! چې تاسې د دۀ د وهلو حق نه لرئ...
- هـام،- بزګر هم اوس پوه شــوي دي، چې د حق لار وپېژني او د چـا ملګري شي.
- د دوی په منځ کښې هم هوښیار خلک پیدا کیږي...
- هو، هر چېرې دا ډول خلـک شـــته او د دوی هیلو او غوښـــتنو دوی هوښـیار او حسـاس کړي دي! بې شکه چې دوی په هر ځای کښې شته، مګر د هغو پیدا کول ډېر سخت دي.
نیکولای بوتل الکول راوړل او سـماوار ته یې څو نور سکارۀ هم واچول او وروسـته پټه خوله بېرته ولاړ. ایګناتي په پلټونکو سترګو سره و دۀ ته وکتل او په نرمۍ سره یې له مور څخه پوښتنه وکړه:
- دا ښاغلی ډاکټر دی؟
- دلته کوم اشرافي سړی نه شته، ټول زموږ ملګري دي...
- زه ډېر حیران یم!- ایګناتي په وارخطایۍ سره وویل.

- ولې حيران ياست؟

- ځکـه چې ټول شــيـان د حيرانتيـا وړ دي. له يوه سره دې دوی پزه در وينې کوي او له بله سره د سړي پښې مينځي، نو دلته په منځ کښې څه شي دي؟

د کوټې دروازه خلاصـه شـوه او نيکولای په درشـل کښــې ور معلوم شو چې يې وويل:

- په منځ کښــې دا ډول خلک شته، چې د هغو کسانو په وينو ککړ شوي لاسـونه څټي، کوم چې پزه وينې کوي او د هغه کسـانو وينې زبېښــي، کوم چې وهل کيږي. دا ډول خلک په منځ کښې پراته دي.

ايګناتي دهٔ ته په احترام سره وکتل او تر لږ ځنډ وروسته يې وويل:

- زه فکر کوم چې ستاسې خبره و حقيقت ته نژدې ده!

هلک ولاړ شو او يو څو ټينګ ګامونه يې واخيستل. وروسته يې وويل:

- پښې مې لکه چې بېځي نوي شوي وي! ډېر مننه کوم...

وروســـته دوی د ډوډۍ خوړلو کوټې ته د چايو د څښـــلو لپاره ولاړل او ايګناتي د خپل ژوند سړې او تودې و دوی ته په ډېر متين آواز سره بيان کړې:

- ما اخبار ويشه، ځکه نو د تګ سره ډېر عادت لرم.

- ډېر خلک دا اخبارونه لولي؟- نيکولای ور ځنې پوښتنه وکړه.

- ټول کســان چې په ليک او لوســت پوهېږي، لولي يې، حتی بډايان يې هم لولي،- البته دوی زموږ څخه اخبار نه اخلي... مګر دوی دومره پوهېږي، که چېرې بزګر را ويښ شي، نو هرومرو بـه د زمين دارانو دومره وينې توی کړي، څو چې د ځمکې له مخ څخه د دوی له لاسه منځ ته راغلي ظلمونه پاک کړي. هغه وخت به هر څه په خپل منځ کښې په مساويانه ډول وويشي او د تل لپاره به

بیا څوک د زمین دارانو او مریي نوم وا نه وري. دا خو یو واضح او منلی حقیقت دی- نو ځکه دوی هم تر خپله وسه پورې مبارزه کوي!

ایګناتي غمجن غوندې ښکارېدهٔ او نیکولای ته یې په وارخطایۍ او بې اعتمادۍ سره کتل. نیکولای موسکا وکړه مګر هېڅ یې و نه ویل.

- که موږ نن جګړه شروع کړو او دا جګړه د ټولې نړۍ په مقابل کښې وګټو، سبا به بیا هم همدا حالت وي، یعنې یو به شتمن وي او بل غریب- د دې مبارزې ګټه به څه وي؟ یا، مننه! (موږ نه شئ غلطولای) زما په خبره پوهېږئ، شتمني و وچ رېګ ته ورته دی او پر یوه ځای باندې نه درېږي شتمني به له یوه طرف نه بل طرف ته حرکت وکړي! آخ، موږ داسې شکل نه غواړو!

- خیر دی، ته مه خفه کېږه!- مور د ټوکې په ډول ورته وویل.

نیکولای د تفکر په حال کښې ناري کړې:

- هغه شی چې زما د خفګان سبب ګرځي، هغه دا دی چې څه ډول هغه پاڼه چې د ربین د حبس په باب لیکل شوې ده، پر خپل وخت باندې و هغو بزګرو ته ورسوو!

ایګناتي متوجه شو.

- آیا په دغه برخه کښې کومه نشریه شته؟- دهٔ وپوښتل.

- هو.

هلک په داسې حال کښې چې لاسونه یې مښل، د پېشنهاد په توګه وویل:- هغه ما ته را کړئ، زه به یې ورسوم!

مور بې له دې چې دهٔ ته وګوري، کرار وخندل او و یې ویل:

- ته خو ستړی یې او تا وویل چې زه خو ډېر سخت وویرېدلم؟

هلک په داسې حال کښې چې په خپل پلن ورغوي سره یې چنګ چنګ وېښتان سمول، په کرارۍ او متانت سره وویل:

- وېره بېل شی دی او وظیفه بېل شی! تاسو ولې خاندئ؟ آیا تاسې تر ټولو ښه یاست؟

- اې، زما ناپوه ماشومه!- د مور په زړهٔ کښې د دهٔ د وینا په اورېدلو سره خوشالي پیدا شوه او په غیرارادي ډول یې نارې کړې. هلک لږ شان ته خجالت شو او په پوزخند سره یې وویل:

- آها، ماشوم!

نیکولای چې و هلک ته په خپلو مهربانو او نیم پټو سترګو سره کتل، په خبرو کښې ولوېد:

- تاسې به هلته ولاړ نه شئ...

- ولې؟ چېرې زه باید ولاړ شم؟- ایګنات په تشویش سره ور ځنې وپوښتل.

- بل کومکسبه نشریه یوسي، مګر تاسې یوازې هغه ته د وړلو لار ور وښیاست، چې په څه ډول هغه یوسي او د خلکو په منځ کښې یې تقیسم کړي. آیا تاسې کولای شئ؟

- ډېر ښه!- ایګنات تر ځنډ وروسته زړه نازړه ځواب ور کړ.

- مورږ به تاسو ته یوه نوې تذکره پیدا کړو او د ځنګل وان په توګه به دې مقرر کړو.

هلک خپل سر وښوراوهٔ او په اضطراب سره یې وپوښتل:

- که زه د ځنګل پهره دار شـم او که بزګر د سون د لرګیو لپاره را شي، زه له هغو سره څه وکړم؟ و يې نيسم؟ دا وظيفه زما وړ نه ده.

مور او نیکولای دواړو وخندل. هلک وارخطا او پرېشان شو.

- تشـویش مه کوه!- نیکولای د دهٔ تسـلي وکړه.- تاسـې مجبور نه یاست، چې بزګر ونیسئ، خاطر جمع اوسه!..

- ښــه دی!- ایګناتي د آرامۍ په خندا سره وویل.- مګر زه غواړم چې په فابریکه کښــې یو کار پیدا کړم، اورېدلي مې دي چې کارګران هوښــیار خلک دي...

مور ولاړه شوه، کړکۍ ته يې وکتل او د تفکر په حال کښې يې وویل:

- ژوند یو عجیب شی دی! پنځه واره د ورځې خاندې او پنځه ځله ژاړې! ایګناته! خبره دې خلاصه کړه؟ اوس څه، لږ استراحت وکړه...

- زړهٔ مې نه کیږي...

- څه، څه...

- دا چې تاسې ډېر سخت ګیر یاست! ښه، نو ویده به شم، ستاسو له چایو څخه مننه، ډېره مننه ستاسې له مهربانۍ څخه...

کله چې دی د مور په بسـتره کښـې پرېووت او په داسـې حال کښې چې سر يې ږمنځاوهٔ، تر شونډو لاندې يې له ځان سره وویل:

- اوس بـه هر څـه د قیرو بوی واخلي... اخ! دا ټول بېځایـه دي... مـا ته خوب نه را ځي... ډېر ښــه او ســم ځواب يې د منځ د خلکو په هکله را کړ... شیطانان...

دی ډېر ژر ویدهٔ شـو، په زور یې خرهار کاوهٔ، خولۍ یې نیمه خلاصه وه او بانهوګان یې تړلي وو.

## «۲۱»

په دغه ورځ مازدیګر ایګنات په یوه وړوکي کوټه کښې، چې تر ځمکې لاندې وه، د ویسوف‌شیکوف په مقابل کښې ناست و او د معما په ډول یې ورته ویل:

- څلور واره په منځنۍ کړکۍ کښې...

- څلور؟- نیکولای په ناآرامۍ سره تکرار کړ.

- اول- درې ځله، همداسې!

بیا یې ګوته پر مېز ټکوله او حسابول یې:

- یو، دوه، درې، بیا لږ دمه او بیا یو ځل نور.

- زه پوه شولم.

- یو ســورسری بزګر به ور خلاص کړي او وبه پوښــتي- آیا د قابلې لپاره راغلی یې؟ تاسـې باید ورته په ځواب کښې ووایاست- هو، د فابریکې د خاوند لخوا! دغه کفایت کوي، دی پوهېږي!

دغه دوه قوي البنیه هلکان نژدې ناست وو، سرونه یې سره نژدې کړي وو او پټې خبرې یې کولې. مور د مېز و خوا ته ولاړه وه او په داسې حال کښې چې لاســونه یې پر ســینه باندې نیولي وو، هغوی ته یې په ځیر سره کتل. دغو ټولو مخفي ټکونو، معمایي شرطي پوښـتنو او ځوابونو د مور په زړهٔ کښې یو عجیب حس را پیدا کاوهٔ او په موسکا یې له ځان سره فکر کاوهٔ:

«دوی تراوسه ماشومان دي...»

پر دېوال باندې روښانه ځراغ لګېدۀ او کوټه يې، چې د زنګ، رطوبت او رنګ بويونه درلودل، روښانه کاوۀ.

ايګنات پنډه ببر بالاپوښ اغوستی و چې د دۀ ډېر خوښ و او مور ليدل، چې دی په مينه سره خپل بالاپوښ ته ګوري او د هغه پر لستوڼي خپل پلن ورغوی تېروي. مور له ځان سره ويل:

«زما ګرانو ماشومانو...»»

- دغه دي ټول شيان!- ايګناتي ولاړ شو او و يې ويل.- دا مه هېروه، اول موراتوف ته ولاړ شه او نيکه را وغواړه...

- نه يې هېروم!- ويسوف‌شيکوف وويل.

ليکن ايګنات قناعت و نه کړ، دمخه تر دې چې لاړ شي، يو ځل يې بيا ټولې اشارې او خبرې تکرار کړې. بالاخره يې خپل لاس اوږد کړ او و يې ويل:

- زما سلام هم دوی ته ورسوئ! دوی ډېر ښه خلک دي، تاسې به په خپله په دې باره کښې قناعت حاصل کړئ....

ايګنات خپل کوټ ته له رضايت نه ډک نظر واچاوۀ، پر هغه يې لاس تېر کړ او له مور څخه يې پوښتنه وکړه:

- ولاړ شم؟

- ته به خپله لار پيدا کړې؟

- يقيناً، پيدا کولای يې شم، ملګرو، د خدای په امان!

ایگنات دباندې ووت، پلنې او گردې اوږې، لوړه سینه یې درلوده.نوې خولۍ یې پر یوه غوږ باندې کږه کړې وه، په ډېر زړه‌ورتوب یې لاسونه په جیبونو کښې منډلي وو او زنگوله زنگوله وېښتان یې ځړېدل.

- دا دی، زما لپاره هم کار پیدا شو!- ویسوف‌شیکوف د مور و خوا ته راغی او و یې ویل.- ناحقه د جېل نه وتښتېدم، اوس دلته ډېر تنگ یم، هلته د پاول سره وم او ډېر شیان مې ور ځنې زده کول. په جېل کښې مې درس وایهٔ، پاول هلته په داسې فشار سره زما مغز فکر ته مجبوراهٔ، چې ډېر خوند مې ترې اخیست! نیلوفنا، د دوی د تښتېدو په باب څه پریکړه وشوه؟

دې په غیر ارادي حوصلې سره وویل:- زهٔ هېڅ خبر نه لرم!

ویسوف‌شیکوف خپل دروند لاس د دې پر اوږه کښېښود او دې ته ور چوخ شو او و یې ویل:

- په دې برخه کښې ور سره خبرې وکړه- دوی به ستا پر خبرو غوږ ونیسي - دا ټول ساده ښکاري! ته په خپله قضاوت وکړه، دغه د جېل دېوال دی او دستي د هغه و خوا ته د جادې څراغ دی. دېوال ته مخامخ ډگره پرته ده او و کیڼ خوا ته هدیره ده، و ښي لاس ته جادې او کورونه هم شته. هره ورځ د څراغ موظف سړی راځي او هغه پاکوي، دی باید زینه ولري او د دېوال سر ته پورته شي، رسۍ په خښتو باندې ټینگه وتړي او د جېل انگړ ته یې وځړوي- نو ته به هلته یې! په دننه کښې دوی پوهېږي، دستي د جزایي بندیانو په واسطه غالمغال جوړوي او یا دوی خپله نارې وهي، څوک چې تښتي، هغه و زینې ته پورته کیږي، یو، دوه او ټول کار خلاص دی!

دۀ د خپل پلان د تشـــريح په وخت کښې لاسونه خوځول، هر څه ورته واضــح او ســاده ښــکارېدل. ويســوف‌شــيکوف به تل و مور ته شــاړې واړې ښکارېدۀ، دۀ به هر شي ته په تريو تندي او بې اعتمادۍ سره کتل. مگر دا پلا هر څه بدل شوي و ، د دۀ په سترگو کښې يوه خاصه روښنايي ليدل کېده او په ډېره ښه توگه يې دا تشويق کوله...

- اصلي ټکی دا دی چې دوی دا کار بايد په ورځ کښې وکړي!.. په ورځ کښې، ته فکر وکړه، څوک دا فکر کولای شي چې يو بندي به وتښتي په داسې حال کښې چې د بنديخانې ټول حالات عادي وي؟..

- دوی به پرې ډزې وکړي!- مور سخت ټکان وخوړ او په وارخطايۍ سره يې وويل.

- څوک بـه پرې ډزې وکړي؟ هلته خو عســکر نه شــته او پهره داران په تفنگچو سره د خپلو بوټو ميخونه ټک وهي...

- دومره هم آسانه نه ده لکه ته چې وايې...

- ته به په خپله په دې باره کښې قناعت وکړې- همدغه ډول ده! ته يوازې په دغه برخه کښــې د دوی سره خبرې وکړه. ما هر څه برابر کړي دي- د واښکو زينـه، چنگک چې په خښــتو کښــې يې بند کړې، زما بادار به د څراغ موظف سړی وي...

کوم بلکســد دروازې دباندې وټوخل او په پښــه سره يې کوم فلزي شی وواهۀ.

- دا هغه سړی دی!- نيکولای وويل.

په دروازه کښې یو حلبي لوښی چې په حمام کښې استعمالېدهٔ، ولیدل شو او یوه ټیټ بږغ وویل:

- شیطانه، دننه شه....

وروسته یو گردی سر چې سپېرهٔ وېښتان، را وتلي سترگې او نري برېتونه یې درلودل، ولیدل شو.

نیکولای د لوښي په را ایستلو کښې د دهٔ سره مرسته وکړه. په خونه کښې یو جگ کړوپ سړی، چې له سخت ټوخې څخه یې زنه خوځېدله، راننووت. د خولې لاړې یې وغورځولې، وروسته یې په درانهٔ آواز سره سلام وکړ:

- سلام...

- دغه دی، له دهٔ څخه پوښتنه وکړه!- نیکولای وویل.

- زما څخه؟ د څه شي پوښتنه؟

- د تېښتې لپاره...

- پوه شوم!- حلبي ساز په تورو گوتو سره برېتونه پاک کړل او و یې ویل.

- یاکوف واسیلېویچه، دا یې په دې سادگۍ سره نه مني.

- نه یې مني؟ دا په دې معنا ده چې دا یې نه غواړي. مگر زه او ته هغه غواړو، نو ځکه یې منو هم!- حلبي ساز په آرامۍ سره ځواب ور کړ. ناڅاپه دی له ټوخي څخه کوږ شو، کله چې د ټوخي سیلاب تمام شو، دی د څه وخت لپاره د کوټې په منځ کښې ودرېد او خپله سینه یې ومښله. د مور بڼه یې په خپلو را وتلو سترگو سره مطالعه کوله.

- دا پوښتنه باید پاول او د هغه ملگري ځواب کړي،- نیلوفنا وویل.

نیکولای د تفکر په حال کښې خپل سر وځړاوهٔ.

- پاول څوک دی؟- کله چې حلبي ساز په څوکۍ کښېناست، ور څنې يې وپوښتل.

- زما زوی دی.

- د دهٔ کورنۍ نوم څه شي دی؟

- ولاسوف.

دهٔ سر وښوراهٔ، د تمباکو کڅوړه يې را وکښله او د خپل پايپ په ډکولو يې پيل وکړ. وروسته يې پرې پرې خبرې وکړې:

- د دهٔ نوم مې اورېدلی دی، زما وراورهٔ يې پېژني، هغه هم په جېل کښې دی، د دهٔ کورنۍ نوم ايف‌چينکو دی- د دهٔ نوم به دې اورېدلی وي؟ زما کورنۍ نوم گوبن دی. ډېر ژر بـه دوی ټول ځوانـان بنـديان کړي او نوره ټوله ځمکه به موږ زاړو ته را پاته شي! يوه ژاندارم ما ته وعده را کړه، چې زما وراره به سـائبريا ته ولېږي. همداسې به وکړي، د سپي زوی!

دهٔ و نيکولای ته مخ را واړاوهٔ، پايپ يې ښکاوهٔ او ناړې يې تف کړې.

- آيا دا زموږ پلان نه منئ؟ اختيار د دې دی. انســان آزاد دی، که دی له ډېرې ناستې څخه ستومانه شوی وي، په حرکت به شروع وکړي او که له حرکت څخه سـتړی وي، کښـېنسـتلای شي. که دی لوڅوي، خوله پټه ونيســه؛ که دی وهي، نارې مه وهه؛ که دی وژني، ورته پرېوځه. هر څوک په دغه پوهېږي، مگر ډاډه اوسه چې زهٔ به خپل ورارهٔ خلاص کړم.

مور د دهٔ په خبرو سره، چې لنډې او نامرتبې وې، هکه پکه شـوه، مگر د دهٔ له وروستنۍ خبرې سره د مور کينه پيدا شوه.

کله چې مور په کوڅه کښــې په باران کښــې تله، د نیکولای په باب یې فکر کاوۀ:

«دۀ په څه ډول دغه بدلون وکړ؟ اوس څنگه د کلکې ارادې خاوند شو!»

کلـه چې بـه دې حلبي‌ســاز ور په زړه کړی، د ځان سره یې د زمزمې په توگه، چې یوې دعا ته ورته وه، ویل: «معلومیږي چې زه مســتثنی انســان نه یم، چې د ژوند نوې لار مي غوره کړې ده.»

وروسته بیا د دې فکر و خپل زوی ته واووښت:

«کاشکي چې دی موافقه وکړي!»

## «۲۲»

کله چې دې د یکشنبې په ورځ د جېل په اداره کښې و پاول ته خدای په اماني ویله، په خپل لاس کښــې یې یو کوچنی پېچ شــوی کاغذ حس کړ. مور داسـې سـخت ټکان وخوړ، لکه چې دغې کاغذ د دې ورغوی سـوځولی وي، خپل زوی ته یې اســتفهام آمیزه نظر واچاوۀ، مگر ځواب یې وا نه وربد. د پاول په آبي رنگه سـترگو کښـې یوه عادي، نرمه او متینه موسکا چې مور ته آشنا وه، لیدل کېدله.

- د خدای په امان!- مور په حوصلې سره وویل.

دۀ بیا و مور ته خپل لاس اوږد کړ او د محبت سـیوری یې د مخ د پاسـه تېر شو.

- مورې، په مخه دې ښه!

مور بې له دې چې د دۀ لاس خوشی کړي، د کوم شي په تمه وه.

- تشویش مه کوه او مه په قهر کېږه!- دۀ وویل.

دغه الفاظ او د دۀ د تندي تېزه گونځه د دې ځواب و.

- گرانه، څه وایې؟- دې سر کښته کړ او د زمزمې په ډول یې وویل.

مور په تلوار سره بې له دې چې ورته وگوري، ووتله او کوښښ یې وکړ، چې زوی یې د سترگو اوښکې او د شونډو رېږدېدل و نهویني. په ټوله لار کښې یې هغه لاس چې کاغذ پکښــې و، درد کاوۀ، لکه یو ډېر دروند گوذار چې یې خوړلی وي. کله چې کور ته ورسېدله، دستي یې کاغذ و نیکولای ته ور کړ او په داسې حال کښې چې دۀ کلک پېچ شوی کاغذ سماوۀ، ځواب ته منتظره وه او د دې په زړۀ کښې د یوه امید حس ور پیدا شو. مگر نیکولای وویل:

- وگورو چې څه یې لیکلي دي:

*«ملگرو، مور به و نه تښــتو، نه شــو کولای... هېڅ یو له موږ څخه دې کار ته حاضر نه دی. که دا کار وکړو، پر خپل نفس اعتماد به له لاسه ور کړو، بهتره دا ده چې د هغه بزگر په اړه فکر وکړئ، چې نوی نیول شوی دی او ستاسو د مینې او ځانگړې پام لایق دی. دلتـه ډېر پـه تکلیف دی، هره ورځ لـه مقـامـاتو سره جگړه کوي، یو وار یې څلورویشــت ســاعته په یوه تیارۀ کوټه کښــې وســاتۀ، مسلسـل عذاب ویني، موږ ټول له تاسـو هیله کوو، چې له نوموړي سره مرسـته وکړئ، زما مور په دې برخه کښې آرامه او قانع کړئ، دې ته هر څه ووایاست او دا به هم پوه شي».*

مور خپل سر پورته کړ او په یوه رېږدېدلي آواز سره یې وویل:

- ما ته باید څهٔ ووایي؟ زهٔ لا پخوا په هر څه پوهېدلم!

نیکولای یوې خوا ته مخ واړاوهٔ او په یوه دستمال سره یې په چابکۍ پزه پاکه کړه او و یې ویل:

- داسې معلومېږي چې زه زکام شوی یم...

وروسته یې د دې لپاره چې خپلې عینکې سمې کړي په لاسونو یې سترګې پټې کړې او په داسې حال کښې چې په کوټه کښې یې ګام واههٔ، په خبرو یې شروع وکړه:

- حقیقت دا دی چې موږ هم ښایي په دې باندې بریالي شوي نه وای...

- پروا نه کوي، پرېږده چې دوی محاکمه شي!- مور خپل تندی تریو کړ او و یې ویل. مګر په زړهٔ یې غم غبار پرېووت.

- ما ته نن له یوه ملګري څخه، چې په پیتربورګ کښې دی، خط راغلی...

- په هر حال، دی کولای شي چې له سایبریا څخه هم وتښتي، آیا نه شي کولای؟- مور وپوښتل.

- هو، بالکل کولای شي، دغه ملګری لیکي چې دوی به ژر محاکمه شي او د دوی جزا لا پخوا ټاکل شوې ده.- دوی به ټول سایبریا ته تبعید شي. دا د دوی د محاکمې جریان د یوې کمیډۍ په شان دی. تاسې لیدلای شئ، چې جزا لا پخوا په پیتربورګ کښې ټاکل شوې ده! حال دا چې محاکمه لا تر اوسه پورې نه ده ترتیب شوې...

- نیکولای ایوانوویچه، پرېږده، ما ته د تسلۍ را کولو ضرورت نه شته!- مور په متانت سره وویل.- پاول غلط کار نه کوي، دی به خپل ځان او خپل ملګري عبث په تکلیف نه کړي! پر دهٔ زه ګرانه یم! تاسې خپله لیدلای شئ،

چې دی زما په برخه کښې څومره پرېشانه دی! دۀ لیکلي دي چې دې ته تسلیت ور کړئ او دا آرامه کړئ...

د مور زړۀ ژر ژر رېږدۀ او سر یې له ډېرو ولولو څخه گیچ و.

- ستاسې زوی ډېر ښه انسان دی!- نیکولای په یوې غیرعادي لهجې سره وویل- زه نه شم درته ویلای، چې د هغه لپاره څومره احترام په زړۀ کښې لرم!

- راځه چې د ربین په باب کومه چاره جوړه کړو!- مور پېشنهاد وکړ.

دې غوښتل چې دستي څه کار وکړي، چېرې ولاړه شي او تر هغه پورې قدم ووهي، څو بالکل ستومانه شي.

نیکولای چې تر اوســه یې قدم واهۀ، وویل: ښــه! مور! و ســاشــېنکه ته ضرورت لرو...

- دا ښــایي چې را شي، دا تل په هغه ورځ را ځي، چې زه د پاول د لیدلو لپاره تللې یم...

نیکولای د مور په څنگ کښــې کښېناســت او په فکر کښــې ډوب شــو، شونډې یې په غاښو نیولي وې او ږیره یې تاووله.

- ډېر بده دا ده چې زما خور نه شته...

- ښــه بــه دا وي چې مور! لــه ربین سره پخوا له دې چې پاول تبعید شي، مرسته وکړو او دا کار به حتماً دی ډېر خوشاله کړي!- مور وویل.

دوی د څــه وخت لپاره چوپه خوله ناســت وو. مور په ناڅاپي ډول سره ورو ورو او په ټیټه لهجه وویل:

- زه نه پوهېږم چې دی ولې نه غواړي؟

نیکولای پورته شـو، مگر په دغه وخت کښــې زنګ ووهل شــو. دوی و یوه او بل ته وکتل.

- ښايي چې ساشېنکه وي!- نیکولای په کراره وويل.

- مورې بايد هغې ته څه ووايو؟- مور هم په کراره ور څنې وپوښتل.

- بلې، بلې، دا ډېره سخته خبره ده...

- زه د دې په باب ډېره غمجنه يم...

زنګ بيا ووهل شــو، مګر دا پلا دومره څواکمن نه و او داســې معلومېده، چې هلتـه يو څوک د مغشـــوشـــو افکارو سره ولاړ دی. نیکولای او مور دواړه پاڅېدل او دروازې ته روان شـول، مګر کله چې ور نژدې شول، نیکولای و يوه اړخ ته لېرې شو او و يې ويل:

- ښه به دا وي چې تاسې تنها ولاړه شئ...

- دۀ و نه منله؟- په هغه شيبه چې مور ور خلاص کړ، نجلۍ په ډېر متانت او زړه ورتوب سره وپوښتل.

- هو.

- ما همداسې فکر کاوۀ!- ساشېنکه په عادي لهجه سره ووېل، مګر د مخ بڼه يې والوتله. دې د کوټ غوټې خلاصــې کړې، وروســـته يې بيا دوې غوټې وتړلې او کوښــښ يې وکړ، چې خپل بالاپوښ وباسي، مګر دا کار يې و نه شــو کړای، نو يې ووېل:

- ســـخـت باران وريږي، توند باد چلېږي،- کرکجنه هوا ده! هغه ښـــۀ او خوښ و؟

- هو!

- روغ رمټ او خوښ دی،- ساشېنکه په نرمۍ سره وویل او خپل لاس ته يې وکتل.

مور بې لـه دې چې نجلۍ تـه وګوري، وويـل:- دی ليکي چې د ربين په تېښته کښې مرسته وکړو!

- رښـتيا؟ زه داسـې فکر کوم چې موږ بايد دغه ترتيب شـوی پلان عملي کړو،- نجلۍ په آرامۍ سره وويل.

- زه هم دغه فکر لرم!- نيکولای چې په دروازه کښـې معلوم شو، وويل.- ستړې مه شې، ساشېنکه!

نجلۍ دۀ ته لاس ور کړ او ور څنې يې وپوښتل:

- موږ بايد ولې هغه عملي نه کړو؟ هر څوک وايي چې دا ښه پلان دی!..

- مګر څوک به يې تطبيق کړي؟ موږ ټول مشغول يو...

ساشېنکه ولاړه شوه او و يې ويل:- ما ته اجازه را کړئ، زه وخت لرم.

- ډېر ښــه! مګر تاســې بايد د نورو سره اړيکه ونيســئ او ور څنې اجازه وغواړئ...

- ښه، زه به اړيکه ونيسم! زه به سمدستي ولاړه شم.

دې د خپـل کوټ د غوټو پـه ترڅلو پيـل وکړ او نرۍ ګوتې يې پـه پوره اطمينان سره خوځېدلې.

- تاسې بايد لږ استراحت وکړئ!- مور و دې ته پېشنهاد وکړ.

دې په نرمۍ سره موسکا وکړه او په يوه ملايمه لهجه يې ځواب ور کړ:

- تشويش مه کوئ، زه ستړې نه يم...

نجلۍ پټه خوله دوی ته لاس ور کړ او د پخوا په شـان جدي او سرکښـه ولاړه.

مور او نیکولای په کړکۍ کښې ورته کتل. دا له انګړ څخه تېره شوله او د سترګو له دید څخه ورکه شوه. نیکولای په نرمۍ سره شپېلک وکړ، د مېز و خوا ته کښېناست او په لیکلو یې پیل وکړ.

- دا په وظیفه او کار خوشـاله کیږي!- مور د تفکر په حال کښـې په نرمۍ لهجه سره وویل.

- په دې کښـې شـک نه شـته!- نیکولای ځواب ور کړ، وروسته یې خپل مهربان مخ د دې و خوا ته را واړاوۀ او په موسـکا سره یې ترې نه پوښـتنه وکړه:- تاسـې نیلوفنا، هېڅ وخت پر چا باندې نه وې عاشـقه شـوې، چې د بېلتون درد درته معلوم شوی وای؟

مور د خپـل لاس پـه خوځولو سره وویل:- آه، کوم تکلیف او کوم درد؟ یوازینی شــــی چې ما له هغه څخه وېره درلوده، هغه دا و چې دوی به ما مېړۀ ته ور کړي.

- او هېڅوک ستا خوښ نه و؟

مور تر لږ فکر وروسته ځواب ور کړ:

- زما په زړۀ نه دي، زه ګمان کوم چې و، ښایي چې یو څوک به راته ګران و، خو اوس مې په زړۀ نه دی!

وروســته یې و دۀ ته د آرام خفګان څخه ډک نظر واچاوۀ او خپله جمله یې په ساده ډول تکیمل کړه:

- زه خپل مېړۀ دومره ووهلم، چې ټول هغه شـــیان چې پخوا له وادۀ پیښ شوي وو، زما له سر څخه یې لېرې کړل.

نیکولای بیـا د مېز و خوا تـه وګرځېـد او مور د څـه وخت لپاره له کوټې څخه ووتله. کله چې دا راغله، نیکولای په خپلو تېرو خاطرو کښـې ډوب و. دۀ و مور ته په مینې سره وکتل او و یې ویل:

- زه هم یو وخت د ســاشـېنکه په شان په دام کښې بند وم! له یوې نجلۍ سره آشنا شوم، ډېر عجیبه نجلۍ وه. زه شل کلن وم چې دا مې ولیدله او تر اوسه پورې مې له دې سره مینه له زړه څخه نه ده وتلې...

مور د دۀ په څنګ کښـې ولاړه وه او د دۀ په سـترګو کښې یې رڼا لیدله. دۀ د څوکۍ د شـــا پر تختـه تکیه کړې وه او سر یې په دواړو لاســـو نیولی و او هماغسې کښېناست او یوې لېرې نقطې ته داسې متوجه شو، لکه ګل چې د لمر و شغلو ته کوږ شي.

- تا ولې د دې سره وادۀ و نه کړئ؟- مور ور څنې وپوښتل.

- پنځم کال کیږي، چې دې مېړۀ کړی دی...

- ولې دي له دې نه مخکې د دې سره وادۀ نه وکړ؟ مګر هغې تا سره مینه نه درلوده؟

تر لږ فکر وروسته دۀ ځواب ور کړ:

- فکر کوم چې مینـه یې درلوده، حتـا یقین لرم. خو روزګـار لـه موږ سره موافق نه و. کله چې به زه د جیل څخه آزاد شولـم، نو سمدستي به دا بندي او یا تبعید شـوله، کله چې به دا خلاصـه شوله، زه به بندي شولـم. زموږ قضیه هم عیناً لکه د ســاشــېنکه او پاول غوندې ده، آیا دغه ډول نه ده؟ بالاخره یې دا د لســو

کالو لپاره سایبریا ته ولېږله، په سایبریا کښې هم هغه لېرې نقطې ته ولاړه، ما غوښتل چې په دې پسې لاړ شم، مگر د دې کار څخه ما او دې دواړو ننگ وکړ. دې هلته یو هلک پیدا کړ، ډېر ښۀ انسان او زما له ملگرو څخه دی! دوی دواړه له سایبریا څخه وتښتېدل او اوس په خارج کښې ژوند کوي...

نیکولای خپلې خبرې بس کړې، له سترگو څخه یې عینکې لېرې کړې، و رڼا ته یې ونیولې او یو ځل یې بیا پاکې کړې.

- آخ، زما بېچاره ملگرې!- مور په داسې حال کښې چې سر یې وښوراوۀ، په مینې سره وویل. مور د دۀ د تېرو وختونو په اړه غمجنه شوه، مگر په دغه شیبه کښې یې داسې خندا پر شونډو را ښکاره شوه، لکه مور چې یې ماشوم ته کوي. دۀ خپل وضعیت بدل کړ، بیا یې قلم واخیست او د قلم په خوځولو سره یې و خپلو خبرو ته دوام ور کړ:

- کورنی ژوند د سړي انقلابي انرژي زبېښي- کورنۍ له سړي سره مرسته نه شي کولای! د ښځې ساتل، کوچنیان او د دوی خواړه سړی و کار ته مجبوروي، مگر یو واقعي انقلابي سړی باید خپله انرژي په دې شیانو مصرف نه کړي، هغه باید دغه انرژي زېرمه کړي او خپلو فعالیتونو ته پرې پراختیا ور کړي. دغه د وخت غوښتنه ده. موږ باید د ټولو و مخ ته ولاړ شو، ځکه موږ کارگران تاریخ د دې کار لپاره گمارلي یو، چې د زړې نړۍ ریښې وکاږو او یوه نوې دنیا جوړه کړو. که موږ د ستومانۍ او یا هم له کوم چا سره د زړۀ تړنې (مینې) په اساس وروسته پاتې شو، نو ویلای شو چې موږ مجرمان یو او انقلابي جریان ته مو تاوان رسولی. په نورو ډلو کښې داسې سړی نه شته، چې موږ د هغوی سره څنگ پر څنگ مارش وکړو، هغوی یوازې غواړي، چې دغه

موضـوع بالکل شنډه کړي. موږ بايد هېر نه کړو، چې زموږ اقدام د يوه کوچني جزوي بريالیتوب دپاره نه؛ بلکي مکمله بريا او فتح غواړي.

د دهٔ غبږ متين و، د مخ بڼه يې بدله شوه او په سترګو کښې يې عجيب نور ځلېـدهٔ. يو ځـل بيا زنګ ووهل شـــو. دا پلا لودميلا وه. باړخوګان يې له يخنۍ څخه تک سرهٔ شـوي وو، د دې ټول بدن په هغه کوټ کښـې، چې د دې فصل لپاره مناسـب نه و، رېږدېدهٔ. کله چې دې خپل زاړهٔ د ختو ډک بوټونه کښل، په قهرجن آواز سره يې وويل:

- د محاکمې وخت وټاکل شو- يوه اونۍ وروسته به محاکمه شي!

- آيـا تـه يقين لرې؟- نيکولای لـه کوټې څخـه را بږغ کړ. مور په چټکۍ سره و دهٔ ته ور روانه شـوه، په زړه کښـــې يې په يو وخت وېره او خوشـالي پيدا شـوې وه. لودميلا هم ور سره تله او په تمســخرآميزه لهجه يې خبرو ته دوام ور کړ:

- يقيناً! په محاکمه کښـــې دوی واضـــح اعلان کړی دی، چې جزا پخوا ټـاکـل شـــوې ده. مګر دا څـه معنـا لري؟ آيـا دا پـه دې معنا ده، چې حکومت وېرېږي، چې د دهٔ مامورين به د دوی پر دښـمنانو باندې زړهٔ وسـوځوي؟ دوی فکر کوي، چې برســېره پر هغو تکليفونو چې د خپلو مزدورانو د بې لاري کولو په خاطر يې ايستلي دي، بيا هم د هغوی پر پوره انحراف باندې يقين نه لري...

لودميلا په څوکۍ کښـــې کښـــېنســـتله او خپل باړخوګان يې په ورغويو ومښل. د دې په سپېرو سترګو کښې کرکه ليدل کېدهٔ او په بږغ کښې يې ډېر قهر موجود و.

نیکولای په داســې آواز چې غوښــتل یې دا لړ څه آرامه کړي، وویل:- لودمیلا، تاسې په دې برخه کښې خپله انرژي مه ضایع کوئ. دوی خو ستاسې خبره نه اوري...

مور په تکلیف سره ځان مجبوراوۀ، چې و دې ته غوړ ونیســـي، مگر په هېڅ شي نه پوهېدله. د دې په ماغزو کښې دغه یو فکر مسلط و:

«بله اوني محاکمه ده!»

ناڅاپه دې حس کړه چې دې ته یو غیرانساني ځواک ور نږدې کیږي.

## «۲۳»

مور دوه ورځې په غم، خفگان، درد او خواشیني سره تېرې کړې، دریمه ورځ ساشېنکه بیا و کور ته راغله او نیکولای ته یې وویل:

- هر څه چمتو دي، نن ورځ پر یوه بجه به...

نیکولای په حیرت سره ترې نه وپوښتل:- دومره ژر؟

- آیا دومره ژر دی؟ ما یوازې کالي او د ربین د تگ ځای برابر کړی دی. متباقي کارونه به گوبن وکړي. ربین چې له دېوال څخه را کښته شي، باید یوازې د یوې کارتې مزل وکړي. په کوڅه کښې به گرم شـوی ویسوف‌شیکوف د یوه بالاپوښ سره د دۀ په تمه وي، هغه او خولۍ به و ربین ته ور کړي او د تگ لار بـه ور وښـــيي. لږ څه لیرې به بیا زه دۀ ته منتظره یم، ربین به ژر خپل کالي بدل کړي او زه به یې بوځم.

- ډېر ښه! گوبن څوک دی؟- نیکولای ترې نه وپوښتل.

- تاسې لا دی نه پېژنئ؟ تاسو ځو واره لیدلی دی. د دهٔ په کور کښې تاسو د سوهان کارانو سره ملاقاتونه کول.

- زما په زړهٔ شو، یو عجیب مرغهٔ دی...

ساشېنکه تر کړکۍ د باندې کتل او په ډېره متفکرانه ډول سره یې وویل:- ګوبن یو متقاعد عســکر دی، اوس آهنګري کوي. ســواد لږ لري، مګر د دهٔ د کرکې او کینې ریښــې د هر ډول ظلم او تشدد په مقابل کښې ډېرې ژورې دي. په خپلو افکارو کښې لږ شانتې فیلسوف دی.

مور پټه خولهٔ د دې و خبرو ته غوږ نیولی و او یو موهوم تصـــمیم یې په ماغزو کښې ور پیدا شو.

ګـوبـن غـواړي چـې خـپـل ورارهٔ خلاص کړي، ورارهٔ یې یف‌چینکو نومیږي، تاســې هغه پېژنئ، ستاسې د شاګردانو له ډلې یو غړی دی، ډېر پاک او خوشاله هلک دی.

نیکولای د سر په خوځولو سره مثبت ځواب ور کړ.

ساشېنکه و خپلو خبرو ته دوام ور کړ:- ټول ترتیبات یې نیولي دي، مګر زه اوس د کامیابۍ په برخه کښــې مشــکوکه یم. بندیان یو ځای هواخوري کوي او که چېرې دوی زینه وویني، ښایي چې ډېر بندیان د تېښتې هیله ولري...

ساشېنکه سترګې پټې کړې او د یوې شیبې لپاره پټه خوله کښېنستله. مور و دې ته نژدې شوله.

- او د دهٔ خنډ به شي...- ســـاشـــېنکه خپله جمله تکمیل کړه. دوی درې وارهٔ د کړکۍ پر څنګ ولاړ وو، مور د دوی دواړو و شا ته ځای نیولی و. د دوی

چابکو خبرو د مور په زړۀ کښې ځینې موهوم احساسات را ژوندي کړل او په ناڅاپي ډول یې وویل:

- زه به هلته ولاړه شم!

- د څه لپاره؟- ساشېنکه ترې پوښتنه وکړه.

نیکولای د نصیحت په ډول وویل:- ګرانې، مه ځه، کوم شی به در پېښ شي! مه ځه!

مور و دۀ ته وکتل او په نرمۍ مګر په کلکه سره یې وویل:

- یا، زه ځم...

دوی په بېړه یوه او بل ته وکتل، ساشېنکه د اوږو تر ښورولو وروسته وویل:

- زه په مطلب ورسېدلم...

وروسته بیا ساشېنکه و مور ته را وګرځېدله او تر لاس یې ونیوله.

- مورې، تاسې باید پوه شئ، هېڅ ډول هیله او امید نه شته.

مور په داسې حال کښې چې ساشېنکه ته ډېر نژدې شوله او په رېږدېدلي لاس سره یې ځان ته کش کړه، نارې کړې:- زما ګرانې، زه پوهېږم مګر هیله کوم چې ما هم بوځئ،- زه به مزاحمه نه شم! زه باید لاړه شم. زه تر اوسه لا پوره یقین نه لرم، چې څوک دې وتښتي!

- دا هم زموږ سره ځي!- نجلۍ نیکولای ته وویل.

- ښنګه یې چې تاسې لازمه ګڼئ!- دۀ سر وښوراوۀ او ځواب یې ور کړ.

- مگر موږ باید یو ځای و نه اوسو، تاسې د تعمیر د شا و کروندې ته ولاړه شئ او له هغه ځای څخه د بندیخانې و دېوال ته گورئ، مگر که څوک ستاسو څخه پوښتنه وکړي، ته به څه وایې؟

مور په خوشالۍ سره ځواب ور کړ:

- زه به یې ځواب پیدا کړم!..

- مورې، تاسې باید دا هېره نه کړئ، چې د جېل پهره داران تاسې پېژني او که دوی تاسې هلته ووینې...

- دوی به ما و نه ویني!- مور یې خبره پرې کړه.

د مور په سینه کښې لومړی یو داسې امید پیدا شو، چې د دې زړهٔ یې سخت رېږداوهٔ، وروسته بیا دغه امید په لمبې سره بدل شو او ډېر سخت اور یې پرې ولگاوهٔ. له ځان سره یې فکر کاوهٔ:

«ښایي چې دی هم وتښتي...»

یو ساعت وروسته مور د جېل د کروندې و شا ته ورسېدله، توند باد د تگ په وخت کښې د دې لمن کشوله، پر یخې شوي ځمکې باندې یې حملې کولې او د لارې ونې یې کږې کړي وې. باد بـه د خلکو نارې د جېل له غولې څخه واخیستلې او د آسمان لور ته به یې پورته کړې. هلته به اوریځو بیا دغه نارې و شنه آسمان ته تېرې کړې.

د مور و شا ته یو پالېز، مخ ته یې هدیره او د شلو مترو په اندازه و ښی خوا ته یو جېل و. د هدیرې و خوا ته یو عسکر آس گرځاوهٔ، یو بل عسکر د دهٔ و شا ته ولاړ و، پر ځمکه باندې یې پښې وهلې، خندل یې او شپلېک یې وهل. د جېل خوا ته بل څوک نه و.

دا په ببره له دوی څخه تېره شـوه، ځان یې د هدیرې و ماجر ته ورسـاوهٔ، په دغه وخت کښې به یې په ډېر احتیاط شا و مخ ته کتل. ناڅاپه د دې زنګنونه وچ شـول او پښـې یې داسـې معلومېدلې، لکه په ځمکه پورې چې یخې شـوي وي- د جېل په کونج کښـې یو کړوپ سـړی چې په اوږو باندې یې یوه زینه را اخیسـتي وه، معلوم شـو او داسـې په تلوار یې حرکت کاوهٔ، لکه د څراغ موظف شـخص چې وي. مور له وېرې څخه سـترګې رپولې او د عسـکرو و خوا ته یې کتـل. دواړه عســکر په خپل پخواني ځای کښــې ولاړ وو او آس ور باندې را څرخېدهٔ. دې و زینې او سړي ته وکتل- دهٔ پخوا لا زینه دېوال ته ایښې وه او بې له عجلې نه دېوال ته پورته کېدهٔ. کله چې د دېوال و سر ته وخوت، دستي یې د جېل و انګړ ته لاس وښوراوهٔ او وروسته بیا ډېر ژر را کښته شو او په کونج کښې پټ شـو. د مور زړهٔ په سـختۍ ورپېدهٔ او یوه بله د ضـعف څپه ور باندې راغله. زینه چې د جېل د دیوال په مقابل کښې ولاړه وه، تقریباً نه لیدل کېده. ناڅاپه یو تور سر د دیوال له پاسه را پورته شو او ځمکې ته په سختۍ سره را کښته شو. یو بل سر چې ببره خولۍ یې درلودله، ښکاره او د کونج و خوا ته په بېړه سره ورک شـو. دوهم سړی چې ربین و، په ټوله ونه جګ شو، شاوخوا ته یې وکتل او سر یې وښوراوهٔ...

مور خپله پښه په ځمکه ټکوله او ورو یې وویل:- وځغله! وځغله!

په دې وخت کښې د دې په غوږو کښې ازانګه پیدا شوه، وروسته یې بیا د جېل له انګړ څخه لوړ غږونه واورېدل- دریم سر د دېوال له پاسـه ښکاره شو. مور خپل لاسـونه و سینې ته ونیول او په درېبدلي زړهٔ یې ورته کتل. دریم سړي چې طلایي وېښتان یې درلودل، کوښښ کاوهٔ چې ځان په زور د دېوال و سر ته

ورسوي، مګر لږ څه وروسته بېرته د دیوال شا ته پټ شو. نارې لوړې او له ولولو نه ډکې شوې، باد هغه اخیستې او هوا ته یې پورته کولې. ربین د دېوال تر څنګ تلۀ، دا دی اوس له هغۀ څخه تېر شــو او د جېل او د ښـــار د کورونو تر منځ له آزادې لارې څخه تېرېدۀ. مور فکر کاوۀ، چې ناحقه دی دومره کرار ځي او سر یې هم ډېر جګ نیولی دی، په دې وخت کښې یې که کوم سړی ووینې، څېره به یې تر ډېره وخته په یاد کښې ور پاته شي، ځکه یې نو غلي ورته وویل:

- ژر شه... ژر شه...

کوم شي د دننې خوا څخه د جېل پر دېوال ټکر وکړ او مور د هیندارو د ماتېدلو ږغ واورید. یو عسکر پښې و ځمکې ته ټینګې نیولې وې او آس یې تر جلو کشاوۀ، مګر بل عسکر په ډېر لوړ آواز سره د جېل و خوا ته نارې وهلې، تر نارو وروسته یې غوږ د باد و خوا ته ونیو او د ځواب په تمه وو.

مور په پوره احتیاط سره پټه ولاړه وه او هرې خوا ته یې کتل. هر څه یې لیدل، مګر په هېڅ شي یې باور نه کاوۀ. هغه شی چې دې خورا مغلق، خطرناک او ډاروونکی بالۀ، اوس په ډېره سـادګۍ او آرامۍ سره ترسره شـو، دغه آسانتیا د مور د وارخطایۍ ســبب شــوه او د دې ټوله لیدنه یې تیارۀ کړه. ربین د ســترګو څخه ورک شــو، جګ ســړی چې اوږد کوټ یې اغوســتی و، پر لارې حرکت کــاوۀ، مخ تــه یې یوې کوچنۍ نجلۍ منـډې وهلې. د جېل له کونج څخه درې پهره داران ور معلوم شول، دوی یو بل ته ډېرې نژدې منډې وهلې او لاسونه یې خوځول. یوه عسـکر د پهره دارانو و خوا ته منډې کړې او بل یوه غوښتل، چې پر آس باندې سپور شي، مګر و یې نه کړای شول، ځکه چې آس په دې وخت کښــې هوا ته ټوپ وواهۀ او د هغه سره یو ځای ټول شـیان په ټوپو شول. په دې

وخت کښېــــې پـه ډېر ټینګار او دومداره ډول سره شــپېلک وهل کېدل. د دې شپېلکو آواز د مور په زړهٔ کښې د یوه لوی خطر حس را ژوندی کړ؛ دې ځان سره وښوراوهٔ او په داسې حال کښې چې د هدیرې په ماجر یې تکیه کړې وه، رهي شــوله، مګر دواړې ســترګې یې و پهره دارانو ته نیولي وې، لیکن دوی د جېل و بل کونج ته لاړل او هلته له سترګو څخه ورک شول. په دوی پسې یو سړی چې د کوټ غوټې یې نه وې تړلي، وځغاست. دغه سړی چې د جېل د آمر معاون و، مور ته آشنا و. سمدستي پولیس ښکاره شول او خلکو هم دې محل تـه لـه ټولو خواوو څخـه ور منډې کړې. باد د مور و غوږ ته حیرانونکي آوازونـه رســول او دا هم په هغه سره خوشــاله کېدله، نو ځکه یې خپل ګامونه اوچت او لوی کړل.د تګ پر مهال یې فکر کاوهٔ:

«ده هم کولای شول چې تېښته وکړي!»

ناڅاپه دوه تنه پولیس د ماجر له کونج څخه له مور سره مخامخ شول.

یوه چې په اوږو سره یې ساه شړله، نارې کړې:- ودرېږه! تا ږیره لرونکی سړی و نه لید؟

مور د پالېز و خوا ته اشاره وکړه او په کرارۍ سره یې ځواب ور کړ:

- دهٔ د پالېز پلو ته منډې کړې،- ولې، خیریت دی؟

- یګوروفه، شپېلک وواهه!

مور د کور پـه لور روانه شــوه او د یوه نامعلوم احســـاس له کبله یې ډېر خفګان حس کړ. کله چې مور له کروندې څخه تېره شــوه او د کوڅې په منځ کښې تېرېدله، یوه ګاډۍ د دې له څنګ څخه تېره شوله. کله چې دې و ګاډۍ ته وکتل، یو ځوان سړی یې، چې طلایي رنګه برېتونه، سپېرهٔ مخ او ستومانه څېره

يې درلودله، وليد، سړي هم دا وليدله. سړی يو بغل ته ناست و، نو ځکه يې يوه اوږه تر بلې لوړه معلومېدله.

نيکولای دا په خوښۍ سره استقبال کړه.

- ښه، څه پېښ شول؟

- فکر کوم چې هر څه په خيريت سره سر ته ورسېدل...

دې د تېښتې بيان وکړ او کوښښ يې کاوۀ چې د پېښې ټول تفصيلات تشـريح کړي، مګر د دې د بيان طرز داسې و، لکه د بل چا نقل چې کوي او د کيسې پر حقايقو پوره ايمان نه لري.

نيکولای خپل لاسونه سره ومښل او و يې ويل:- موږ څنګه برخوردار يو! خدای پوهېږي چې زه څومره ستا په باب پرېشانه وم! زه وېرېدلم، چې کوم شی نه وي در پېښ شـوي! نيلوفنا، تاسې زما مشوره د يوه ملګري په څېر ومنئ او له محـاکمې څخـه مه وېرېږئ! هر څومره ژر چې محاکمه شي، په هماغه اندازه به پاول ژر خوشي شي! ښايي چې دی د تبعيد د لارې په وخت کښې وتښتي او په خپله محاکمه داسې يو خصوصي شی دی، چې...

دۀ د قضايي چارو او د محاکمې د جريان په تشـريح کولو پيل وکړ، مور ورته غوږ نيولی و او دا يې احسـاسـول، چې هغه له کوم شي څخه وېرېږي، نو غواړي چې دا لږ څه آرامه کړي.

- آيا تاسې له دې څخه وېرېږئ، چې زه به قاضيانو ته څه ووايم؟- دې په ناڅاپي ډول وپوښتل.- يا دا چې زه به له دوی څخه د کوم شي غوښتنه وکړم؟

دی ولاړ شـو او لاس يې د عاجزۍ په ډول وښـوراوۀ او د خواشـينۍ په لهجه يې وويل:

- یا! حقیقت دا ډول نه دي!

- ښکاره خبره ده چې زه وېرېږم! او له دې ټکي څخه انکار نه کوم، مګر دا نه ده راته معلومه، چې له څه شي څخه وېرېږم!..

- دی د لږ وخت لپاره غلی شو او شاوخوا یې وکتل.

- ځینې وختونه داسې فکر ما ته را پیدا کیږي، چې ښایي دوی د پاول سپکاوی وکړي او یا کومه بده خبره ورته وکړي، پاول ډېر مغرور او شجاع هلک دی، په هماغسې ډول به ځواب ور کړي او یا به آندري دا کار وکړي. دوی دواړه ډېر تندمزاجه دي او ښایي چې حوصله و نه کړای شي! دا ډېر وېروونکی فکر دی! دوی ته به د محاکمې له خوا سختې جزاوې وټاکل شي، چې هېڅ کله به بیا دوی و نه وینم!

نیکولای خپل تندی تریو کړ او بې له دې چې مور ته ځواب ور کړي، په بړیره کښې یې ګوتې وهلې.

زه د دې ډول فکرونو څخه ځان نه شم خلاصولای!- مور په نرمۍ سره وویل.- د محاکمې دغه خاصیت دی، سړی ډېر وېروي، دوی د هر شي په باب تحقیق کوي او هر څه ته په دقت سره ګوري، سړی خورا سخت وېروي! جزا مې نه وېروي، له محاکمې څخه ډېره سخته وېرېږم. زه د دې شیانو د بیانولو مهارت نه لرم...

مور پوه شوله چې نیکولای د دې په مقصد نه پوهېږي او دا کار د دې مانع ګرځېدهٔ، چې هغه ته خپل ډار او وېره څرګنده کړي.

«۲۴»

د مور وېرې ورځ پـه ورځ پـه ډېره بېړه د يوه ژونـدي موجود په څېر وده کوله. دغه وېره د دې د نفس‌تنګۍ او تکليف ســبب کېده. د محاکمې په ورځ مور په ډېره سختۍ د محاکمې سالون ته دننه شوه.

په کوڅه کښــې به يې د محلې د آشــنا خلکو سره روغبړ کاوۀ، دې به د تېرېدلو په وخت کښې د خلکو احترام د سر په خوځولو سره پر ځای کاوۀ او د خلکو پـه منځ کښــې بـه يې خپلـه د تګ لاره جوړوله. د محاکمې په دهلېز او ســالون کښــې دې د نورو محکومينو خپلوان وليدل او هغوی به هم دې ته په ټيـټ آواز سره خبرې کولې، دې تـه د دوی خبرې بې ځايه معلومېدلې او دا په هېڅ نه پوهېدله. هر يوه د يو ډول غم احساس کاوۀ. مور چې دغه حس په خپل ټول ماحول کښې وليد، نو تر پخوا لا ډېره مغمومه شوه.

ســيزوف چې په خپله څوکۍ کښــې يوې خوا ته شـو، دې ته يې وويل:- دلته کښېنه!

مور په مطيع حالت کښې کښېنستله، خپل کالي يې ټول کړل، وروسته يې شــاوخوا وکتل. د مور و مخ ته سرې او شــنې پينې او ټکي ليدل کېدل او په هر ځای کښې ژيړ سپېنسي ښکارېدل. يوې ښځې، چې د مور و څنګ ته ناسته وه، د زمزمې په توګه وويل:- ستا د زوی له لاسه زما ګريشا دلته را وستل شو!

سيزوف په ډېر تريو تندي سره وويل:- ناتاليا، دا خبرې پرېږده!

مور و ښــځې ته وکتل- ښــځه د ســمائلوف مور وه او د هغې و څنګ ته مېړۀ نـاســت و، د مېړۀ سر يې خريلی و او خوب‌صــورته مخ يې درلود، پر مخ

باندې يې سره ږيره معلومېدله. کله چې دهٔ مخامخ کتل، سترګې به يې چوغې کړې او د غم لمبه به يې پر مخ معلومېدله، د دهٔ ږيره د غم او درد په واسطه ښوريدله.

د محاکمې په سالون کښې يوه خړه رڼا د هغو لوړو کړکيو څخه چې د شا له خوا په واورو پټې وې، را ننوتله. د کړکيو په منځ کښې د تزار تصوير په روڼ او طلايي چوکاټ کښې، چې څنډې د کړکيو په درنو ښکلو ټوکرانو سره پټې وې، ځړيده. د تصوير په مقابل کښې يو لوی اوږد مېز، چې په شنهٔ ټوکر پوښلی و او له يوه دېوال څخه تر بل پورې رسېدهٔ، ولاړ و. د ښي لاس د دېوال و خوا ته د جعفرۍ تر شا دوې اوږدې څوکۍ پرتې وې او د کيڼ لاس د دېوال و خوا ته دوه قطاره څوکۍ، چې هره يوه يې په ښکلو ټوکرانو سره پوښلې وه، پرتې وې. د خلکو په منځ کښې و مېز ته نژدې په ډېره پټه خوله سره څو تنو موظفو کسانو، چې دريشۍ يې يو ډول شين يخن درلود او د دريشيو د پاسه يې زريني غوټې معلومېدلې، کښته او پورته حرکت کاوهٔ. د سالون هوا د خلګو د خبرو او د دوا د بوی څخه ډکه وه. دغو ټولو شيانو مختلفو رنګونو، ږغونو، بويونو پر سترګو باندې فشار را وستلی و. د تنفس سره يو ځای سينې ته داخلېدل او په زړه کښې يې يو مخصوص غيرمتحرک ډار او هراس پيدا کاوه.

ناڅاپه يوه سړي په لوړ آواز سره کوم شی ووايهٔ. مور سخت ټکان وخوړ، ټول خلک ولاړ شول، مور هم د سيزوف لاس ونيو او پاڅېده.

د سالون په کيڼ کونج کښې يوه غټه دروازه خلاصه شوله او يو زوړ سړی، چې عينکې يې پر سترګو ايښې وې او د حرکت په وخت کښې يوې او بلې خوا ته خوځېدهٔ، په سالون راننووت. پورتنۍ خريلې شونډه يې د دهٔ په

خوله کښــې ولوېده، زنه او زامه يې د درېشــۍ پر يخن باندې تکيه شــوې وه او داســې معلومېدل، لکه هېڅ چې غاړه نه لري. يوه جګ ځوان سړي چې ګردی او سـور مخ يې درلود، د دهٔ بدرګه کوله او له شا څخه يې تکيه کړی و. په دوی پسـې درې نور کسـان چې عسـکري ډول لباس يې درلود او په طلايي سـپڼيسو ګل دوزي شـــوی و، ورو -ورو روان وو. د هغوی سره يو ځای درې نور ملکي کسان هم روان وو.

د دې خلکو کښـېنسـتلو او د مېز پر شـاوخوا باندې ځای پر ځای کېدلو ډېر وخت ونيو، تر کښـېنستلو وروسته يوه سړي، چې ږيره يې بالکل خريلې وه او پنډې شـونډې يې درلودلې، و زاړهٔ سړي ته نژدې شو او په پټو خبرو يې پيل وکړ. زوړ ســړي د غوږ نيولو پـه وخـت کښـــې پـه عجبه ډول ډېر مســـتقيم او غيرمتحرک ناسـت و. د زاړهٔ سـړي د عينکو و شا  ته مور دوې کوچنۍ بې رنګه نقطې وليدلې.

د مېز پر يوه څنـګ بـانـدې يو جـګ ســړی ودرېـد، ټوخل به يې او د کاغذونو شنهار به يې کاوهٔ.

زاړهٔ ســـړي د مېز و خوا تـه تکيـه وکړه او خبرې يې شروع کړې. د دهٔ د خبرو لومړۍ کلمه واضحه مګر پاتې خبرې يې ټولې ژوولې، نو ځکه د پوهېدلو وړ نه وې.

- جلسه افتتاح کوم... راولئ...

سيزوف مور وښوروله او غلي يې ورته وويل:- وګوره!

په دې وخت کښـې د جعفرې د شا دروازه خلاصه شوله، يو عسکر چې پر اوږه باندې يې لوڅه توره نيولې وه، راننووت. په عسـکر پسـې پاول، آندري،

فیدور مازین، دوه گوسیف ورونه، سمائلوف، بوکین، سوموف او پنځه نور هلکان، چې د هغوی نومونه مور ته معلوم نه وو، راننوتل. د پاول په شونډو یوه له ناز نه ډکه موسکا لیدل کېده، آندري هم خپل غاښونه سپین کړل او په موسکا سره یې خپل سر ښوراوۀ. د دوی خندا، د دوی د لاسو ښورولو، د دوی ساهو مخونو، د دوی د ایمان نه ډکو ځېرو کوټه روښانه کړه او پخوانۍ ستوماني او تورتم یې لېرې کړ. د مور مېړانه او خوشالي د بندیانو د راوړل شویو عقیدو او ایمان سره را ژوندۍ او دا خوښه شوله. د مور د شا د څوکیو څخه یوه ضعیفه زمزمه پورته شوله، په داسې حال کښې چې دغه خلک د بندیانو تر راتګ بالکل مات او ګیچ وو.

مور د سیزوف زمزمه واورېدله:- دوی نه وېرېږي! په همدې وخت کښې د سمائلوف مور په کرارۍ سره پړنګ وواهه.

یو ځواکمن او له قهره ډک آواز واورېدل شو:- خاموشه اوسئ!

زاړۀ سړي وویل:- اخطار در کوم...

پاول او آندري څنګ پر څنګ پر لومړۍ اوږدې څوکې باندې کښېنستل. د دوی په خوا کښې مازین، سمائلوف او دوه ګوسیف ورونه هم کښېنستل. آندري خپله ږیره خریلې، مګر برېتونه یې پرې ایښي وو، برېتونه یې لاندې ځړېدل او ګردی مخ یې د یوې پیشو و سر ته ورته و. د دۀ په بڼه کښې کوم نوی شی پیدا شوی و- د خولې په ګونځو کښې یې کوم تېز او تریخ شی معلومېدۀ او د دۀ په سترګو کښې هم نوې توره رڼا ځلېدله. د مازین پر لوړه شونډه باندې دوه تور خطه معلومېدل او د مخ شکل یې ګردی و. سمائلوف د

پخوا په شـان چنگ چنگ وېښـتان درلودل او گوسـيف هم په ډېر زړه ورتوب سره شونډې کږولې.

سيزوف سر کښته کړ، د ماتم په ډول يې وويل:- آه، فيدور، فيدور!

مور د زاړهٔ سـړي نامرتبي او نامنظمي پوښــتني واوريدې، چې له بنديانو څخه يې کول. په دې وخت کښې يې سر بې له حرکت څخه د کورتۍ پر يخن بـاندې تکيه کړی و. مور د خپل زوی لنډ، معقول او واضــح ځوابونه اورېدل. مور ته داسې معلومېدل، چې سرقاضي او د هغه ټول معاونين ظالمان او سختگير کسـان نه دي. کله چې دې په دقت سره د قاضيانو مخونه مطالعه کول، کوښښ يې کاوهٔ، چې د دوی له تنديو څخه کوم شی گومان او پيشبيني کړي، نو په زړهٔ کښې يې د کراری او خوشالۍ هيلې پيدا کېدلې.

پـه دغـه وخـت کښــې هغه منصــبدار، چې د دنگې ونې خاوند و او په لومړي سر کښــې يې و زاړهٔ ســړي ته تکيه ور کړې وه، په بې تفاوته ږغ سره د يوې پاڼې کاغذ په لوستلو پيل وکړ. د دهٔ شاړې واړې ږغ ټوله کوټه له خفقان او ملالت نه ډکه کړه او ټول خلک بې حرکته او بې شـوره لکه مړي ناسـت وو. د مدافعې څلورو وکيلانو د بنديانو سره کرارې کرارې، مگر ژوندۍ خبرې کولې. د دوی حرکات ډېر ځواکمن او گړندي وو، مور ته يې لوی او تور مرغان ور په زړهٔ کړل.

د زاړهٔ ســړي و يوه څنگ ته يو ځورب قاضي، چې ســترگې يې له ډېر چاغوالي څخه پټې شـوي وې، ناسـت و او د بازو لرونکي څوکۍ ټول ارتوالی يې پـه خپـل پنډ بدن سره اشــغال کړی و. و بل څنگ ته يې يو بل قاضي چې کړوپه شـا او سـوربخن برېتونه او سـپېرهٔ مخ يې درلود، ناسـت و. دهٔ خپل سر د

څوکۍ پر شا باندې تکیه کړې و، سترګې یې نیمې پټې کړې وې او د کوم شي په هکله یې فکر کاوهٔ. څارنوال هم د ستومانۍ او ستړیا حال درلود. د قاضیانو و شا ته ښاروال ناست و او د تفکر په حال کښې یې پر باړخوګانو لاس تېرواهٔ؛ دی هم مشـــر او پنډ سړی و؛ د اشرافو مشر چې سپین وېښتان، اوږده لویه ږیره، سره بـاړخوګـان او غټې مهربـانې ســترګې یې درلودلې، هم دلتـه ناســت و. د لوی حکومـت والي چې لویه خېټه یې درلوده او داســې معلومېده، چې له دې کبله ډېر خجالت وړي- نو کوښښ یې کاوهٔ چې خپله غټه خېټه د چپنې په لمنو سره پټه کړي، خو بریالی نه شو، هم دلته حاضر و.

- دلته نه قاضي شــته نه مجرم شــته،- د پاول له متانت او عزم نه ډک آواز واورېدل شو،- دلته یوازې اسیران او فاتحان شته...

په ســالون کښې مطلقه چوپه چوپتیا مسلطه شوه. مور د څو ثانیو لپاره بې د قلم له کښهار او د زړه له رپېدو څخه بل هېڅ شی نه اورېدل.

سرقاضي هم داسې معلومېده، چې غوږ یې نیولی دی او په دې تمه دي، چې نور به څه واوري. د سرقاضي معاونین وخوځېدل. بالاخره سرقاضي وویل:

- هام، آندري ناخودکه! آیا تاسې خپله ګناه منئ....

آنـدري ورو ورو راپـاڅېـد، اوږې یې وښـــورولې، پـه برېتونو یې ګوتې ووهلې او د لاندینیو بانوګانو تر بېخو یې و زاړهٔ سړي ته وکتل او و یې ویل:

- زهٔ د څه شي او د کوم جرم په باب ځان مجرم وګڼم؟ ما څوک وژلي نه دي او نه مې هم غلا کړې ده؛ زما جرم یوازې دا دی، چې زه د یوه داســې ژوند طرز سره جنګېږم، چې خلک د غلا او قتل و خوا ته کشوي...

زاړۀ ســـړي په زحمت مگر په صراحت سره وويل:- ځوابونه مو بايد ډېر لنډ وي.

په دې وخت کښې خلکو بيا په زمزمه شروع وکړه او د شا د څوکۍ څخه پوره پس‌پسی اورېدل کېدۀ، خلکو په خوځېدو شروع وکړه او داسې معلومېدل، لکـه دوی چې خپـل ځـانونـه د هغو کلمو له بند څخه خلاصــوي، کومې چې جگ منصبدار د گواښ په توگه کړي وې.

سيزوف غلي وويل:- څه چې دوی وايي، اورئ يې؟

- فيدور مازين، ځواب ووایاست...

- زه نه غواړم!- فيدور په پښو ودرېدۀ او په مکمل صراحت سره يې وويل. د دۀ مخ له ولولو څخه تک سـور شو، په سترگو کښې يې روښنايي ځلئده. هغه د کوم علت نه خپل لاسونه تر شا نيولي وو.

سيزوف په نرمۍ سره آخ وکړ، د مور سترگې په دغه وينا له ډېر حيرت نه را ووتلې.

- ما له مدافعې نه انکار وکړ، زه به هېڅ نه وايم. زه دغه محاکمه غيرقانوني بولـم! تاسې څوک ياست؟ آيا خلکو تاسو ته دا حق در کړی دی، چې زموږ په باب قضــاوت وکړئ؟ نه، هغوی تاســو ته دا حق نه دی در کړی! زه تاســې په رسميت نه پېژنم!

فيدور تر وينا وروسته کښېناست او سره شوې بڼه يې د آندري تر شا پټه کړه.

چاغ قاضي، سرقاضي ته سر وښـوراوۀ او غلي يې د دۀ په غوږ کښــې څه وويل. سـپېرۀ مخ لرونکي قاضي سترگې رونې کړې، بنديانو ته يې په دقت سره

وکتـل، وروســـته يې پر هغه کاغذ چې و مخ ته يې پروت و، څه شي د نوټ په توګه وليکل. د لوی حکومت والي خپل سر د تقبيح په ډول وښوراوهٔ، پښې يې وغزولې، څو خپله غټه خېټه پر زنګنونو باندې تکيه کړي، وروســـته يې بيا خپل نس په دواړو لاسـو پټ کړ. بې له دې چې خپل سر واړوي، زوړ سـړی په خپل ټول بدن سره، سرو وېښـتانو لرونکي قاضي ته ور تاو شو او په داسې حال کښې چې هيڅ بړغ يې وا نه ورېدل شو، دهٔ ته څه وويل. قاضي د اطاعت په ډول خپل سر ټيټ کړ.

د اشرافو مـــشر او څارنوال پس‌پسی کاوهٔ او ښاروال په داسې حال کښې چې پر خپلو باړخوګانو يې لاس تېراوهٔ، د هغوی و خبرو ته يې غوږ نيولی و. يو ځل بيا سرقاضي په خبرو پيل وکړ.

ســـيزوف په ډېري حيرانتيا سره و مور ته غلي وويل:- وا دې ورېدل؟ تر ټولو يې ښه ځواب ور کړ.

مور بالکل هکه پکه وه او له وارخطايۍ څخه يې موسـکا کوله. ټول هغه شـيان چې دلته سر ته رسـېدل، و مور ته داسې ستومانه کوونکي او غيرضروري اجراآت او مقدمه وه، چې له هغه نه وروســـته به يو خطرناک شی پيدا او تطبيق شي. مګر د پـاول او آنـدري آرامې وينـاوې دومره مطمئنې او لـه وېرې څخـه خلاصـــې وې، لکـه دغـه وينـاوې چې د کـارګرو د محلې په کوم کوچني کور کښـــې بيـان شـــوي وي، نـه د محکمې پـه مخ کښـــې. د فيدور مازين تېزو او حيرانونکو خبرو مور لا نوره پـه ولولو را وســـته. مور او نورو حاضرينو دا حس کاوهٔ، چې د محکمې په سالون کښې کوم غيرپيشبيني شوي شيان منځ ته راځي.

زاړهٔ سړي وپوښتل:- ستاسې نظريه څه ده؟

گنجي څارنوال ولاړ شـو، يو لاس يې پر مېز کښـېښـود او چابکي خبرې يې وکړې، ځينې اعداد يې هم ذکر کړل. د دهٔ په بړغ او بيان کښې کوم ډارونکی شی نه ليدل کېدهٔ.

په همدغه وخت کښې د مور په زړهٔ کښې تېزې او سړې هيلې پيدا شوې. دا په يوه موهوم خيال سره د کوم شي له پېښـېدلو څخه خبره شوله او دغه خيال وار په وار د دې په سترګو کښې په ثابت ډول وده کوله او د هغه د لوېدلو څخه يې مخنيوی نه شوای کولای. دغه خيال د قاضيانو په شاوخوا کښې څرخېدهٔ او داسـې ښکارېده، لکه دغه خيال چې دوی د اورېځې په شان د هغه توهين سره احاطه کوي، کوم چې په خارج کښې د غيرعادي جريان څخه پيدا کېدهٔ. مور و قاضيانو ته کتل او هغوی واړه مور ته د درک وړ نه وو. قاضيان د پاول او فيدور په ځوابونو په قهر نه شـــول، دوی ته يې کوم د توهين لفظ اســتمعال نه کړ، نو ځکه مور ته معلومه شوه، چې دوی و دغو پوښتنو او ځوابونو ته کوم اهميت نه ور کوي. دوی و جرياناتو ته خاصه توجه نه درلوده او جبراً به يې خبرو ته غوږ نيولی و او داسـې معلومېدل، چې پر هر څه باندي پخوا لا پريکړه شوې ده او د دوی خبرې او ادعاوې کوم توپير نه شي راوستلای.

په دغه وخت کښې د ژاندارامو يو مشـــر راغی او د قاضيانو په مخ کښې ودرېد، په لوړ آواز يې خبرې شروع کړې:

- پاول ولاسوف د ټولو له خوا اصلي پارونکی پېژندل شوی دی...

چاغ قاضي په ټنبلۍ سره وپوښتل:

- او آندري؟

- هغه هم...

یو له مدافع وکیلانو څخه پورته شو او و یې ویل:

- اجازه ده چې یوه خبره وکړم؟

زاړهٔ سړي له کوم چا څخه پوښتنه وکړه:

- تاسې مخالف نه یاست؟

ټول قاضـیان داسـې معلومېدل، لکه ناروغه چې وي، د دوی په څېرو، خبرو او حرکاتو کښې ستوماني، ناروغي او ستړیا لیدل کېده. داسې معلومېدل، چې دوی ته دغه یو درونـد او سـتومـانـه کوونکی کـار دی، چې د محاکمې یونیفورم واغوندي، سـالون ته ور دننه شي، ژاندارم او د مدافع وکیلان وویني، دلته په څوکیو کښې کښېني، پوښتنې وکړي او ځوابونو ته په تمه اوسي.

هغه ژیړمخی منصبدار، چې مور تر هر چا ښه پېژاند، اوس دلته ولاړ دی او په طمطراق سره خپل معلومات د پاول او آندري په باب کښـې بیانوي. مور چې د دهٔ و خبرو ته غوږ نیولی و، په غیرارادي ډول یې له ځان سره فکر کاوهٔ:

«څه چې ته وایې، بالکل لږ دي».

مور و هغو خلکو ته چې د جعفرې و شا ته ناست وو، کتل او د هغوی په باب یې د هېڅ ډول وېرې، ترحم او ډار احسـاس نه کاوهٔ. دې د هغوی په باب یوازې مینه او حسـرت احساس کولای شوای، یو عجب او کامل حیرت او پاکه مینه. ځوان او غښتلي، دوی د دېوال و خوا ته ناست وو او د شاهدانو بیانونو او د مـدافع وکیلانو او څارنوالانو تر منځ بحث ته یې ډېره لږه توجه کوله. کله کله به د بندیانو څخه کوم چا د ملنډو په ډول وخندل او د خپلو ملگرو سره به یې پټې خبرې وکړې او د دهٔ د ملگرو پر مخونو بـانـدې به هم عین اسـتهزا آمیزه خندا ولیـدل شــوه. پاول او آندري دایماً هغه د مدافع وکیل ته، چې تېره شـپه مور د

نیکولای پـه کور کښـــې لیـدلی و، گـډ وو او غلي خبرې بـه یې ور سره کولې.
فیدور مازین چې تر ټولو ناآرامه او په ولولو راغلی و، په ډېر دقت سره د دوی و مباحثې ته غوږ نیولی و. کله کله به سـمائلوف و ایوان گوسـیف ته ځه وویل او مور په جوته لیدلای شـوای، چې ایوان به هره پلا و خپل ملگري ته سـپکه ټېله ور کوله او خپله به یې سـخت کوښښ کاوۀ، چې د خندا څخه ځان وساتي، نو ځکه به یې مخ سـور او باړخوگان به یې وپړسـېدل. وروسـته به مجبور شو، چې خپـل سر د ځمکې و خوا تـه وځړوي. دۀ دوه واره په ټیټ آواز سره پخ وواهۀ، مگر وروسته دی د څه وخت لپاره تریو کښېناست، څو چې خپل عادي حالت تـه ور وگرځي. بنـدیـان ټول ځوانـان وو او د دوی د ځوانۍ تاثیرات په تکیلف سره پټېدلای شول.
سـیزوف په نرمۍ سره دا په ځنگل ووهله، کله چې دې مخ ور واړاوۀ، و یې لیدل چې سـیزوف خوښ دی، مگر په څېره کښـې یې لږه ناآرامي هم لیدل کېدله. دۀ غلي مور ته وویل:
- وگوره، دغه ځوانان څومره زړه ور خلک دي!
په محاکمه کښـې شـاهدانو خپل اعترافات کول، مگر د دوی بیانونو ډېر چټک او غبرونه یې بې رنگه وو. قاضـیانو په ډېره سړه سینه غوږ ورته نیولی و او کومه خاص لیوالتیا یې نه ښود. چاغ قاضي اربړمۍ وکښله او خوله یې په خپل پنډ لاس سره پټه کړه. هغه بل سور برېتی قاضي تر پخوا ډېر ناآرامه و، د مخ بڼه یې الوتې او هره شـېبه یې پر تندي لاس تېراوۀ او په ډېره سـختۍ سره یې د سـالون چت ته کتل. څارنوال به کله کوم شی نوټ کړ او بیا به یې د اشرافو د مـشر سره خپلو خبرو ته دوام ور کاوۀ. د اشرافو مشر ـ به په داسـې حال کښـې، چې سـپینه

بډیره یې ګروله، خپلې ښایسته غټې سترګې رغړولې او لږ لږ به یې خندل. د خندا په وخت کښــې به یې خپله غاړه په طمطراق سره ټیټوله. ښــاروال پښــه پر پښــه اړوله او پر زنګنونو باندې یې بې شوره ګوتې ټکولې او په دقت سره یې د ګوتو حرکت تعقیباوهٔ. زوړ سړی د یو بې حرکته جسم په شان ناست و. دغه وضعیت د ډېر وخــت لپاره دوام وکړ، تر څو ټول خلګ د ډېرې ســتړیا او ملالت څخه ګیچ شول.

- زه اعلان کوم...- زوړ سړی ودرېد او و یې ویل.

شور، اسیولیو، نرمو نارو، ټوخي، د پښو کښهار د سالون فضا ناآرامه کړه. بنـدیـان یې د بـانـدې بوتلـل، دوی خندل او خپلوانو او آشــنایانو ته یې سرونه ښورول. ایوان ګوسیف نارې کړې:

- ایګوره، مه وارخطا کېږه!

سیزوف او مور و دهلېز ته را ووتل.

- مور یو نیم ســاعت وخت لرو، نه غواړې چې په نژدې چاپخانه کښــې چای وڅښو؟- سیزوف په کراري سره ترې نه پوښتنه وکړه.

- زه په رښتیا سره د هېڅ شي اشتها نه لرم.

- زه هم نـه څم. د هغو ځوانـانو پـه اړه څه فکر کوې؟ دوی واړه داســې ناست دي، لکه د ځمکې پر مخ چې بې له دوی بل څوک معتبر نه وي! فیدور ته دې پام و؟

د سمائلوف پلار چې خولی یې په لاس کښې نیولې وه، دوی ته راغی او په پوزخند سره یې وویل:

آیا تاسو زما زوی گریگوري ولید؟ دۀ د مدافع وکیل څخه انکار وکړ او دوی ته یې هېڅ خبرې و نه کړې. دی لومړی هلک و، چې دا کار یې وکړ. ستا زوی، پلاګېیا، غوښتل چې د مدافع وکیلانو څخه استفاده وکړي، مگر زما زوی د دۀ پلوی نه و! وروسته نورو څلورو د دۀ په څېر انکار وکړ.

د دۀ څنګ ته یې ښځه ولاړه وه. سترګې یې ژر- ژر رپولې او اوښکې یې د دستمال په کونج سره پاکولې. سمائلوف خپله بړیره په لاس کښې ونیوله او په داسې حال کښې چې څمکې ته یې کتل، زیاته کړه:

- ډېره عجیبه خبره ده! کله چې سړی په لومړي سر کښې و دوی ته وګوري، داسې معلومیږي، چې دوی ناحقه خپل ځانونه بلا ته ور کړي. وروسته که بیا فکر وکړې، نو دوی تر هر چا پر ښه لار روان دي! په تېره بیا که وګورې چې په څه ډول او په څومره سرعت سره په فابریکه کښې د دوی شمېر ورځ په ورځ ډېریږي، پولیس هره ورځ دوی توقیف کوي، مګر بیا هم دوی د دریاب د ماهیانو په څېر ډېریږي، دا شی سړي ته داسې فکر ور پیدا کوي، چې ښایي یوه ورځ د ځواک او وړتیا چارې دوی په خپلو لاسونو کښې ونیسي...

سیزوف ځواب ور کړ:- سمائلوفه، موږ او تاسې ته په دغه ټکي پوهېدل خورا سخت دي.

سمائلوف هم موافقه وکړه:- هو، سخت دي!

د سمائلوف ښځې ډېره پیاوړې ساه وکښله او په خبرو کښې ور ولوېده:

- شکر، چې د ټولو صحت ښه معلومیږي...

وروسته یې په داسې حال کښې چې پر ارت او ګونځې مخ یې موسکا لیدل کېده، وویل:

- نیلوفنا، زما ځخه مه خوابدې کېږه،- لږ څه پخوا ما ستا زوی د خپل زوی په باب ملامت کړ. که رښتیا ووایم، نه شي تشخیص کېدلای، چې کوم یو تر ټولو ملامت دی! آیا تا واورېدل، چې ژاندارم او جاسوسانو زما د زوی په باب څه وویل؟ دهٔ، سورمخي شیطان هم ډېرې لاس او پښې وهلې!

داسې معلومېدل چې ښځه په خپل زوی مغروره او خوښه وه، مگر ښایي چې دغه حس یې نه شوای تشخیص کولای او د هغه د اظهارولو واک یې نه درلود. لیکن د ښځې احساسات و مور ته آشنا و، نو په ځواب کښې یې و ښځې ته په نرمو الفاظو سره وویل:

- ځوان زړونه تل په چټکۍ سره حقیقت درک کولای شي...

خلک په دهلېز کښې گرځېدل، کوچنۍ -کوچنۍ ډلې یې جوړولې او په ډېرو ټیټو او له ولولو نه ډکو ږغونو سره به یې خبرې کولې. تقریباً هېڅوک یوازې نه لیدل کېدل، د هر یوه په زړهٔ کښې د وینا کولو، پوښتلو او غوږ نیولو هیلو ځای نیولی و. دوی به مخ او شا ته تلل او په اوږده سپین دهلېز کښې یې داسې قطارونه جوړول، لکه توند باد چې دوی شړلي وي او دوی د خپل ځان د تکیه کولو لپاره په کوم جامد شي پسې گرځي. د بوکین مشر ورور، چې د دنگې او بې رنگه شوي وني خاوند و، لاسونه خوځول، لکه کوم شی چې غواړي ثبوت کړي:

- دغه کلیپانوف د لوی حکومت والي هېڅ حق نه لري، چې دلته راشي...

د دهٔ پلار چې یو زوړ سړی و، شاوخوا ته وکتل په وېرې سره یې ورته وویل:- کونستانتینه، خوله دې بند کړه.

- یـا، زه نـه شـــم کولای چې خوله بند کړم! ځکه ډېرې آوازې واورېدل شـوې، چې دۀ پروسږ کال خپل میرزا د هغه د ښځې په معامله کښې مړ کړ او د هغه ښځه یې ځان ته وکړه، له دې ها خوا دی یو لوی غل هم دی...

- کونستانتینه، د خدای لپاره خوله دې وتړه!

- بالکل حقیقت دی!- سمائلوف وویل.- محاکمه قانوني نه ده...

بوکین چې دا خبره واورېدله، په تلوار سره و دوی ته راغی او په داســې حال کښــې چې له ډېرو ولولو نه د دۀ مخ تک ســور شــوی و او لاســونه یې خوځول، نارې کړې:

- کله چې د کوم قتل او غلا معامله وي، خلگ د وکیلانو له خوا محاکمه کیږي، د عـادي خلکو لـه خوا، لکه: بزگر، کارگر او نور... مگر کله چې خلق د حکومت په مقابل کښــې پورته شي، خپله یې حکومت محاکمه کوي، دې کار ته تاســې څه وایاســت؟ کله چې ته ما ته بد ووایې او زه تا پر مخ باندې ووهم، وروسته بیا ته ما محاکمه کړې. ښکاره خبره ده چې زه به مجرم شم، حال دا چې لومړنی مجرم څوک و؟ ته وې!

یوه پهره دار چې ســپین وېښــتان او چنگک غوندې پزه یې درلودله او سینه یې له مډالونو څخه ډکه وه، ټولنه ماته کړه او بوکین ته یې لاس وښوراوۀ او و یې ویل:

- نارې مه وهه! په میخانه کښې خو به نه یې!

- دا ډېره ښـه ده، زه پوه شولم! غوږ ونیسئ که چېرې زه تا ووهم او بیا زه قاضي شم، نو چاره به څنگه وي...

پهره دار د گواښ په ډول وویل:- زه به امر وکړم، چې تا له دې ځای څخه وباسي، دا غواړې؟

- چېرې مي باسې؟ د څه لپاره؟

- دباندې، د دې لپاره چې نورې نارې و نه وهې...

بوکین شاوخوا ته وکتل او په ټیټ آواز سره یې وویل:

- یوازینی شی چې دوی یې غواړي، هغه د خلکو د خولو تړل دي...

زاړهٔ سړي په یوهٔ زیږهٔ آواز سره نارې کړې:- تا څهٔ فکر کاوهٔ!

بوکین خپلې اوږې وښورولې او خپل غږ یې ډېر ټیټ کړ.

- ولې باید خلکو ته اجازه ور نه کړل، چې محاکمې ته راشي؟ ولې یوازې خپلوان؟ که چېرې ستاسې محاکمه پر عدالت برابره وي، پرېږدئ چې هر څوک یې واوري! له څه شي څخه وېرېږئ؟

د سمائلوف پلار بیا تکرار کړه، مگر دغه پلا یې آواز لږ شانتې ځواکمن او لوړ و:

- دا بالکل حقیقت دی، چې محاکمه او عدل ډېر سره لېرې دي!..

مور وغوښـــتل هغه څه چې نیکولای دې ته د محاکمې د غیرقانونیت په باب ویلي وو، و دهٔ ته ووایي، مگر په هغو خبرو ښــه نه پوهېده او اکثره جملې یې هېرې کړي وې. په دې کوښښ چې دا به هغه ور په زړهٔ کړي، نو د خلکو له ډلې څخه جلا شوه او دې ته یې پام شو، چې یو ځوان سړی چې روښان برېتونه یې درلودل، و دې ته گوري. دهٔ خپل ښی لاس د پتلون په جیب کښې منډلی و او دا د دې سبب شـوی و، چې چپه اوږه یې ټیټه معلومه شي. د سړي د قوارې

دغه خصوصیت و مور ته آشنا معلومېدۀ. مگر هغه ژر خپل مخ واړاوۀ. څرنگه چې مور په خپلو افکارو کښې ډوبه تللې وه، نو دستي يې هغه هېر کړ.

مگر تر لږ ځنډ وروسته مور واورېدل، چې چا په نرمۍ سره وپوښتل:

- دا؟

کوم چا په خوشالۍ سره ځواب ور کړ:

- هو!

دې شـا ته وکتل. هماغه ځوان سـړی چې اوږې يې کږې وې، دې ته نژدې يو څنگ ته ولاړ و او يوه بل هلک ته چې توره ږيره يې درلوده او لنډ کوټ يې اغوستی و، گړگړ کاوۀ.

يو ځل بيا د مور په ياد کښې يوه څېه منځ ته راغله، مگر د پخوا په شان يې هېڅ شی ور په ياد نه شـول. د مور په زړۀ کښې په امرانه ډول يوه نه مغلوبېدونکې هيله پيدا کېدله، چې د خپل زوی حقيقت نورو خلکو ته تشريح کړي. دې غوښـتل چې خلک به د پاول د حقيقت پر خلاف څه ووايي او همدارنگه غوښـتل يې، چې د خلکو د ويناوو له مخې د محاکمې راتلونکې پريکړه وپېژني.

- آيا محاکمه په دغه ډول وي؟- مور په احتياط او ټيټ آواز سره و سـيزوف ته خطاب وکړ.- دوی ټول خپل وخت په دې تېروي، چې فلانی کار چا کړی دی، حال دا چې دوی بايد دغه پوښتنه کړې وای، چې فلاني ولې دغه کار کړی دی. دوی واړه زاړۀ خلک دي، ځوانان بايد د ځوانانو له خوا محاکمه شي...

سیزوف د موافقې په ډول وویل:- هو، دغه موضوع زموږ د پوهېدلو لپاره سخته ده!- او د تفکر په حال کښې یې سر وښوراوۀ.

پهره دار د سالون دروازه خلاصه کړه او نارې یې کړې:

- خپلوان باید خپل ټکټونه ښکاره کړي...

یوه سړي په تریو تندي سره وویل:

- ټکټونه،- لکه سرکس ته چې روان یو!

د خلکو په منځ کښــې عمومي ناآرامي او عصــبانیت موجود و. دوی له پخوا نـه ډېرې خبرې کولې، غـالمغـال یې کاوۀ او د پهره دارانو سره یې جنجال کاوۀ.

## «۲۵»

ســیزوف چې پر خپل ځای باندې کښـېناسـت، کوم شی یې له ځانه سره ووایۀ.

مور ور ځنې وپوښتل:- څه شی دې ووېل؟

- کوم مخصوص شی نه شته، ملت احمق دی، په هېڅ شي نه پوهېږي، په تورو تیارو کښې ژوند کوي...

یو زنګ ووهل شو او یوه کس په بې تفاوته لهجه سره اعلان وکړ:

- محاکمه روانه ده...

ټول خلک ودرېدل او قاضـیان د پخوا په شان په عین ترتیب سره سالون ته راننوتل او په خپلو ځایو کښې کښېناستل. بندیان هم دننه را وستل شول.

سیزوف و مور ته په ټیټ آواز سره وویل:- غوږ ونیسه، څارنوال به اوس خپله وینا وکړي.

مور خپل ټول بدن د مخ و خوا ته کوږ کړ او د یوې بدي پیښې د ګوانښ تمه یې درلودل.

څارنوال چې د قاضیانو په یو اړخ کښې ولاړ و، مخ یې دوی ته را وګرځاوۀ او یو لاس یې پر مېز کښېښود، لومړی یې یوه اوږده ساه وکښله، ځان یې جوړ او د ښي لاس په ښورولو سره یې په وینا پیل وکړ. مور د دۀ په لومړنیو الفاظو پوه نه شوله. د څارنوال ږغ ډېر هموار او پیاوړی و او خبرې یې په یوه ثابت ډول نه وې: کله به ډېرې چټکې او کله به ډېرې شاړې واړې وې. د دۀ جلا -جلا الفاظ د تار د ټکونو په شان په یوه اوږدۀ لړ کښې درېدل، مګر ناڅاپه به په بېړه سره والوتل او دورې به یې وهلې، لکه د تورو مچانو د سېل په شان، چې د قند د ټوک له پاسه ښکار کوي. مګر مور په هغو کښې هېڅ کوم خطرناک او خوفناک شی و نه لید. د دۀ خبرې د واورو په شان سړې او د ایرو په څېر سپېرې وې او داسې یې د سالون فضا ورو - ورو اشغالوله، لکه یو نامطلوب باد چې له ځانه سره دوړې او خاورې راوړي او دغه ځای ونیسي. دغه نطق ډېر د نطاقۍ په فن برابر و، مګر داسې له احساس څخه خالي و، چې د پاول او د هغه د ملګرو نطاقۍ ته هېڅ نه رسېدۀ او پر دوی باندې یې هېڅ تاثیر نه کاوۀ. بندیان د پخوا په شان په عادي حال ناست وو، کله به یې پټې پټې خبرې کولې، خندل به یې، کله به یې بیا د خپلې خندا د پټولو لپاره خپل تندي تریو کړل.

سیزوف غلي وویل:- دی درواغ وایي!

مګر مور د دۀ سر موافقه و نه کړه. د څارنوال خبرې يې جوتې واورېدلې او په دې پوه شـوه، چې څارنوال ټول بنديان بې له کوم توپير څخه تورن کوي! کله چې دۀ د پاول سوانح بيان کړل، بيا يې د فيدور مازين سوانح شروع کړل او وروسـته يې د بوکين سـوانح قرائت کړل، نو داسـې معلومېدله چې د دوی درو سرو سـوانح يې په يوه کڅوړه کښـې اچولي وو. مګر د دۀ د الفاظو په بيروني مفهوم سره قانع نه شوله او پر دې باندې يې هېڅ ډول تاثير و نه کړ. دا لا تراوسه پورې د کوم خطرناک شي په هيله وه او هغه يې د دۀ د خبرو تر شـا لټاوۀ-. که څـه هم مور د خطر له وجود څخه پوهېدله، خو بيا هم دې هغه ته کوم تعريف او نوم نه شوای پيدا کولای، چې د خپل زړۀ تسلي پرې وکړي.

مور و قاضـيانو ته وکتل. دوی هم له دې نطق څخه سـتومانه شوي وو. د دوی پـه سـپېرو، ژېړو او مړو مخونو کښـې بـالکل هېڅ شی نه ليدل کېدل. د څارنوال له خبرو څخه يوه غيرمريي غبار پيدا کېدۀ، چې وار په وار به غليظ شو او قاضـيان به يې د سـتومانۍ او ناآرامۍ په اوريځ کښـې پټول. سرقاضي وچ کلک پر خپل ځای باندې بې حرکته ناست و.

کلـه چې مور دغـه سـوړ حالت او بې اعتنايي وليدله، نو يې نه شـوای کولای، چې دغه پوښتنه له ځانه و نه کړي:

«آيا دوی په ريښتيا د محاکمې لپاره را ټول شوي دي؟»

دې پوښـتني د دې زړۀ منقبض کړ، د څـارنوال نطق پـه نـاڅـاپي ډول خلاص شـو. دۀ د نطق تر تمامېدو وروسـته ځان د قاضـيانو و خوا ته کوږ کړ او بېرته  پر خپل ځای باندې کښـېناسـت. د اشرافو مشــــر دۀ ته سر وښـوراوۀ او

سترګې يې ورغړولې. ښاروال خپل لاس و دهٔ ته اوږد کړ. د لوی حکومت والي خپلې خېټې ته کتل او له قناعت نه ډکه موسکا يې کوله.

مګر قاضيان په دغې نطق سره خوشاله نه شول، نو ځکه يې هېڅ خپل ځانونه و نه ښورول.

زاړهٔ سړي و خپل مخ ته يو کاغذ ونيو او و يې ويل:- اوس به د فيدوسيف، مارکوف او زاګاروف مدافع وکيل وينا وکړي.

هغه قانون پوه چې مور د نيکولای په کور کښې ليدلی و، ولاړ شو. دهٔ يو پلن او دوستانه مخ درلود، د دهٔ په مخ کښې دوې کوچنۍ تېزې سترګې معلومېدلې او هوا يې د بياتي په شان پرې کوله. دې سړي په لوړ آواز، وضاحت او بې له تلوار څخه خبرې کولې، مګر مور د دهٔ په خبرو پسې پوره نه رسېدله- په همدې وخت کښې سيزوف د دې په غوږ کښې وويل:

- څه چې دهٔ وويل، پوه شوې؟ دی وايي چې خلک متاثر او له عقله وتلي، دا څوک دی؟ فيدور يادوي؟

مور نه غوښتل چې ځواب ور کړي، د دې د زړهٔ ناهيلي ډېرېدله. اوس دې ته واضح شوله، چې ولې يې د عدالت او انصاف توقع درلوده، ولې يې هيله درلوده چې د خپل زوی د حقيقت او د دهٔ د قاضيانو د حقيقت تر منځ عادلانه او جدي معارضه ويني. مور فکر کاوهٔ چې قاضيان به له پاول څخه د دهٔ د تېرو کړنو په باب مفصلي او دقيقي پوښتني وکړي، دوی به د دې د زوی ټول افکار او کارونه، د دهٔ د ژوند ټولې ورځې په دقت سره تر استنطاق لاندې ونيسي. کله چې دوی د دهٔ حقيقت ويني، نو دوی به په لوړ آواز صادقانه اعلان وکړي:

- دغه سړی پر حقه دی!

مگر هېڅ داسې څه پېښ نه شول. داسې معلومېدل، چې د قاضیانو او د محکومینو تر منځ ډېره اوږد واټن دی او خپله قاضـیان د هغوی لپاره ضرور نه وو. له ډېرې ستومانۍ څخه مور خپله لېوالتیا او اشتیاق له لاسه ور کړ او نور یې څه نه اورېدل. د دې په سر کښې یوازیني فکر گرځېدئ:

«آیا محاکمه دا ډول وي؟»

- هغه و دوی ته ور کړه!- سیزوف غلي د تحسین په ډول وویل.

دغه پلا یوه بل د مدافع وکیل، چې کوچنی سـپېرۀ او تمسخرآمیز مخ یې درلود، خبرې کولې او قاضیان به د دۀ د خبرو مانع کېدل.

څـارنوال پـه چټکۍ سره پورتـه شـو او پـه یوه قهرجن آواز سره یې د آجنډې د مراعات کېدو په باب وویل. وروسته زاړۀ سړي هم د توبیح په ډول د مدافع وکیل ته څه وویل.

د مـدافع وکیـل په ځړېدلي سر او احترمانه ډول سره دوی ته غوږ ونیو او بیا یې و خپل نطق ته آدامه ور کړه.

سـیزوف وویل:- تر پایه ولاړ شه! خلگو د دې قانون پوه په خبرو سره په ولولو راغی او د ټولو خلکو پـه مخونو کښـې سرگرمي پیـدا کېـدلـه. د مدافع وکیل تېزې او سـختې خبرې د تېزابو په شـان د قاضـیانو په زاړۀ پوست لوېدلې. قاضیان داسې معلومېدل، لکه یو له بل سره چې بېخي یو شوي او پړسېدلي وي، د دې لپاره چې د الفاظو سخت گذارونه رد کړي.

په دغه وخت کښـې پاول پورته شـو او ټول خلگ په ناڅاپي ډول سره بالکل خاموش شول. مور خپل ټول بدن د مخ و خوا ته کوږ کړ. پاول په آرامۍ سره خبرې شروع کړې:

- زه د یوه ګوند د غړي په توګه وایم، چې یوازې د خپل حزب له خوا محاکمه په رسمیت پېژنم. زه د خپل ځان د دفاع په باب خبرې نه کوم، بلکې د خپلو ملګرو له غوښتنې سره سم، چې هغوی هم د ځانونه لپاره مدافع وکیلان نه دي نیولي، غواړم چې تاسو ته هغه شیان تشـــــریح کړم، چې تر اوسه پرې نه یاست پوه شوي. څارنوال زموږ هغه مارش، چې د سوسیال ډیموکراسۍ تر سرۀ بیرغ لاندې وشو، د حکومت په مقابل کښې یو بغاوت وګاڼۀ او دۀ موږ ته د هغو کسانو په سترګه وکتل، چې هغوی یوازې د تزار د لېرې کولو خیال په سر کښې لري. زه غواړم دغه ټکی واضـــح کړم: زموږ په نظر د تزار مطلق العناني یوازینی ځنځیر نـه دی، چې د هېواد ټول بـدن یې تړلی دی، بلکـه دا یوازې لومړنی ځنځیر دی، چې باید د خلکو له غاړې څخه یې وشلوو...

د پاول د متین ږغ په اثر د خلکو خاموشي تر پخوا لا ډېره شـوه. سـالون داسـې معلومېدۀ، لکه وار په وار چې لوییږي او پاول له خلکو څخه و یوه لېرې طرف ته په څرګند ډول جلا کیږي.

قاضیان په خپلو څوکیو کښې په ناآرامۍ سره وخوځېدل. د اشرافو مشر و یوه قاضي ته غلي څه وویل. هغه قاضي سر وښـــوراوۀ او د زاړۀ ســـړي په غوږ کښـــې یې ښکی وکړ. پـه همدې وخت کښـــې بل قاضي چې ناروغه قواره یې درلوده، د زاړۀ سـړي په بل غوږ کښې څه وویل. زوړ سړی په داسې حال کښې چې کیڼ او ښي لاس ته خوځېدۀ، په ټیټ آواز سره و پاول ته څه وویل، مګر د دۀ غږ د پاول د منظمو او ثابتو الفاظو په منځ کښې ورک شو.

- موږ سـوسـیالیسـتان یو. د دې ټکي معنا دا ده چې موږ د شـخصـــــي مـالکیـت مخالف یو، کوم چې انســـاني ټولنه تجزیه کوي او خلک یو د بل په

مقابل کښې پورته کوي، د دوی په زړونو کښې نه پخلاکېدونکې دښمني پيدا کوي او کوښښ کوي، چې خلک د دغه دښمنۍ له ادراک څخه منع کړي او ټول خلک په درواغو، حسد او بدبينۍ سره ولړي. موږ د هغې ټولنې ړنګول غواړو، چې په هغه کښې فرد هېڅ حيثيت نه لري، مګر يوازې د شتمنيو زياتولو وسېله ګرځي. دا ډول ټولنه موږ غيرانساني ټولنه بولو. موږ دغه د درواغو او له فساد نه ډک اخلاقي سيستم نه شو منلای، د دې ټولنې بې حيايي او بې رحمي د باشعوره انسان په ارتباط د منلو وړ نه ده؛ موږ غواړو له دې ټولنې سره مبارزه وکړو او خپلې دغه مبارزې ته تر پايه دوام ور کړو، تر څو له انساني ټولنې څخه هر ډول جسمي او روحي مريتوب ورک او محوه شي. موږ د هرې هغې لارې مخالف يو، چې په هغې سره انسان د خودخواهۍ، حرص او ظلم و خوا ته ور ټېل وهل کيږي. موږ کارګران يو، موږ هغه کسان يو چې په خپل لاس او متو سره د ټولې نړۍ نعمتونه تياروو. له کوچنيو لوبيزو شيانو څخه نيولې، بيا تر عظيمو ځواکمنو ماشينونو پورې- ټول زموږ د لاس محصول دي، مګر سره له هغه هم موږ ټول کارګران له خپل انساني مقام څخه شړل شوي يو. موږ د هر چا له خوا د هغه د ګټې لپاره استثمار کيږو. د خپل انساني حيثيت لپاره د مبارزې له حق څخه محروم يو. غواړو دومره آزادي تر لاسه کړو، تر څو ورو ورو ځواک لاس ته راوړو. دا ځواک به د خلکو ځواک وي. زموږ شعار ډېر ساده دی، ورک دې وي شخصي مالکيت، د توليد ټول عمده وسايل بايد د خلقو په لاس کښې وي، ټول واک او حاکميت بايد د خلقو په لاس کښې وي، هېڅوک بايد له کار څخه مستثنی نه وي.

پاول یوه نرۍ خندا وکړه او په کراره یې په خپلو وېښتانو کښې ګوتې ووهلې، د دهٔ شنې سترګې تر بل هر وخت زیاتې ځلېدلې.

زاړهٔ سړي په لوړ او واضح غږ سره وویل:- لطفاً اصلي موضوع ته راشئ! دهٔ خپل بدن وښرخاوهٔ او پاول ته یې وکتل.

مور داسې تصور کړه، چې د دهٔ په چپه غبارآلوده سترګه کښې یوه بده حریصه روښنایي وځلېدله او ټولو قاضیانو هم د دې زوی ته کتل او سترګې یې د دهٔ مخ ته نیولي وې او داسې معلومېدل، چې دوی په خپلو سترګو سره د دهٔ واک او ځواک زبېښې او ټول یې و وینو ته تږي دي، څو چې خپل شړېدلي بدنونه د دې په واسطه را ژوندي او غښتلي کړي. مګر دی پر خپل ځای باندې جګ، استوار، محکم ولاړ و او په زړه ورتوب سره یې ویل:

- موږ انقلابیون یو او تر هغه وخته چې یو شمېر، پر یو شمېر نورو باندې ظلم کوي، انقلابیون پاته کیږو. موږ د هغې ټولنې په مقابل کښې مبارزه کوو، چې تاسو یې د هغې د ګټو د ساتلو لپاره ګومارلي یاست. زموږ او ستاسو تر منځ پخلاینه شونې نه ده، مګر هغه وخت چې موږ بریالي شو. ځکه چې بریا زموږ د مظلومانو ده. ستاسو بادران په هېڅ لحاظ دومره ځواکمن نه دي، لکه فکر یې چې کوي. هغه شتمنۍ چې دوی یې د ټولولو او ساتلو لپاره د میلونونو انسانانو ژوند قرباني کړی، هماغه ځواک چې د دوی حاکمیت پر موږ باندې حاکموي، په خپله د هغوی په منځ کښې هم دښمني زېږوي او دوی جسماً او روحاً له منځه وړي. له خپل هغه ځواک څخه دفاع چې تاسو یې لرئ، تاسو له یوه دایمي روحي فشار سره مخ کړې یاست. په حقیقت کښې تاسو واک چلونکي، ټول له موږ ډېر غلامان یاست، ستاسو روح دی چې غلام شوی دی،

په داسې حال کښې چې موږ جسماً غلامان يو. تاسو نه شئ کولای د خپلو هغو عاداتو او موهوماتو له يوغ څخه چې ستاسو روحونه در وژني، آزاد کړئ، خو هيڅ شی د دې مانع نه ګرځي، چې موږ باطناً آزاد و نه اوســو. هيڅ شی زموږ روحي آزادي نه شي غصبولای، زموږ وجدان هميشه رشد او توسعه پيدا کوي. زموږ په مغز کښــې حقيقت پيژندنه ورځ په ورځ وده کوي او ټول ښــه خلک ځان ته را خپلوي- ټول هغه کسان چې پاک او سپيڅلي دي- حتی ستاسې له ډلې څخه هم. تاسې په ټوله ډله کښې داسې سړی نه لرئ، چې هغه ستاسو ټولو اساساتو ته پابند وي او د هغه دفاع وکړای شي. تاسو ټولې هغه وسيلې په کار اچولي دي، چې غواړئ د تاريخ له محکمې پرې ځانونه وساتئ. تاسو نور نه شئ کولای، چې د فکر او ايډيالوژۍ په برخه کښې کومه نوې مفکوره ايجاد کړئ. تاسې په فکري لحاظ شنډ شوي ياست. مګر زموږ نظريې وده کوي او پرلپسې ځواک او پرمختګ مومي. دغه ايډياوې د خلکو په پرګنو کښې نفوذ کوي، دوی سره يو ځای کوي او د مبارزې لپاره يې يو موټی کوي. بغير له بې رحمۍ او پس فطرتۍ نه شئ کولائ د دې غورځنګ مخه ونيسئ. د ټولې نړۍ کارګران د خپل تاريخي ماموريت په پيژندلو سره يو بدن او يو روح ګرځېدلي او هيڅ ځواک نه شته، تر څو د دوی د سمون او تحولاتو پر وړاندې ودريږي. ليکن ستاسو بې حيايي هر چا ته معلومه ده، ظلم او بې رحمي هم د عقل او منطق کار نه دی او ډېر دوام نه شــــي کولای. هغه لاسونه چې نن ورځ زموږ د غلي کولو لپاره کارول کيږي، سبا به حتمن زموږ لاسونه د ورونو غوندې نيسي. ستاسو ځواک ميخانيکي خصلت لري، چې د طلا او زرو له ټولېدو څخه توليد شوی، دغه ځواک تاسو پر متحاربو ګروپونو ويشي. د دې کار معنا دا ده، چې

تاسې یو بل خورئ. مگر زموږ ځواک یو حیاتي ځواک دی، چې ورځ په ورځ د کارگرو د طبقې وجدان تقویه کوي او د یووالي او همدردۍ روح یې پاکوي. ټول هغه کارونه چې تاسې یې سر ته رسوئ، جنایتکارانه دي، ځکه چې هدف یې د خلکو بندگۍ او غلامۍ ته را بلل دي. ستاسو درواغو، حرص او شرارت داسې یوه د فسق او فساد دنیا جوړه کړې ده، چې ټل خلک وېروي. زموږ دنده د همدې نړۍ ړنگول دي. تاسو د خلکو ژوند تر پښو لاندې کړی دی او هغوی مو محوه کړي دي، سوسیالیزم به هغه دنیا یو ځل بیا جوړه کړي، کومه چې ستاسي له ظلم او ستم څخه ورانه شوې ده او تاسي زموږ دغه اراده په هیڅ ډول نه شئ درولای!



**«پاول په محکمه کښې: هغه لاسونه چې نن ورځ زموږ د غلي کولو لپاره کارول کیږي، سبا زموږ لاسونه د ورونو غوندې نیسي. ډېر ژر به بزگر او کارگر د بندگۍ له یوغه آزاد شي. مرگ پر استبداد! زنده باد زیار ایستونکي خلگ!»**

پاول د یوې شیبې لپاره چوپ شو او بیا یې خپله وروستۍ جمله په پیاوړي غږ سره تکرار کړه:

- تاسې هېڅکله د دې ارادې په مقابل کښې نه شئ درېدلائ!

قاضیانو یو له بل سره پس‌پسې کاوهٔ، مگر خپلې وړې سترگې یې له پاول څخه هېڅ نه لېرې کولې. مور دا حس کړه چې دوی د دهٔ ځواکمن او پاک بدن په خپلو نظرو سره ککړوي. د دوی کتلو د دهٔ پر ځواک، تازگۍ او صحت باندې د کینې او حسد پلوشې اچولې. محکومینو د خپل ملگري و بیان ته په ډېر اعتنا سره غوږ نیولی و، د دوی د مخونو بڼې الوتي وې، خو سترگې یې له خوښۍ څخه ډکې وې. مور د خپل زوی په خبرو سره نشه شوله او ټولې خبرې یې په ذهن کښې نقش شولې. څو ځله زوړ سړی د پاول په خبرو کښې ور ولوېد او غوښتل یې چې کوم شی ورته واضح کړي او حتی یوه پلا یې له غمه ډکه موسکا وکړه. پاول به د دهٔ و خبرو او نصیحت ته پټه خوله غوږ نیولی و او بیا به یې په خبرو پیل وکړ. د دهٔ خبرې له متانت او کلک عزم څخه ډکې وې. د قاضیانو اراده یې د خپلې ارادې تابع کړه. بالاخره د زاړهٔ سړي حوصله خلاصه شوه او په داسې حال کښې چې خپل لاس یې د پاول و خوا ته وغځاوهٔ، ناري یې کړې، چې خبرې دې پرې کړي. پاول ورته په ځواب کښې په استهزاآمیزه لهجه سره وویل:

- اوس زه خپلې خبرې خلاصوم. ما نه غوښتل چې شخصاً تاسې خفه کړم، مگر برعکس دا چې زه جبراً په دې کمیډۍ کښې حاضر یم، کومه چې تاسې یې محاکمه بولئ، نو ستاسې پر حال مې زړهٔ سوځي. په هر حال تاسې انسانان یاست او دا زموږ لپاره ډېر د خواشینۍ ځای دی، چې خپل همنوع

شعوري انسان په داسې يو پست منسب کښې وينو. تاسې له خپل انساني مقام او عقل څخه ډېرې لېرې تللي ياست...

پاول په خپل ځای کښې بې له دې چې قاضيانو ته وګوري، کښېناست. مور خپل تنفس بند کړ او په دقت سره يې و قاضيانو ته وکتل، څو چې د دوی عکس العمل ووينې.

آندري له ډېرې خوشالۍ په کاليو کښې نه ځايېدهٔ، د پاول لاس يې ټينګ ونيو. سمائلوف، مازين او نور ټول د پاول خوا ته کاږهٔ شول او د ټولو په مخونو کښې خوشالي ليدل کېدله. پاول د خپلو ملګرو د مينې له امله لږ خجالته غوندې شو او نرۍ موسکا يې وکړه. وروسته يې د خپلې مور و خوا ته وکتل او سر يې داسې وښوراوهٔ، لکه پوښتنه چې کوي:

«آيا ته قانع شوې؟»

دې د خوشالۍ په ژور اسويلي سره و دهٔ ته ځواب ور کړ او ټول وجود يې له مينې، جوش او خروش څخه ايشېدهٔ.

سيزوف غلي وويل: اوس حقيقي محاکمه پيل کيږي! دهٔ ډېرې ښې خبرې وکړې، کنه؟

دې د سر په خوځولو سره مثبت ځواب ور کړ- دا ډېره خوشاله وه، ځکه چې زوی يې په ډېره زړه ورتيا خبرې کړې وې او لا ډېره خوښه او قانع په دې وه، چې دهٔ خپل نطق تمام کړ. مګر يوه پوښتنه د دې په سر کښې ور پيدا شوه:

«دوی به اوس څه ور سره وکړي؟»

«۲۶»

د پاول په وینا کښې کوم داسې شی موجود نه و، چې هغه و مور ته نوی وي، مور له دې افکارو سره لا پخوا اشـنا شـوې وه، مگر دلته، په محاکمه کښې دا د لومړي ځـل لپاره د دهٔ په ټينگه اراده او ايمان سره ډېره مجذوبه شـــوه. دا د پـاول د نطق لـه آرامۍ څخـه پـه حیرت کښــې ولوېدله، د دهٔ نطق دې ته د يوه ځلانده ستوري په شان معلومېدهٔ، چې د دوی د ظفر او بریالیتوب ښه سمبول و. دې اوس تمه درلودل، چې قاضـيان به له دهٔ سره سخته مباحثه شروع کړي، چې هلتـه د خپـل حقیقت واقعیت ثابت کړي. مگر په همدې وخت کښــې آندري ولاړ شـو، ځان يې وښـوراوهٔ، تر خپلو باڼوگانو لاندې يې قاضيانو ته وکتل او په خبرو يې پيل وکړ:

- د قدر وړ مدافعينو!

یوه قاضي چې ناروغه قواره يې درلوده، په لوړ او قهرجن آواز سره نارې کړې:- تاســې و قاضـــيانو ته خطاب کوئ، نه مدافعينو ته! مور د آندرې د ښې څخه پوه شـوله، چې هغه غواړي کومه شيطاني وکړي، برېتونه يې غورځېدل او په سـترگو کښـې يې د پيشـو حيله‌گرانه ناز ځلېدهٔ، چې مور ته آشنا و. دهٔ په ډېر شدت سره خپل سر وموښئ او په اسويلي سره يې وويل:

- خبره داسـې ده؟- زه فکر کوم چې تاسې قاضيان نه یاست، يوازې دفاع کوونکي ياست...

زاړهٔ سړي په سړه سينه سره وويل:- خواهش کوم د اصلي موضوع په باب خبرې وکړئ!

- اصـلي موضـوع؟ ډېر ښـه! ما خو لا ځان داسې فكر ته مجبور كړ، چې تاسې په حقيقت كښې قاضيان ياست، شرافتمند او خپلواک خلک ياست...

- محاكمه ستاسې توصيف ته اړتيا نه لري!

- اړتيـا نـه لري؟ هام- لېكن دا پروا نه كوي او زه به خپلې وينا ته دوام ور كړم... تاســې بې طرفه خلک ياســت، تاســو ته خپل او پردی ارزښــت نه لري، تاســو ته ټول يو ډول دي، تاســې كاملاً آزاد خلک ياســت. تاسـو ته دوه تنه را وســتل شــول، يو وايي: دۀ زما څخه غلا وكړه، زه يې ډېر ســخت ووهلم. بل يې وايي: ما د دۀ څخه غلا وكړه، و مې واهۀ، ځكه چې زۀ سوټی لرم...

زاړۀ سـړي په لوړ آواز سره بيا وپوښـتل:- آيا تاسـې د اصـلي موضوع په باب څه شی ويلای شـئ؟ د دۀ لاسـونه رېږدېدل او مور خوښـه شـوه، چې دی دومره په قهر شــوی و. مگر د آندري نطق او ســـلوک د مور خوښ نه شــو. د آندري نطق او ســـلوک د پاول له نطق سره هېڅ مطابقت نه كاوۀ، مور غوښـــتل چې د دوی مباحثه جدي او باعظمته شي.

خوخول پټـه خولـه زاړۀ ســـړي ته وكتل، خپل سر يې بيا وموښـــئ او په ټينگار سره يې وويل:

- د اصـلي موضـوع په باب؟ ولې زه بايد له تاسـو سره په دې باب خبرې وكړم؟ څه شی چې ضرور و، زما ملگري وويل. متباقي شـــيان به پر خپل وخت تاسو ته نور ووايي...

زوړ سړی ولاړ شو او اعلان يې وكړ:

- تـاســـې د وينـا كولو لـه حق څخـه محروموم! بـل بنـدي گريگوري سمائلوف دي وينا وكړي!

خوخول خپلې شـونډې سره کښـېکښلـې او په تنبلۍ سره کښـېناسـت.
سمائلوف ولاړ شو او خپل زنگوله وېښتان يې و شا ته ووهل:
- د دې دعوې څارنوال زموږ ملگري وحشيان او د تمدن دښمانان وبلل...
- لطفاً د هغو موضـوعاتو په هکله خبرې وکړئ، چې سـتاسـې په دوسـيه پورې اړوندي دي!
- لطفاً زما په خبرو کښـې مه را لوېږئ، ځکه چې دا موضـوع د انسـان په حيثيت پورې اړه لري! تاسې و څه شي ته تمدن واياست؟
زاړهٔ سـړي خپل غاښونه سپين کړل او و يې ويل:- موږ دلته ستاسو سره د مباحثې لپاره نه يو راغلي! انحراف مه کوئ!
د آندري خبرو او سـلوک د قاضـيانو په حالت کښـې بدلون را وسـتئ. د دوی په سـپيرو مخونو کښـې ډول ډول لکې پيدا شـوې او په سـترگو کښـې يې شنې سرې وړانگې معلومې وې. که څه هم دوی د پاول په نطق سره ډېر په قهر او عصـبانيت شول، خو بيا هم د دهٔ د خبرو ځواک دوی مجبور کړل، چې پاول ته څه و نه وايي او هغه ته خامخا اخلاص او احترام وکړي. ليکن د خوخول وينا د دوی دغه خودداري له منځه يووړه او ټول هغه شـيان چې د خودداری تر شـا پټ شوي وو، را برسېره کړل.
قاضـيانو له يو بل سره خبرې کولې او د لاسـونو حرکتونه يې تر پخوا تېز شول.
- تاسـې خلک د جاسـوسـی لپاره تربيه کوئ، تاسـې ښـځې او نجونې فاسـدې او بې عصـمته کوئ، تاسـې خلک و غلا او قتل ته مجبوروئ، تاسـې

دوی په ودکا مســموموئ،- بین المللي جنگونه، عمومي درواغ، فسـق او فجور- دغه دی ستاسې تمدن! بلې، موږ د دغه تمدن او کلتور دښمنان یو!

زاړۀ ســړي نـارې کړې:- خواهش کوم! مگر ســمائلوف پـه سرۀ مخ او روښانه سترگو سره بیا نارې کړې:

- موږ د هغه تمدن احترام کوو، چې د هغو کسانو په واسطه منځ ته راغلی وي، چې تاسې په زندان کښې اچولي دي...

- تاسې د خبرو له حق څخه محروموم، اوس د فیدور مازین نوبت دی!

وړوکی مازین د یوه خنجر په شان ودرېدۀ او په داسې حال کښې چې له ډېره قهره څخه یې یوازې سترگې معلومېدلې، وویل:

- زه قسم کوم! زه پوهېږم چې تاسو پخوا تر محاکمې زموږ جزا ټاکلې ده.

د دۀ تنفس بند شو، د مخ بڼه یې والوتله، دۀ خپل لاس داسې پورته کړئ، لکه سوگند چې یادوي:

- قسـم کوم، هر چېرې چې مې ولېږئ، و به تښتم او بېرته به خپل کار ته دوام ور کړم، د خپل ژوند تر وروســتۍ شــېبې پورې به خپله دغه وظیفه ترسره کړم.

سـیزوف آخ وکړ او په خپله څوکۍ کښې سره وښورېدۀ. ټول خلگ هم ډېر حیران شول. یوې ښځې ژړل، کوم چا ټوخل. ژاندارمو په ډېر قهر او حیرانتیا سره و محکومینو تـه کتل او خلگو ته به یې د غضـــب نه په ډک نظر سره کتل. قاضیان په څوکیو کښې مخ او شا ته خوځېدل. زاړۀ سړي به نارې کړې:

- ایوان گوسیف دې وینا وکړي.

- زه وینا نه کوم!

- واسيلي ګوسيف دې وينا وکړي!
- له وينا کولو څخه انکار کوم!
- بوکين فيدور!
يو ځوان چې ويښـتان يې بې رنګه شوي وو، په سختۍ سره پورته شو او په داسې حال کښې چې سر يې ښوراوۀ، ورو ورو وويل:
- تاسې بايد له خپلو ځانو څخه وشرمېږئ! زه په ډېري سختۍ يو شی زده کوم، مګر سره له هغه هم په عدالت پوهېږم!- دۀ خپل لاس د سر له پاسـه پورته کړ او د څه وخت لپاره پټه خولۀ ولاړ و، سـترګې يې نيمې پټې کړي وې، لکه يوې ليرې نقطې ته چې ګوري.
زاړۀ سړي په ډېر عصبانيت او حيرانتيا سره نارې کړې:- دا څه شي دي؟
- آه، تاسې کله په خبرو ارزئ...
بوکين خپل تندی تريو کړ او کښېناست. د دۀ په وينا کښې ډېر عظيم او ګواښمن شی موجود و او همدارنګه د دۀ خبرې د توبيخ او ملامتۍ نه ډکې وې. د دۀ د خبرو اهميـت هر چا درک کړ او حتی قاضـيانو ورته غوږ نيولی و، چې کوم نوی شی بـه واوري، تر څو د هغـه پـه واسـطـه د دۀ د خبرو موهوم او ګواښـونکي اهميت په څرګند ډول سره تشـريح شي. په سالون کښې يوه سړه خاموشي مسـلطه شـوه چې يوازې د يوې ښـځې په ژړا سره برهم کېدله. په پای کښې څارنوال خپلې اوږې وښورولې او يوه استهزاآميزه خندا يې وکړه. د اشرافو مشر وټوخل او خلکو هم بيا په بڼکۍ پيل وکړ.
مور و سيزوف ته ور چوخه شوه او ور څنې يې وپوښتل:
- شونې ده چې قاضيان خبرې وکړي؟

- هر څه تمام شول... يوازې به د محکمې حکم اعلان شي...

- هر څه؟

- هر څه...

مور دغه نه شــواى منلاى. د ســمائلوف مور په ناآرامۍ سره په څوکۍ کښې ښورېدله او دا يې په بازو او څنګل سره ټيله کوله. هغې له خپل مېړهٔ څخه وپوښتل:

- دا څه شې ده؟ آيا محاکمه په دې ډول وي؟

- په خپله يې ليدلاى شې، چې په همدې ډول ده!

- دوى به زموږ ګريګوري ته څه ډول جزا ور کړي؟

- خبرې بس کړه...

هر څوک د حکومتي خلکو لـه تعرض څخـه داســې په ولولو راغلي و، لکه کوم شى چې يې مات شــوى وي. خلکو د ناپوهۍ په ډول سـترګې رپولې، لکه د هغوى مخ ته کوم روښانه شى چې بل شوى وي، خو مفهوم يې د پوهېدلو وړ نه وي. په داسـې حال کښـې چې دوى په دغو د عظمت نه ډکو شيانو، چې دوى ته په ناڅاپي ډول را برسېره شوي وو، نه پوهېدل، خلکو په تلوار سره خپل نوي منځ تـه راغلي احســاســات پـه جزوي او عام فهمو موضــوعګانو باندې مصـروفول. مشر بوکين بې له دې چې خجالت وکاږي، لږ په لوړ آواز وويل:

- ولې دوى تـه د خبرو اجـازه نـه ور کوي؟ خو څـارنوال څومره چې غواړي، خبرې کوي...

يو منصــبـدار لـه څوکۍ مخې تـه ولاړ شـــو او د خلکو لور ته يې لاس وښوراوهٔ، و يې ويل:

- چوپ شئ، چوپ شئ...

سيزوف په غم او اندوه سره خپل سر وښوراوۀ. مور و قاضيانو ته خپلې سترګې نيولي وې، دې وليدل، چې د قاضيانو حيرانتيا وار په وار ډېرېږي. د دوی د مباحثې سوړ شمال د مور پر زړۀ لګېد، د دې باړخوګان يې رېږدول او په خوله کښې يې د ناجوړې تريخ خوند پرېښودۀ. د کوم نامعلوم دليل له مخې مور تصور کاوۀ، چې قاضيان د دې د زوی او د دۀ د ملګرو د وجودونو په باب چې له تودو وينو او ژوندي ځواک څخه ډک دي، خبرې کوي. د دوی پر بازوګانو او ځواکمنو شريانونو او وريدونو باندې حسد کوي، ځکه د دوی ټولو جسمونه ضعيف، ستړي ستومانه، ژېړ او بې واکه وو. دوی خپلې شونډې چړپوي او په دغو ځوانو پياوړو بدنونو ارمان ور ځي، ځکه چې دغه بدنونه د کار کولو، بډايه کولو، خوند اخيستلو او د نويو شتمنيو د ايجادولو واک لري. مګر د دوی بدنونه د ژوند له فعاليتونو لوېدلي وو، نور يې په خپلو وجودونو د تسلط او له هغې نه د استفادې کولو ځواک له لاسه ور کړی و. ځکه نو زاړۀ قاضيان ورته په قهر دي او غواړي چې په همدې خاطر ترې غچ واخلي. د دوی دغه کار و هغو ځناورو ته ورته دی، چې مخ ته يې نعمتونه پراتۀ وي، مګر د خوړلو واک او قابليت يې نه لري او په ډېر قهر سره غورېږي.

هر څومره چې مور د قاضيانو څېرې په دقت سره مطالعه کولې، نو پورتني افکار د دې په ماغزو کښې لا نور هم د تاييد وړ ګرځېدل. مور داسې فکر کاوۀ، چې قاضيان د هغو خوارو او وږو خلکو په څېر، کومو چې پخوا ډېر خوړلای شول، خپله پارېدلې طمع او بې وسه غضب هېڅ نه پټاوۀ. په خپله نيلوفنا چې يوه مور او ښځه وه او دې ته د خپل زوی جسم تر خپل روح ګران

و، نو ځکه به سخته ورته تمامېدله. کله چې به یې ولیدل د دوی ناپاکې سترګې د دې و زوی ته متوجه دي او د دهٔ ټټر، اوږې، لاسونه او ګرم پوست په سترګو خوري، لکه غوښتل یې چې په دې ذریعه په خپلو منجمدو وریدونو او شریانونو او له کاره وتلو عضلو کښې وینه توده کړي. اوس دوی د ځوان ژوند له کبله د حسد او کینې له لارې لږ شانتې را ژوندي شول او غوښتل یې چې دغه ژوند تر محاکمې لاندې ونیسي او له هغه څخه ځان محروم کړي. مور داسې فکر کاوهٔ چې پاول هم د دغو ناپاکو نظرونو په مفهوم پوهېدلی دی او په لړزن سره و دې ته ګوري.

پاول واقعاً و مور ته په آرامۍ او نرمۍ سره کتل او پر مخ باندې یې د ستومانۍ یو څپه راغلې وه. په هره شېبه کښې به پاول و دې ته کتل، سر به یې ښوراوهٔ او پر شونډو به یې موسکا لیدل کېدله.

مور د دهٔ له خندا او حرکاتو څخه دغه جمله درک کولای شوه: «ډېر ژر- آزادي!»

ټول قاضیان په ناڅاپي ډول پورته شول. مور هم په غیرارادي ډول ولاړه شوه.

سیزوف وویل:- دوی ځي!

مور ور ځنې وپوښتل:- د جزا د ټاکلو لپاره؟

- هو....

مور د دې ناڅاپي تحول او خپلې ستومانۍ څخه بالکل د ضعف احساس وکړ. د دې وروځې وغورځېدلې او په تندي یې د خولو څاڅکي پیدا شول. د دې زړهٔ د ناآرامۍ او مایوسۍ په درانهٔ وزن سره ووهل شو او ډېر ژر یې

په زړۀ کښې د قاضيانو او محاکمې په باب سپکاوی او کرکه ور پیدا شول. دې د سردردۍ احساس وکړ، نو ځکه یې لاس پر تندي ونیو او شا ته یې وکتل؛ د محکومینو خپلوان و جعفرې ته نژدې شول او د دوی خبرو او زوږ د کوټې فضا ناآرامه کړه. دا هم پاول ته ورغله، د هغه لاس یې ټینګ ونیو او و یې ژړل، په غم او خوښۍ کښې ډوبه وه. پاول دې ته د ناز او محبت نه ډکې خبرې کولې او خوخول خندل او ټوکې یې کولې.

ټولو ښځو ژړل، خو د دوی دغه ژړا له غم څخه نه وه، بلکه د دوی د عادت محصول و. دوی د هیڅ ډول غم او خطر احساس نه کاوۀ، مګر یوازې دا خبره درنه وه، چې دوی له خپلو کوچنیانو څخه جلا کیږي. لیکن دغه احساس هم د ورځې د مؤثرو او ګټورو خبرو په اثر ورک او محوه شوی و. مور او پلار خپلو زامنو ته په یوۀ مبهم حس سره کتل، په کوم کښې چې په ځانې بې پروايي، د خپلو کوچنیانو په نسبت د خپل برلاسیتوب پیژندنه، د بل ډول عجیب حس سره ګډېده، کوم چې د کوچنیانو احترام ته ورته و. غمجن او دردناک فکر- اوس څنګه باید ژوند وکړي- د هغه لټوونکي حس په ذریعه چې ځوانانو پارولې وه، سستېده. همدا ځوانان وو، کومو چې په ډېر شجاعت او زړه‌ورتوب سره د نوي ښه ژوند په هکله خبرې کولې. مګر خلکو د دغه ډول احساساتو د ښکاره کولو مهارت نه درلود، نو ځکه دوی به خپلې اکثره خبرې په عادي او ساده موضوعګانو مصروفولې؛ دوی به د کالیو، د روغتیا د ساتلو د ضرورت په باب خبرې کولې.

مشر بوکین په داسې حال کښې چې لاسونه یې ښورول، خپل کشر ورور باوري کاوه:

- محض / مازي عدالت! بل هيڅ شی نه شته!

کشر بوکين ځواب ور کړ:

- زما پر پهره دار پام وکړه...

- بې غمه اوسه!...

سيزوف خپل وراره تر لاس ونيو او ورو ورو يې وويل:

- ښه فيدوره! ته اوس زموږ څخه جلا کېږې...

فيدور په خوښۍ او خندا سره د ده و خوا ته ور چوخ شو او د ده په غور کښــې يې څه ورته وويل. پهره‌دار هم مســکا وکړه، مگر دســتي يې خپل مخ جدي کړ او خپله غاړه يې تازه کړه.

مور د نورو په شان و خپل زوی ته خبري کولې؛ د کاليو، روغتيا په باب، مگر غوښتل يې چې په لس گونو نوري پوښتني هم د ځان، ساشېنکه او په خپله د دۀ په باره کښې ور ځنې وکړي. د دې ټولو شيانو سره د مور په زړۀ کښې ډېره مينه د پاول په باب پيدا شوله او غوښتل يې چې خپله مينه دۀ ته ځرگنده او دی خوښ کړي. هغه گواښ چې پخوا مور حس کړی و، اوس ورک او پر ځای يې د قاضيـانو او د محاکمې د جرياناتو په باب يوه وېره پاته شوې وه. مور په خپل وجود کښــې د يوې لويې او روښـانه خوشالۍ پيدا کېدل احساسول، مگر د دې خوشــالۍ په مفهوم او دليل نه پوهېدله، نو ځکه لږ شــانتې خجالته شـــوه. مور وليدل، چې خوخول له ټولو خلکو سره خبرې کوي او دا ورته معلومه شوه، چې دی له پاول نه ډېر د مور مينې ته اړتيا لري، نو ځکه د دۀ و خوا ته ور وگرځېدله او ورته و يې ويل:

- زما دغه محاکمه خوښه نه شوه!

- ولې، نينکو؟- خوخول د ممنونيت نه ډکه موسـکا وکړه او نارې يې کړې.- که څه هم ژرنده زړه ده، خو بيا هم اوړهٔ ميده کولای شي...

- سړی د دې ډول شيانو څخه نه وېرېږي او خلک هم نه شـي ويلای، چې پر حق څوک دي او ناحق څوک؟- مور په ترديد سره وويل.

آندري وويل:- آه، تاسو دغه شی غوښتئ! تاسې فکر کوئ چې دوی په حقيقت پسې گرځي؟..

دې تر يوې خندا او اوږدې ساه کښلو وروسته وويل:

- ما فکر کاوهٔ چې دا به گواښونکی وي....

- محاکمه روانه ده!

خلک په چټکۍ سره بېرته خپلو ځايونو ته لاړل.

سرقاضي د ميز و خوا ته ودرېد، يو لاس يې پر مېز باندې تکيه کړ او په بل کښې يې کاغذ ونيو. دهٔ په نري آواز سره، شروع وکړه.

سيزوف د مخ و خوا ته کوږ شو او و يې ويل:- قاضي د محکمې حکم اعلانوي!

په سالون کښې مطلقه خاموشي مسلطه شوه. ټول خلک ولاړ شول او زاړهٔ سړي ته يې سترگې نيولې وې. وړوکی، وچ او مستقيم؛ دهٔ له يوه سوټي سره شباهت درلود، چې يو غيرمريي لاس يې ټينگ نيولی و. نور قاضيان هم ولاړ شول: د حکومت والي خپل سر و يوې خواته کوږ کړی و او د سالون و چت ته يې سترگې نيولې وې؛ ښاروال خپل لاسونه پر سينه باندې نيولي وو؛ د اشرافو مشـر په خپله ږيره کښې گوتې وهلې. هغه بل قاضي چې ناروغه قواره يې درلوده، د دهٔ گاونډي او څارنوال د محکومينو خوا ته کتل. د قاضيانو و شا ته

تزار له خپل تصــویر څخه چې سره درېشـــــــي يې درلوده، ده خلگو ته په بې پروايۍ سره کتل او د دۀ پر سپین مخ باندې په همدې وخت کښې يو مچ ناست و.

سـیزوف د آرامۍ تر اسـویلي وروسـته وویل:- تبعید! ښـه، خدایه شکر، هغوی ویل- شاقه کارونه! مورې، تبعید- دا دومره ډارونکې جزا نه ده!

مور په ستړي آواز سره وویل:- زه لا پخوا په دغه شي خبره وم.

- ښــه، اوس خو بالکل څرگنده شـوه! اوس د محکمې حکم په رســمي ډول سره اعلان شو او حتی که څوک وغواړي، چې دغه حکم بدل کړي، هېڅ به يې و نه شي کړای.- دۀ خپل مخ و محکومینو ته ور واړاوۀ او په لوړ آواز سره يې وویل:

- فیدوره! په مخه دې ښــه! ټولو، په مخه مو ښــه! خدای دې در باندې رحم وکړي!

مور پټـه خولۀ و خپل زوی او نورو ته سر وښــوراوۀ. دې غوښــتل چې وژاړي، مگر د دغه کار څخه يې د شرم احساس وکړ.

## «۲۷»

مور د محکمې لـه تعمیر څخـه دبـانـدې را ووتلـه او پـه حیرت کښـې ولوېدله، ځکه چې پر ښـار لا توره شـپه مسـلطه وه، په کوڅو کښې څراغونه بل وو او په شنه آسمان کښې ځلانده ستوري معلومېدل. د محکمې تعمیر ته نژدې د خلکو ډلې ولاړې وې، په مفرحه سړه هوا کښې واورو تر پښو لاندې خرچهار

کاوۀ، له هر ګوټ څخه ځوان ږغونه پورته کېدل. يوه سړي چې خاکستري رنګه بـالاپوښ يې اغوســـتی و، د ســـيزوف مخ تـه وکتـل او په بېړه سره يې ور ځنې وپوښتل:

- د محکمې حکم څه دی؟

- تبعيد.

- د ټولو لپاره؟

- هو.

- مننه.

سړی له دوی څخه لېرې لاړ.

- و دې ليدل؟- ســـيزوف له مور څخه پوښـــتنه وکړه.- خلک پوښـــتنې کوي...

د لســـو تنو په حدودو کښـــې د زلميانو او پېغلو يوه ټولۍ په ناڅاپي ډول سره دوی احـاطـه کړل. هغوی بـه لوړې او لـه ولولو نه ډکې نارې وهلې، چې د خلکو پـام يې ور خپلاوه. مور او ســـيزوف هم ودرېـدل. خلکو بـه ور ځنې د محکمې د حکم، د محکومينو د ســـلوک او وينـاوو او د هغوی د محتوياتو په هکله پوښتنې کولې. ټولي پوښتني له يوې داسې صميمي پلټني څخه ډکي وې، چې د اقناع کولو هيله بۀ يې پاروله.

- ښـاغليو! دا د پاول ولاسـوف مور ده!- يوۀ سړي په ټيټ آواز سره نارې کړې. ټول نابېره غلي شول.

- اجازه را کړئ چې تاسې ته لاس در کړم!

د یوه سـړي ځواکمن لاس د مور لاس ټینګ کړ او د کوم چا مضـطرب آواز واورېدل شو، چې ویل یې:

- ستاسې زوی به زموږ د ټولو لپاره د مېړانې او شجاعت یو مثال وي....

- تل دې وي روسي کارګر!- زنده باد انقلاب! مرده باد استبداد!- یوۀ لوړ ږغ ناري کړې.

شـور ماشـور او نارو شـدت موند، له هر پلو نه د مور او سـیزوف خوا ته خلکو منډې وهلې. د پولیسـو نارو فضـاء ناآرامه کړه، مګر سره له هغه هم شـور ماشور نۀ غلی کېدۀ. سیزوف به خندل او دا منظره مور ته د یوۀ خواږۀ خوب په شان وه. دې موسکا کوله، لاسونه به یې کلک کړل، سر به یې د خلکو د احترام لپاره ټیټ کړ او سـتونی به یې له خوښۍ او روڼو اوښکو څخه بند شو، پښې یې د ډېرې ستومانۍ له وجې رپېږدېدلې، مګر د دې زړۀ له ډېرې خوښۍ څخه ډک و او ټول شـــیان به یې زېبښـــل او د یوه آرام جهیل په څېر بۀ یې ټول خاطرات منعکسول. مور ته نژدې یوه له عصبانیت نه ډک آواز وویل:

- ملګرو، ملګرو! هغـه جیهون چې روسي خلـک خوري، نن ورځ یې په خپله وړې خوله نور ډېر خلک هم وخوړل...

- مورې، راځئ چې ځو!- سیزوف دې ته وویل.

په همدې وخت کښـې له کوم پلو نه ساشېنکه دوی ته راغله، مور یې تر لاس ونیوله او په بېړه سره یې په ځان پسـې د سړک و بلې خوا ته کش کړه او و یې ویل:

- مه درئېږئ، راځئ، شـــاید پولیس پر خلګو باندې حمله وکړي! رښـــتیا حکم څنګه شو؟ تبعید؟ سایبریا ته؟

- بلې، بلې!

- د دۀ نطق څه ډول و؟ که څه هم زه خبره يم. هغه له ټولو څواکمن او ساده و، له ټول ډېر جدي، طبعاً. ډېر مهربان او ملايم زلمی دی، لېکن شرميږي چې د خپل زړۀ دا نادره خواص را برسېره کړي.

مور د ساشېنکه دې تودو خبرو او کلماتو چې له مينې ډک و، لږ شان ته آرامه کړه.

- تـاســـې کله دۀ ته د ملاقات لپاره ور ځئ؟- مور په نرمۍ او له ناز نه په ډک آواز ترې نه پوښتنه وکړه.

نجلۍ مخ په وړاندې په مطمئين ډول سره کتل او ځواب يې ور کړ:

- هر کله چې کوم کس د خپلې دندې د مخ ته بېولو لپاره پيدا کړم، هغه وخت په دۀ پسې ور ځم. زه هم د محکمې حکم ته په تمه يم. ښايي چې دوی ما هم سايبريا ته تبعيد کړي. که داسې کار وشي، نو زه به دوی ته ووايم چې ما هغه ځای ته ولېږئ، چېرې چې دوی استوگنه کوي.

د سيزوف بږغ له شا نه واورېدل شو:

- هغه وخت به دۀ ته زما سلام ورسوئ! د سيزوف لخوا. دی ما پېژني. د فيدور مازين کاکا...

ساشېنکه ودرېدله او شا ته را وگرځېده. سيزوف ته يې لاس ور اوږد کړ.

- زه فيدور پېژنم. زما نوم الکساندره دی.

- او ستاسې پلرنی نوم؟

دې دۀ ته وکتل او ځواب يې ور کړ:

- زه پلار نه لرم.

- نو مړ شوی دی....

- یـا، هغـه ژونـدی او روغ رمـټ دی!- نجلۍ پـه ولولو سره وویـل.- هغه ځمکوال دی، اوس د یوې لویې محلې سرپرست دی، هغه له بزګرانو څخه غلا کوي.

- داسـې خبره ده!- سیزوف په پرېشانۍ سره وویل. د لږ ځنډ لپاره یې پټه خوله د نجلۍ تر څنګ حرکت کاوهٔ. وروسته یې وویل:

- د خدای په امان، مورې! زه کینې خوا ته ځم. په مخه دې ښـه، نجلۍ،- تاسـې د خپل پلار په اړه ډېره سـختګیره یاسـت! البته، دا سـتاسـې شخصي کار دی...

- که سـتاسـې زوی چټي سړی وي، د ټولو خلکو لپاره مضر او بدمعاش وي، تاسې به څه وواياست؟- ساشنېکه په اشتیاق سره نارې کړې.

- هام، ما به تا غوندې ویلي وای!- سـیزوف تر لږ ځنډ وروسته ځواب ور کړ.

- یعنې دا په دې معنا ده، چې تاســو ته عدالت تر زوی ګران دی او ما ته عدالت زما تر پلار ګران دی...

سیزوف نرۍ موسکا وکړه، سر یې وښوراوهٔ، او په اسویلي سره یې وویل:

- تاسـې څومره چالاکه او چسـته پېغله یاسـت! که سـتاسې زور ډېر دوام وکړي، نو حتماً بـه پر موږ زړو خلکو بـانـدې غلبـه ومومئ! د خـدای پـه امـان، ستاسې نیکمرغي او سعادت غواړم! په خلکو لږ شانتې ترحم او مهرباني وکړئ! نیلوفنا، د خدای په امان! که پاول دې ولید، ورته ووایه چې سیزوف د دهٔ خبرې

واورېدي. که څه هم د دهٔ د وينا ځينې شـــيان عام فهمه نه وو او حتی ځينې يې هيبتناک وو، خو بيا هم بايد ومنم چې حق دی!

دهٔ خپلـه خولۍ د احترام لپـاره پورته کړه او د کونج و خوا ته وګرځېد او ولاړ.

کله چې دوی کور ته ورســېدلې، پر کوچ باندې کښــېنســتلې. مور بيا د ســاشــېنکه د راتلونکي ســفر په باب له پاول سره د يو ځای کېدلو لپاره خبرې شروع کړې. ساشـېنکه خپلې ګڼې وروځې د تفکر په حال کښې پورته کړې او يوې لېرې نقطې ته يې په خپلو غټو سترګو سره وکتل.

مور وويل:- کله چې ستاســې کوچنی پيدا شي، زه به در شم او ستاسو د کور او کوچني کـار به کوم. هلته به مو هم ژوند له دغه ژوند څخه تريخ نه وي. پاول به هلته کار پيدا کړي- دی په خپل لاس سره هر څه کولای شي...

ساشېنکه په ځير سره و مور ته وکتل او ترې نه و يې پوښتل:

- تاسو همدا اوس نه غواړئ، چې په دهٔ پسې ولاړه شئ؟

مور په اسويلي سره وويل:

- دی به په ما څه وکړي، زه به يوازې د دهٔ مزاحمه شم، خصوصاً د تېښتې په وخت کښې. د بله طرفه دی به له دې پلان سره موافقه هم و نه کړي...

ساشېنکه سر وښوراوهٔ او زياته يې کړه:

- بلې، دی به موافقه و نه کړي.

مور په لږ غرور او وياړ سره وويل:- برسېره پر دې زه هم په کار بوخته يم!

- هو!- ســاشــېنکه د تفکر په حال کښــې ځواب ور کړ.- دا ډېر ښــه کار دی...

ناڅاپه دې سخت ټکان وخوړ، لکه کوم شی چې له خپلو اوږو غورځوي او په ډېره ساده لهجه سره يې بيا په خبرو پيل وکړ:

- دی به هلته ژوند و نه کړي. بې شکه به دی وتښتي...

- تاسې به څه وکړئ؟.. او که ماشوم پيدا کړې، هغه به څه کوي؟

- موږ به په دې باره کښــې پر خپل وخت فکر وکړو. دی بايد زما په باب فکر و نه کړي، زه به هېڅ کله ځان ته دا اجازه ور نه کړم، چې د دهٔ په لار کښې خنډ اوســم. البته، له دهٔ څخه بېلتون به زما لپاره ډېر ســخت وي، خو سره له هغه هم زه نه غواړم، چې د دهٔ مزاحمه شم.

مور وپوهېده، چې ساشېنکه د خپلې وينا په عملي کولو باندې توانېدلای سي، نو ځکه د دې د برخليک په هکله زړهٔ سواندې شوه. مور په ډېرې مينې دا په غېږ کښې ونيوله او و يې ويل:

- زما گرانې، دا به تاسو ته ډېر سخته وي!

ســاشېنکه په نرمۍ سره وخندل او د مور و غېږ ته يې په خوښۍ ځان ايلهٔ کړ.

په دې وخت کښــې نيکولای ســتړی ستومانه راغی. په داسې حال کښې چې خپل کوټ يې کېښن، په بېړه سره يې په خبرو پيل وکړ:

- ســاشېنکه، ښه به دا وي چې له دې ځايه ولاړه شې، اوس لا موقع شته. دوو مخبرانو زه له ســهار څخه تر اوســه پورې تعقيب کړې يم، ښــايي چې ما ونيــــــسيـ. زما گمان هېڅ کله غلط نه وي. کوم شی به پېښ شوی وي. په هر حـال، دغـه د پـاول وينـا ده، موږ پريکړه کړې، چې دغه وينا چاپ کړو. دغه و

لودمیلا ته ور ورسوه او ورته ووایه، چې ډېر ژر یې چاپ کړي. نیلوفنا، پاول ډېر ښه نطق وکړ!.. ساشېنکه، دباندې مخبرانو پسې وگوره...

نیکولای خپل ساړهٔ لاسونه سره ومښل، وروسته و مېز ته ورغی او د مېز د روکونو په را ایسـتلو یې شروع وکړه. له روکونو څخه به یې کاغذونه اخیسـتل، ځینې کاغذونه به یې څیرې کول، نور کاغذونه به یې یوې خوا ته کښېښودل. دی ډېر ستومانه او ناآرامه ښکارېدهٔ.

- لږ وخت پخوا ما دغه ځای پاک کړی و. خدای پوهېږي چې دغه ټول کاغذونه له کومه ځایه را ځي! نیلوفنا، زه فکر کوم ښـه به دا وي، چې تاسـې نن شـپه دلته تېره نه کړئ... تاسـې څه فکر کوئ؟ ډېره به سـتومانوونکې وي، که تاسې دغه نمایش ووینئ. سربېره پر دې ښایي چې دوی تاسو هم توقیف کړي او تاسې باید د پاول د نطق په ویشلو کښې زموږ سره مرسته وکړئ...

- دوی په ما څه کوي؟- مور اعتراض وکړ.

نیکولای خپل لاس وښوراوهٔ او په متانت سره یې ټینگار وکړ:

- زه د دغو شیانو گومان کولای شم او له بلې خوا به تاسې له لودمیلا سره هم یو څه مرسته وکړئ. کوښښ وکړئ چې وخت ضایع نه شي...

مور خوشـاله وه چې د خپل زوی د نطق په چاپولو کښـې گډون وکړي، نو ځکه یې وویل:

- که چېرې خبره داسـې وي، زه به ولاړه شـم. زه نور له هېڅ شي څخه د خدای په فضل نه وېرېږم!

نیکولای بې له دې چې مور ته نظر واچوي، نارې کړې:- ډېر اعلی! مگر ښه به دا وي، چې ما ته زما د اغوستلو د کالو بکس را وښیې. تاسو هر څه داسې کامل ترتیب کړي دي، چې زه خپل شیان نه شم پیدا کولای.

ساشېنکه په پټه خولهٔ د کاغذونو ټوټې په نغري کښې سوځولې او ایرې یې د سکرو سره گډولې.

- تاسو ساشېنکه، ځئ! د تگ وخت دی!- نیکولای و دې ته د خدای په امانۍ لپاره لاس وغځاوهٔ او و یې ویل:- د خدای په امان! که چېرې دا شی پېښ شي، د کتابونو را اســتول مه هېروه. گرانې ملگرې، د خدای په امان، احتیاط مه هېروه...

ساشېنکه ور ځنې وپوښتل:- آیا تاسې د اوږدهٔ بند په اړه فکر کوئ؟

- څوک پوهېږي! ښـایي چې دوی زما په مقابل کښــې کوم اسـناد ولري. نیلوفنا، دا به ښه وي، چې تاسې هم له دې سره یو ځای ولاړه شئ! په عین وخت کښې د دوو تنو تعقیبول د دوی لپاره سخت کار دی.

مور ځواب ور کړ:- ډېر ښه، صرف به خپل کوټ واغوندم...

مور نیکولای پـه دقـت سره مطـالعـه کاوهٔ، دهٔ د پخوا په شـــان نورمال او عادي حال درلود، یوازې په ښه کښــې یې لږ څه ناآرامي لیدل کېدله. د دهٔ ټول حرکات نورمال وو، په څېره کښې یې غم او پرېشاني نه لیدل کېدله. دی په دغه کال کښــې و مور ته تر هر چا گران و. دهٔ به هر چا ته په یوه ډول توجه کوله. دهٔ به تل ښه رویه او وضعیت درلود، دی اوس عیناً د پخوا پر حال پاته و- دی د یوه داسې ژوند خاوند و، چې د هغه لټون ډېرو لږو خلکو کاوهٔ. اما دا یوه شوله، چې دهٔ پـه دې کښــې ډېر مهربـانه روح پیدا کړی دی او دې د دهٔ سره داســې مینه

درلودله، چې دا هم ور څخه بې خبره وه. هغه ترحم او زړهٔ ســواندي چې دې اوس د دهٔ په حق کښې درلودله، نه يې شواى اظهارولاى، ځکه ښايي دى د هغهٔ په ښکاره کولو سره وارخطا يا غمجن شوى واى، حال دا چې مور هېڅ کله دغه شيان نه غوښتل.

دا بيا کوټې ته ور ننوتله، و يې ليدل چې دهٔ د ساشـېنکه لاس نيولى دى او دې ته وايي:

- ډېر عالي! زه باوري يم، چې سـتاسو دواړو لپاره دا ښه کار دى. يوه لږه شخصي نېکمرغي هم تاوان نه لري. نيلوفنا، ته تياره شوې يې؟

دى په داسـې حال کښې، چې خپلې عينکې يې سمولې، په خندا سره و مور ته نژدې شو.

- د درو، څلورو يا شپږو مياشتو لپاره د خداى په امان! د اوس لپاره فرض کوو، شـپږ مياشـتې! دا خو خورا ډېر لويه برخه ژوند دى! په ځان پام کوئ؟ پوه شوئ؟ اوس اجازه را کړئ چې تاسو په غېږ کښې ونيسم...

خپل پياوړي لاسـونه يې د نيلوفنا پر غاړه را وگرځول، د دې و سـترگو ته يې وکتل او په خندا سره يې وويل:

- زه داسـې ښکارم لکه پر تاسو چې عاشق شوى يم- ټول وخت تاسو په خپل غېږ کښې نيسم.

دې پټه خوله د دهٔ تندى او باړخوگان په داسـې حال کښـې چې لاسـونه يې رېږدېدل، ښـکل کړل. دې په داسې ترتيب خپل لاسونه لېرې کړل، څو چې هغه يې رېږدېدل هېڅ و نه ويني.

- سبا ورځ ډېر احتیاط وکړئ! د سهار له خوا یو کوچنی هلک دلته را ولېږئ- لودمیلا هغه هلک پېژني- چې معلومات وکړي. ښه، ملګرو، د خدای په امان! ټول شیان به په خپل اصلي شکل وي، ستاسو نېکمرغي غواړم!

کله چې دوی دباندې را ووتل، ساشېنکه مور ته په نرمۍ سره وویل:

- که چېرې اړتیا وي، دی به په همدې سادګۍ سره دار ته هم ولاړ شي. کله چې مرګ د دهٔ و سترګو ته وګوري، دی به خپلې عینکې سمې کړي او و به وایي- ډېر عالي!- او مړ به شي.

مور وویل:- ډېره مینه ور سره لرم!

ساشېنکه وویل:

- دی همېشه ما په حیرت کښې اچوي، مینه ور سره نه لرم، خو نهایتاً ډېر احترام ورته لرم، ښه انسان دی، خو په ځینو مسائلو کښې ډېر سوړ چلند کوي... داسې معلومیږي چې موږ تر تعقیب لاندې یو، ښه به دا وي چې جلا شو. که چېرې تاسو پوه شوئ چې تعقیبیږئ، نو د لودمیلا کور ته مه ځئ.

- زه پوهېږم!- مور وویل.

مګر ساشېنکه د ټینګار په ډول زیاته کړه:

- تاسې باید ډاډه اوسئ چې تعقیب نه شته! که چېرې تاسو داسې کوم شی حس کړ، نو د لودمیلا د کور پر ځای زما کور ته راشئ. اوس د خدای په امان!

دا په چابکۍ سره شا ته وګرځېدله او بېرته ولاړه.

«۲۸»

څو دقیقې وروســـته مور د لودمیلا د کوچنۍ کوټې د بخارۍ تر څنګ ناسته وه او ځان یې توداوۀ. د کوټې خاوندې چې تور کالي یې اغوستي وو، د څرمنې کمربند یې تړلی و، ورو ورو په کوټه کښې حرکت کاوۀ. د دې د پښو له دربهار او د لمنې له کښهار څخه د کوټې فضا ډکه وه.

په بخارۍ کښــې لرګي ســوځېدل او د اور ږغ په هوا کښــې پورته کېدۀ. مګر د ښځې ثابت ږغ پکښې معلوم او څرګند و.

- د خلکو د حماقت درجه د شرارت تر درجې لوړه ده. دوی یوازې هغه شــیان ویني، چې د دوی و ســترګو ته پراته وي او دوی یې د پورته کولو واک ولري، اما هغه شی چې نژدې وي، ارزښـــت یې کم وي، یوازې لېرې شی ډېر قیمت او سړي ته عزیز وي. که موږ و دغه ټکي ته په صحیح ډول ورسیږو او په ژوند کښــې مو لږ بدلون او آســانتیاوې را شي، نو هر څوک به خوښ وي او همدارنګه معقول او د منطق خاوند به شي، مګر د داســې ژوند را وســتل ډېر وخت او تکلیف غواړي، حال دا چې خلک نه غواړي، چې زحمت او تکلیف وباسي...

په ناڅاپي ډول دا د مور مخ ته ودرېدله او د عذر په ډول یې وویل:

- زه ډېر لږ خلک وینم او کله چې زموږ کره کوم سړی راشي، نو غفلتاً په دې ډول افکارو سره اخته کېږم. آیا زه تاسو ته د خندا وړ نه برېښم؟

مور ځواب ور کړ:- نه، ولې؟ مور کوښـــښ کاوۀ، چې د چاپ کارونو ځای کشف کړي، مګر هېڅ غیرعادي شی یې و نه لید. په دغه خونه کښې چې

درې کړکۍ يې د جادې و خوا ته درلودې، يوه دانه کوچ، يوه د کتابونو الماري،
يو مېز، څو څوکۍ، و دېوال ته نژدې بستره، بسترې ته نژدې په يوه کونج کښې
د لاسو او مخ د پرېوللو ظرف، د کوټې په بل کونج کښې بخارۍ موجوده وه.
ځينې نقشې او عکسونه پر دېوالو باندې ځړېدل. هر څه پاک، تازه او ډېر ښه
مرتب و. مگر پر دې ټولو شيانو باندې د ښځنتنې راهبې او د ماتم نه ډک سيوري
پروت و. په دې کوټه کښې يو مخفي پټ شوی شی معلومېدۀ، مگر د هغه د
وجود ځای معلوم نه و. مور و دروازو ته وکتل؛ د يوې دروازې له لارې دلې له
کوچني دهليز نه ننوتله، مگر يوه بله لوړه او نرۍ دروازه د بخارۍ و خوا ته هم
وه.

مور په پوره خجالت سره په داسې حال کښې و لودميلا ته وويل، چې
هغې په پټو سترگو سره و دې ته کتل:- زۀ د يوۀ کار لپاره راغلې يم.

- زه پوهېږم. هېڅ کله بې کاره خلک زما د ليدلو لپاره نه را ځي...

مور د لودميلا په غږ کښې کوم عجيب شی احساس کړ. مور د دې و مخ
ته وکتل او د دې پر نريو شونډو باندې يې خندا وليدله. سترگې يې د عينکو تر
شا ځلېدلې. مور خپلې سترگې و يوه اړخ ته واړولې او دې ته يې د پاول نطق ور
کړ.

- دغه دی، دوی غواړي چې په ډېر سرعت سره يې چاپ کړي.

وروسته يې وويل:- نيکولای داسې فکر کاوۀ چې دی به نن توقيف شي.

لودميلا پټه خولۀ کاغذ په خپل کمربند کښې کښېښود او پر څوکۍ
باندې کښېناسته. د اور لمبې د دې په عينکو کښې منعکسېدلې او د دې پر
ساکن مخ باندې يې لوبې کولې.

کله چې مور خپلې خبرې خلاصې کړې، دې په ډېر عزم او زړه ورتوب سره وویل:- که چېرې دوی په ما پسې راشي، زه به يې حتماً په تفنګچه وولم. زه د ظلم او ســتم پر خلاف د دفاع کولو حق لرم او که چېرې زه نورو خلکو ته د مبـارزې کولو بلنـه ور کوم، زه بايد په خپله هم له هغوی سره يو ځای مبارزه او جنګ وکړم.

د اور لمبې د دې له مخ څخه ورکې شـولې او بيا د دې مخ سرکښه او لږ شانته مغرور شو.

مور په مهربانۍ سره د دې په حق کښې له ځان سره فکر وکړ: «ستا ژوند ډېر سخت دی!»

لودميلا په لومړي سر کښې د پاول د نطق په ويلو د لېوالتيا پرته پيل وکړ، مګر ژر د نطق په لوســتلو کښـې کاملاً ډوبه شــوه او په ډېرې چټکۍ سره يې لوست.

کله چې يې د نطق متن تر پايه پورې ولوست، پورته شوه او د مور خوا ته راغله.

- دا ډېره ښه وينا ده!

دا لږه شيبه چوپه وه او سر يې وځړاوه. وروسته يې وويل:

- ما اول نه غوښـتل چې سـتاسې د زوی په هکله له تاسو سره وغږېږم. ما هېڅ کله دی نه دی ليدلی او برسېره پر دې زۀ د بدو پېښو په باب د خبرو ذوق او لېوالتيـا نه لرم. ما ته دا معلومه شــوې ده، چې د خپلوانو تبعيد کېدل، څومره دردمنه پېښـه ده! ليکن زه غواړم چې سـتاسو څخه يوه پوښتنه وکړم- د دې ډول زوی لرل ښه دي؟..

- ښه دي!- مور ځواب ور کړ.

- او ګواښونکي هم دي؟

مور نرمه موسکا وکړه او و يې ويل:

- اوس نور نه....

لودميلا په داســې حال کښــې چې په خپل غنم رنګه لاس سره يې خپل ښــه ږمونځ شوي وېښتان سمول، کړکۍ ته وګرځېدله. د دې پر باړخوګانو باندې يو سپک سيوری پروت و، ښايي دغه د غلي شوي موسکا سيوری و.

- زه به دا ژر چاپ کړم. تاســو اوس ويده شــئ او لږ خوب وکړئ. ډېره سخته ورځ مو تېره کړې ده، ستړي به ياست. تاسې دلته په بستره کښې څملئ او زه خپله نن شپه نه څملم. د شپې له خوا به تاسو را ويښه کړم، تر څو له ماسره لږ مرسته وکړئ... کله چې تاسو څملاستئ، نو څراغ مړ کړئ.

دې دوه پنډه لرګي په نغري کښې واچول، بيا پورته شوه او هغه دروازې ته ور ننوتله، کومه چې د نغري خوا ته جوړه شــوې وه. په ځان پســې يې دروازه کلکه وتړله. مور ور پسې-وکتل او په کالو کښلو يې پيل وکړ. دې د خاوندې په هکله فکر کاوه:

«دا به د کوم شي په اړه پرېشانه وي...»

که څه هم له ډېرې ســتومانۍ څخه د مور سر ګرځېدۀ، خو بيا يې هم په زړۀ عجيبه آرامي مسلطه وه. مور دا آرامي لا پخوا پېژنده، دا خوشالي او آرامي به هغه وخت د مور په زړۀ مسلطه کېدله، کله چې به يې ډېره حيرانتيا او اضطراب ګاللی و. دغه آرامي به پخوا د اندېښــنې وړ وه، مګر دغه پلا يې ډېر بيرونکی او پياوړی احساس منځ ته را وستلی و، چې د هغه په واسطه د مور زړۀ تقويه کېدۀ.

دې ځراغ مړ کړ او په سړه بستره کښې ځملاستله، تر بړستن لاندې يې ځان وړوکی کړ او ژر د راحت په خوب ويده شوه...

کله چې مور خپلې سترګې خلاصې کړې؛ توله کوټه د ژمي د ورځې له سپينې او سړې رڼا څخه ډکه وه. خاوندې يو کتاب په لاس کښې نيولی و او پر کوچ پرته وه. دې په داسې موسکا سره مور ته کتل، چې د دې لپاره غيرعادي برېښېده.

مور پـه خجالت سره وويل:- رېښتيا ډېر خوب مې کړی دی، اوس څو بجې دي؟

لودميلا ځواب ور کړ:- سـهـار مو پـه خير! ژر به لس بجې شي، پاڅئ، چای به وڅښو.

- ولې مو زه را ويښه نه کړم؟

- ما اول غوښتل، ليکن کله چې ستاسې بسترې ته راغلم، و مې ليدل چې تاسې په خوب کښې خاندئ، نو زړه مې و نه شو چې را ويښه مو کړم...

په يوه چست حرکت دا له کوچ څخه راپاڅېده، بسترې ته نژدې شوه او د مور د غوږ خوا ته ور ټيټه شوه. مور د دې په غټو ښايستو سترګو کښې مهرباني، صميميت او خاصه اشنايي وليدله. لودميلا وويل:

- نه مې غوښتل چې ستاسو مزاحمه شم، تاسو به کوم ښه خوب ليدئ....

- ما هېڅ شی هم نه ليدل!

- پروا نه کوي! ستاسې موسکا زما خوښه شوه- يوه آرامه او مهربانه موسکا وه!

لودميلا يوه آرامه او نرمه خندا وکړه.

مور وویل:- ما ستاسې د ژوند په باره کښې فکر کاوۀ... ستاسې ژوند خورا سخت دی!

مور په داسې حال کښې چې وروځې یې ښورولې، پټه خوله په یوه چرت کښې ډوبه تللې وه.

رښتیا ده چې زما ژوند سخت دی!- لودمیلا تائید کړه.

- زه په رښتیا سره نشم کولای!- مور په احتیاط سره په خبرو پیل وکړ.- ځینې وختونه داسې راته ځرګندیږي، چې ژوند سخت دی. خورا ډېر شیان شته او ټول داسې جدي او د حیرانتیا وړ دي، چې په چټکۍ سره یو په بل پسې ځي...

د مور په زړۀ کښې د ښو ولولو څپه پیدا کېدله، چې مور ته له پخوا نه آشنا وه او د مور په زړۀ کښې یې ډول ډول تصورات او پېچلي افکار پیدا کول. مور په بستره کښې کښېنستله او هڅه یې وکړه، چې په چټکۍ سره د خپلو افکارو پیکر ته د خبرو جامې ور واغوندي.

- ډېر شیان دي، چې د انسان حلق تریخوي... کاش موږ په ټولو خبر وای... بېچاره خلک په غم ککړ دي، په خورا ظالمانه ډول وهل کیږي، جاسوسان یې ورته ګمارلي، د ژوند له ډېر خوښیو څخه محروم دي، دا ډېره سخته ده.

لودمیلا سر پورته کړ او په ځیر سره یې مور ته وکتل.

په آرامه ږغ یې وویل:

- د خپل ځان په اړه خبرې نه کوې.

مور دې ته وکتل، له بسترې پورته شوه او په داسې حال کښې چې کالي يې اغوستل، ويې ويل:

- د ځان په اړه؟- کله چې انســان له يو چا سره مينه ولري، ورته ګران وي او په ټولو خلکو باندې يې زړهٔ سوځي، نو څنګه کولای شي چې ځان يوه اړخ ته کړي؟ دا ټول شيان د انسان له زړهٔ سره برخورد کوي، انسان بې تفاوته نشي پاتې کېدلای، هېڅکله.

مور د کوټې په منځ کښې په داسې حال کښې چې ټول کالي يې لا نه وو اغوستي، ودرېدله، د لږ وخت لپاره په چرت کښې لاړه. دې داسې خيال کاوهٔ، چې نور نو دا هغه پخوانۍ ښځه نه ده، چې تل به يې د خپل زوی په باره کښې تشويش او وير کاوهٔ او د دهٔ د ساتلو په فکر کښې وه، هغه ښځه ورکه شوه، جلا شوه او يوې لېرې کونج ته ولاړه او يا کېدای شي، چې د حيرانتيا او تشويش په اور کښې سوځېدلې وي؛ دا د دې د روح د پاکوالي لامل وګرځېد، زړه ته يې نوی ځواک ور کړ. مور خپل درون ته غوږ نيولی و او غوښتل يې چې د خپل زړهٔ ژورو ته وګوري، ليکن بېرېدله، چې پخوانی زوړ تشويش او ډار پکښې بيا را ژوندی نه شي.

د کور خاونده مور ته راغله او له نازه په ډک آواز سره يې ترې پوښتنه وکړه:- د څه شي په اړه دومره فکر کوې؟

- نه پوهېږم!- مور ځواب ور کړ.

دوی د لږ وخت لپاره پټه خوله يو بل ته کتل، دواړو وخندل، وروسته لودميلا له خونې څخه ووته او و يې ويل:

- نه پوهېږم، چې سماوار په څه حال کښې دی!

مور تر کړکۍ دباندې وکتل. دا ورځ ډېره سړه او لمرینه وه. د دې زړهٔ هم روښـــانه او له حرارت څخه ډک و. دې غوښـــتل چې د هر شي په باب خبرې وکړي- غوښتل يې ډېرې اوږدې او له خوښۍ ډکې کیسې وکړي، د هغو خیالونو په باره کښـې چې اوس د دې په روح کښـې د کوهستان د شـفق د نور په شـان ځلېدل. زړهٔ يې وغوښتل، چې عبادت وکړي، حال دا چې ډېر وخت يې عبادت نه و کړی. د یوه ځوان څېره يې په ذهن کښـې تاو را تاو شوه، چې ویل يې: «دا د پاول ولاسوف مور ده!..» د ساشېنکه مهربانې او له نازه ډکې سترګې ور په زړهٔ شـــوې. د ربین توره څېره، د زوی غنم رنګـه او متینه مخ چې له خندا ډک و، د نیکولای له خجالته رپېدونکي ســـترګې... دغه ټول افکار په ناڅاپي ډول په یوه سپک اسویلي سره بدل شول. کله چې لودمیلا بېرته راغله، نو يې وویل:

- نیکولای رښـتیا ویل. دی يې بېولی دی. ما سـتاسو له وینا سره سم هلته هلـک ولېږی. دهٔ ویـل چې په باغ کښـــې پولیس د دروازې شـــا ته ولاړ وو او جاسوسان يې له کوره تاوېدل، هلک دوی ټوله پېژني.

مور سر وښوراوهٔ او و يې ویل:- آه، بېچاره!.. نیکولای

دې بې له کوم غمه اسوېلی وکېښ او دې کار دا په حیرت کښې واچوله.

لودمیلا تندی تروش کړ او په آرامۍ سره يې وویل:- دهٔ په وروستیو کښې د ښار د کارګرانو په منځ کښې پراخ تبیلغات مخ ته وړل او بالعموم لا پخوا افشا او نیول شـوی و! ملګرو ورته ویل، چې له دې ځایه ولاړ شـه، مګر د هغوی په خبرو يې غوږ و نه نیوه! زما په فکر، په داسې حالاتو کښې باید اشخاص مجبور کړل شي، نه تشویق.

په دې وخت کښې يو هلک چې تور وېښتان، سرۀ باړخوګان، ښايسته شنې سترګې او جګه پزه يې درلوده، په دروازه کښې را ښکاره شو.

دۀ په لوړ آواز سره پوښتنه وکړه:- لازمه ده چې سماوار دننه راوړم؟

- مهرباني وکړه، سيرګي!- بيا لودميلا د مور و خوا ته وګرځېدله او و يې ويل:- دی ما تربيه کړی دی. زما شاګرد دی، تا ليدلی و؟

- نه.

- کله کله به مې په نيکولای پسې درليږۀ.

مور ته داسې معلومېده، چې لودميلا نن ورځ د پخوا په شان نه ده او ډېره نژدې ورته معلومېږي. د دې د ښکليو پياوړو اندامو په حرکاتو کښې ښايست او نزاکت موجود و، چې د دې د سپين مخ جديت يې کماوۀ. د تېرې شپې کار يې د سترګو په شاوخوا کښې تورې حلقې پيدا کړي وې.

هلک سماوار دننه راوړ. لودميلا هلک ته وويل:

- سيرګي، اجازه را کړه چې دا تا ته معرفي کړم. دا پلاګېيا نيلوفنا ده، دا د هغه کارګر مور ده، چې پرون محاکمه شو.

سيرګي په پټه خوله د احترام لپاره کوږ شو او مور ته يې لاس ور کړ. له کوټې ووت او چې بېرته راغی، نو ډوډی يې په څنګ کښې نيولې وه، هغه يې پر مېز کښېښودله او د مېز و خوا ته يې خپل ځای ونيو. کله چې لودميلا مور ته چای اچولې، نو کوښښ يې کاوۀ مور په دې قانع کړي، چې کور ته ولاړه نه شي، تر څو دا پوره څرګنده شي، چې پوليس د چا په تمه دي.

- ښايي چې پوليس ستاسو لپاره ولاړ وي او تاسو د لا ډېرو تحقيقاتو لپاره ونيسي...

مور ځواب ور کړ:- پروا نـه کوي، پرېږده چې ما هم توقيف کړي، کومه لويـه ضـــايع نـه ده. يوازې دومره وخت دې را کړي، چې د پاول وينا پر خلکو وويشم.

- د هغې چاپ تيار دی. سبا به مور پر کافي اندازه پاڼې ولرو... آيا تاسې ناتاشا پېژنئ؟

- طبعاً!

- دغه پاڼې و هغې ته ورسوئ...

هلک کومه ورځپاڼه ويله او داسې معلومېدی، چې د دوی خبرو ته غوږ نه نيـــسي. مگر کله کله به يې د مور خوا ته کتل. د مور سترگې به چې د هلک له شنو او بشاشو سترگو سره برابرې شوي، ښه احساس به يې وکړ او دۀ ته به يې وخندل. لودميلا يو ځل بيا د نيکولای د حبس په باب بې له کوم تاسف او ماتم څخه خبرې پيل کړې. مور ته د دې لهجه کاملاً طبيعي ښکارېده. وخت ډېر ژر تېر شو، تقريباً غرمه وه، چې دوی د سهار چای وڅښلې.

لودميلا حيرانه شول:- څومره ناوخته دی!

په همدې وخت کښــې کومکســـپه تلوار سره دروازه وټکوله. هلک ولاړ شو، خپلې سترگې يې چوغې کړې او په استفهام آمېزه ډول يې د کوربنې و خوا ته وکتل.

- سيرگي، دروازه خلاصه کړه. څوک به وي؟

لودميلا په يوه آرام حرکت سره خپل لاس د لمن په جيب کښــې دننه کړ او مور ته يې وويل:

- که چیرې ژاندارم وي، تاسې پلاگېیا نیلوفنا، په دغه کونج کښې ودرېږئ او ته، سیرگي...

هلک کرار ځواب ور کړ:- زه پوهېږم،- او ووت.

مور موسـکه شـوه. دغو ټول تدارکاتو مور ته کوم خاصـه حیرانتیا ور نه کړه او د کوم مصیبت راتلل یې حس نه کړل.

د دوی مېلمه وړوکی ډاکټر و. دۀ په تېزۍ سره په خبرو پیل وکړ:

- له ټولو وړاندې وایم، چې نیکولای توقیف شـو. آه، نیلوفنا، تاسې دلته راغلي یاست، آیا تاسې برایې شپه هلته واست؟

- دۀ زه دلته را ولېږلم.

- ښه،- زه وېرېدلم، چې دا به چندان مرسته و نه کړي! دوهمه دا چې تېره شـپه زموږ ځینو ملگرو د پاول د وینا پنځه سـوه نسـخې په هیکتو گراف کښـې چاپ کړي دي. ما هغه ولیدلې، ډېرې بدې نه وې، ټولې واضـحې او روښـانه وې. دوی غواړي چې هغه په دې مازدیگر کښـې وویشيـ. مگر زه د دې فکر مخالف یم- زه داسـې فکر کوم چې ښه به دا وي، چې چاپ شوي پاڼې په ښار کښې ووېشو او دغه پاڼې و بل ځای ته ولېږو.

- مور په پوره لېوالتیا سره نارې کړې:- زه به هغه ناتاشا ته ور وړم! ما ته یې را کړئ!

دا ډېره ناآرامه وه او غوښـــتل یې چې په ډېرې چټکۍ سره د پاول وینا د خلکو په منځ کښـې ووېشـــي او د خپل زوی خبرې په ټول وطن کښې خپرې کړي، نو ځکه یې ډاکټر ته دوې سترگې نیولي وې او د ځواب په تمه وه.

دهٔ خپل ساعت را واخیست او د تردید په حال کښې یې وویل:- په رښتیا زه نه پوهېږم، چې آیا اوس د دې کار په غاړه اخیستل به ستاسو لپاره مساعد وي او که یا! اوس اووه لس دقیقې، دوولسو ته پاتې دي، پر دوو بجو او پنځو دقیقو اورګـاډی حرکـت کوي، پر پنځو بجو او پنځو دقیقو هلته رســېږي. دغه وخت مازدیګر دی، مګر ډېر ناوخته نه دی، خو بیا هم اصل خبره دا نه ده...

لودمیلا په تریو تندي سره وویل:- هو، اصلي مطلب دا نه دی!

مور د دوی خوا ته ور نژدې شـوه او و یې پوښـتل:- نو اصلي مطلب څه شي دی؟ آیا مهم شی دا دی، چې دنده په ښه توګه ترسره شي؟..

لودمیلا په دقت سره دې ته وکتل، پر تندي یې لاس تېر کړ او و یې ویل:

- دا کار ستاسو لپاره ډېر ګواښونکی دی...

مور په خورا تاوده ټینګار سره نارې کړې:- ولې؟

ډاکټر پـه مـات آواز سره ځواب ور کړ:- دا ځکـه چې لـه کور څخـه د نیکولای تر توقیف تقریباً یو سـاعت د مخه ووتلې. فابریکې ته هم تللې یاست او هلته ټول تاسو پېژني، ستاسو له تګ وروسته هلته انقلابي پاڼې هم پیدا شوي دي... دا ټول شیان تاسو ته خطر پیښولای شي.

- هېڅوک بـه ما و نه ویني!- مور په ډېره لېوالتیا سره اعتراض وکړ.- او که دوی ما تر را ګرځېدو وروسته توقیف کړي او و مې پوښتي، چې زه چېرته تللې وم...

دا د یوې ثانیې لپاره پټه خولهٔ پاتې شوه، بیا یې زیاته کړه:

- زه پوهېږم، چې دوی ته څه ووایم! زه به مســتقیماً له هغه ځای څخه د کارګرانو محلې ته ولاړه شـــم- هلته یو کس پېژنم، ســیزوف نومېږي- زه به ورته

ووایم چې له محاکمې نه وروسته د دهٔ کور ته تللې وم.- د دې لپاره چې یو بل ته تسلي ور کړو، ځکه د دهٔ ورارهٔ هم جزایي شوی دی او دی به له ما سره ودرېږي، زما خبرې به تایید کړي، پوه شوئ؟

مور حس کړه چې دوی به د دې د ډېر ټینګار له وجې ور سره موافقه وکړي، نو په دې هڅه کښې شوه چې هغوی موافقې ته ژر تشویق کړي، دې په خورا ډېر متانت او ټینګار سره خپلو خبرو ته دوام ور کاوهٔ، څو چې بالاخره دوی د دې له پلان سره موافقه وکړه.

ډاکټر زړه نازړه موافق شو او و یې ویل:- بله چاره نه شته، ولاړه شئ!

لودمیلا څه و نه ویل، په کوټه کښې یې قدم واههٔ او په خپلو افکارو کښې ډوبه وه. مور ولیدل چې دا ستړې او ستومانه ده، په ډېر تکلیف سره یې خپل سر له ځړېدلو څخه ساتلی دی. مور د ډاکټر د اجباري رضایت له وجې اسوېلی وکړ. په خندا سره وویل:

- تاسې زما په باب ډېر تشویش کوئ! لېکن په خپله برخه کښې هېڅ فکر نه کوئ!

- ستاسې خبره سمه نه ده!- ډاکټر ځواب ور کړ.- موږ ځانونه ژغورو، موږ باید ځانونه روغ رمټ وساتو. موږ نه غواړو چې سړی خپل ځان د یوه عبث کار لپاره په خطر کښې واچوي. ښه، تاسو ته به په سټېشن کښې د وینا چاپ شوي پاڼې را ورسوو...

دهٔ مور ته ټول شیان تشریح کړل، وروسته یې د مور خوا ته وکتل او و یې ویل:

- ستاسې بریا غواړم!

مگر دی له کوره د وتلو په وخت کښې لږ ناآرامه معلومېدۀ. لودمیلا مور ته راغله او په کرارې خندا سره یې وویل:

- زه ستاسو په زړۀ پوه یم...

دې مور تر لاس ونیوله او بیا یې په کوټه کښــې کښېــته او پورته قدم وهل شروع کړل.

- زه هم یو زوی لرم، دی دیارلس کلن دی او له پلار سره ژوند کوي. زما مېړۀ د څارنوال ملگری دی. هلک له دۀ سره دی او له هغه به څه جوړ شي؟- زه تل په دې باره کښې فکر کوم..

د دې آواز وربېږدېد او په فکر کښې ډوبه شوه، و یې ویل:

- دی د هغه چا له خوا روزل کیږي، چې د هغو کســانو یو خوني دښــمن دی، کوم چې ما ته ډېر گران دي او د ځمکې پر مخ یې بهترین موجودات گڼم او شونې ده، چې زما زوی په خپله زما دښمن وگرځي. زه هغه له ځان سره نه شم ســاتلی، ځکه چې زه په یوه مســتعار نوم باندې ژوند کوم. اته کاله کیږي چې ما نه دی لیدلی. اته کاله- څومره ډېر وخت دی!

دا د کړکۍ و خوا ته ودرېدله او د پاک آسمان و خوا ته یې وکتل:

- کـه له ما سره یې ژوند کولای څومره به ښــه وای، ما به کوم غم په زړه کښــې نه درلودای. حتی که مړ شــوی هم وای، ما ته به یې مرگ له دې نه ډېر آسان وای...

مور ساه وکښله او له غمه یې زړۀ پرې پرې شو:- زما گرانې او بېچاره!

لودميلا په پوزخند سره زياته کړه:- تاسې ډېره نېکبخته ياست! دا ډېر د خوښۍ ځای دی چې مور او زوی ځنګ پر ځنګ مبارزه کوي- دا يو ډېر نادره شی دی!

نيلوفنا ناڅاپي وويل:

- هو، دا د خوښۍ ځای دی!- مور خپل ږغ ټيټ کړ او په داسې لهجه سره يې خبرو ته دوام ور کړ، لکه دې ته چې کوم مخفي شی وايي:- تاسې ټوله- نيکولای ايوانوويچ او ټول هغه کسان چې د حقيقت په لاره کښې مبارزه کوي، له مور سره ياست. په دې شيانو پوهېږم... په الفاظو او کلمو نه پوهېږم، ليکن په مطلب يې پوهېږم.

لودميلا د زمزمې په ډول وويل:- هو، همداسې ده! همداسې...

مور د لودميلا پر اوږو لاس کښېښود او خپلو خبرو ته يې په آرامه دوام ور کړ:

- زموږ بچيانو ټوله نړۍ ونيوله! زه پوهېږم چې د ځمکې په هر ګوټ کښې زموږ د بچيانو غوندې کسان پورته کيږي او د يوه واحد هدف پر لور روانيږي! د دوی زړونه پاک، مغز يې پياوړي او د ظلم پر ضد پاڅون کوي. دوی به په خپل پياوړي حرکت سره درواغ، غلا، چل، غداري او نور ټول ناوړه اعمال د ځمکې له مخه ورک کړي. دوی ځوانان او غښتلي دي- د دوی د ټولو ځواک د يوه آرمان لپاره مصرفيږي- چې هغه عدالت دی! غواړي چې په درد او رنج برلاسي شي، اسلحه يې اخيستې، تر څو د بشر ـ بدبختي نابوده کړي. غواړي بدرنګي ووژني او بلاخره به بريالي کيږي هم. يوه له دوی ما ته وويل، چې موږ غواړو نوی لمر روښانه کړو او يقيناً به دوی دا کار کوي! يوه بل ويل

چې ټول مات شــوي زړونه به بيرته سره پيوند کړو او دوی به يقيناً دا اتحاد منځ ته راوړي.

لاسونه يې اسمان ته پورته کړل:

- هلته لمر ولاړ دی!

او بيا يې په خبرو پيل وکړ:

- دلته به هم يو نوی اور روښــانه کړي. د آســمان له لمره هم روښــانه؛ د بشــر د سعادت او نېکبختۍ لمر، چې ځمکه او ټول هغه کسان به چې د هغې پر مخ ژونـد کوي، د مينې پــه رڼا ومينځي. څوک دا مينه وژلی شي؟ څوک؟ کوم ځواک دا لـه منځه وړلای شي؟ ځمکه ده چې دوی يې په خپله غېږه کښــې را زرغونۀ کړي او ټول ژوند د دوی د بريا غوښتونکی دی! ټول ژوند!

دا له ډېر اضــطرابه ســتړې شــوه، له لودميلا څخه يوې خوا ته ولاړه او پر څوکۍ کښېنستله، په ډېره سختۍ يې ساه کښله. لودميلا هم ور ځنې بېله شوه او په ډېر احتياط سره يې په کوټه کښـــې قدم وهلو ته دوام ور کړ. دا تر پخوا ډېره جگــه، نرۍ او بــاعظمتــه معلومېده. د دې ډنگر جدي مخ ډېر تعمق او د افکارو تمرکز ښـودۀ او په ډېر عصبانيت يې شونډې چيچلې. د کوټې مطلقې خاموشۍ مور ډېره ژر آرامه کړه؛ د عذر او ملامتۍ په ډول يې لودميلا مخاطبه کړه:

- ښايي داسې څه مې ويلي وي، چې نه مې واې بايد ويلي؟..

لودميلا په تېزۍ را وگرځېده او مور ته يې په داسې حال کښې وکتل، لکه له کوم شي څخه چې وېرېدلې وي، وروســته يې مور ته خپل لاس ور نژدې کړ او په تلوار سره يې وويل:

- یا، بالکل همداسې ده. مګر نور په دې اړه خبرې نه کوو. پر همدې حال یې پرېږده.- په دې وخت کښې د دې لهجه نرمه شوه، زیاته یې کړه:- تاسې باید ژر حرکت وکړئ، تمځای له دې ځایه لېرې دی!

- بلې، هر څومره چې ژر وي، بهتره ده! زه څومره خوشاله یم! آه څومره خوشاله یم، کاش تاسو پوهېدلای، زه د خپل زوی خبرې نورو ته وړم- د خپل زړه خبرې، د خپل روح خبرې، د خپل ځان خبرې!

مور موسکا وکړه، لیکن موسکا یې د لودمیلا په مخ کښې بالمقابل انعکاس و نه کړ. مور حس کړل، چې د دې خوښي د دغې ښځې په خودداری سره سړیږي. ناڅاپه د مور په زړه کښې یو شدید خواهش پیدا شو، چې د خپل زړه اور په دغه سرکښه روح کښې واچوي، تر څو دا ښځه هم تشویق شي او د دې زړهٔ له خوښۍ ډک کړي.

دې د لودمیلا لاس په لاس کښې ونیو او کلک کښېکېښ، بیا یې ورته وویل:

- ګرانې او زما د زړهٔ سره! څومره ښه ده چې سړی داسې یوه روښنایي ویني چې هغه و هر چا ته لار ښیي؛ هغوی ته روح ور کوي او په خپلو نه خاموشه کېدونکو شغلو یې سوځوي.

د ولولو یوه څپه یو ځل بیا د مور پر پلن او مهربان مخ باندې راغی او د هغه په وړانګو سره یې سترګې وځلېدلې او وروځې یې په غورځنګ راغلې. د دې په ماغزو کښې ډېر ځواکمن او نه مهارېدونکي افکار را پیدا شول او هغه څه چې د دې په زړه کښې موجود و، هغه څه چې دې له پخوا نه زده کړي و، د دې په افکارو کښې یې ځای ونیو. دې دغه خپل متمرکز شوي افکار د الفاظو

په ځلاندو بلورونو تبدیل کړل چې وار په وار ډېرېدل او د پســــــرلي د لمر د خلاقو وړانگو په شان روښانه کېدل.

- داسې ده لکه ما چې یو نوی خدای پیدا کړی وي! هر شی د ټولو لپاره! هر شی و هر چاته! ژوند په واحد شــکل! دا هغه شی دی چې زه یې وینم. په حقیقت کښــې تاسو ټول ملگري یاست، تاسو ټول د یوې کورنۍ او د یوې مور اولادونه یاســت!- هغه مور حقیقت نومېږي! حقیقت دی چې تاســو یې منځ ته راوړي یاست او تاسو د هغه په ځواک باندې ژوندي یاست!

مور خبرې بس کړې او یوه اوږده ساه یې وکښله. له لږ ځنډ وروسته یې خپل لاسونه په داسې حرکت سره لېرې کړل، لکه غوښتل یې چې کوم څوک په غېږ کښې ونیسي.

- کله چې د خپل زړهٔ په ژورو کښــې دغه د «ملگرو» کلمه په ژبه راوړم، لـه هر ځایـه جوپې جوپې را ځي. پرتمین او حیرانونکي اوازونـه اورم، لکـه د ځمکې پر مخ چې د ټولو کلیساوو زنگونه وهل کیږي.

مور بریالۍ شوې وه. (څه یې چې زړهٔ غوښتل، هماغه یې عملي کړل)- د لودمیلا څېره له ډېري حیرانتیا سره شــوه، شــونډې یې رېږدېدلې او پر اننگو یې غوټۍ غوټۍ اوښکې را روانې وې.

مور دا په خپل غېږ کښې ونیوله، بې شوره یې وخندل، زړهٔ یې له غرور او بریا سرشاره و.

کلـه چې دا دوې ښــځې لـه یو بـل جلا کېدلې، نو لودمیلا د مور مخ ته وکتل او په نرمۍ سره یې ترې نه پوښتنه وکړه:

- پوهېږې چې تا سره اوسېدل څومره کیف لري؟

«۲۹»

په کوڅه کښې ډېرې سړې او وچې هوا بدن رېږداوۀ، په حلق کښې دننه کېده او پزه یې تخنوله. مور ناڅاپه ودرېدله او شاوخوا ته یې وکتل: دې ته نژدې په یوه کونج کښې یو ګاډی‌وان، چې ببره خولۍ یې پر سر وه، ولاړ و، لږ څه لېرې یو سړی، چې بالکل کوږ شوی و او سر یې د اوږو په منځ کښې نیولی و، حرکت کاوۀ. د دۀ مخ ته یو عسکر په بېړه روان و او غوږونه یې موښل.

«ښایي چې عسکر یې کوم دوکان ته لېږلی وي!»- مور فکر وکړ او خپل تګ ته یې دوام ور کړ او دا خوښه وه چې د واورې کښېـهار یې تر خپلو پښو لاندې اورېدۀ. مور د اورګاډي تر را رسېدو وړاندې سټېشن ته ورسېده، مګر هغه د دریمې درجې کثیفه او چټله کوټه، چې د انتظار لپاره ځانګړې شوی و، له خلکو څخه بالکل ډک و- سړې هوا خلک مجبور کړي وو، چې دې ځای ته پناه راوړي- دلته راز راز خلک را غونډ شوي وو؛ د سړک جوړولو کارګران، ګاډی‌وانان او نور بې کوره خلک، چې خیرن او څیرې کالي یې اغوستي وو؛ څو تنه بزګران، یو چاغ تاجر چې د ګیدړې پوستین یې اغوستی و، یو روحاني او د هغې لور، پنځه، شپږ تنه عسکر او ځینې نور... خلکو سګرېټ څکول، خبرې یې کولې، چای او ودکا یې څښل. یوه سړي د کافي تر څنګ په لوړ آواز سره خندل، د خلکو له سرونو د پاسه د تمباکو دودونه پورته کېدل. دروازې به د خلاصولو په وخت کښې چغهار وکړ او د ډېرې سختې پورې کولو په وخت کښې به د کړکۍ ښیښې هم وښورېدلې. کوټه د تمباکو او مالګینو ماهیانو له بوی څخه ډک و.



مور دروازې ته نژدې يو ځای ونيو او کښېناسته. هر وخت چې به دروازه خلاصه شوه، دې به يوه ډېره سړه هوا حس کړه. دغې هوا به دې ته خوند ور کاوهٔ، نو ځکه به يې هر وخت يوه اوږده ساه کښله.

يو ځوان زلمی، چې خرمايي بکس يې په لاس کښې و، و کوټې ته ننوت، په چټکۍ سره يې شاوخوا ته وکتل او مستقيماً مور ته ورغی.

- مسکو ته ځې؟- دهٔ په ټيټ آواز سره ترې نه وپوښتل.

- هو، د تانيا خوا ته!

- دا دی، بکس مې راوړی دی!

دهٔ خپل بکس د مور خوا ته کښېښود، له جيب څخه يې سګرېټ را واخيست، بل يې کړ، خپله خولۍ يې د خدای په امانۍ په ډول پورته کړه او پټه

خوله له بلې دروازې بهر شو. مور د بکس د ځرمنې پر ساړهٔ اړخ باندې لاس تېر کړ، وروسته یې ځنګل پر ووهلـه او په ډېره آرامۍ سره یې د خلکو په څارلو شروع وکړه. یوه دقیقه وروسته ولاړه شوه او دروازې ته یې نژدې ځای ونیو. دې پـه لوړ سرعـت سره حرکت کاوهٔ او د خلکو څېرو ته یې کتل او هغه بکس یې، چې دومره دروند نه و، په اسانۍ سره وړئ.

یو ځوان چې لنډ کوټ یې اغوستی و او کالر یې پورته کړی و، له دې سره تصادف وکړ، بیا شا ته را وګرځېد او لاس یې پر خولې باندې ونیو. مور په دې شان سره مغمومه شوه، چې د دغه سړي څېره لږ شان ته آشنا په نظر ورغله. دې تر شـا ورتـه وکتـل، چې ګوري یو بې رنګه سـترګه له کالر څخه و دې ته متوجه ده. د دهٔ تېزې سـترګې د چاقو په شـان وې. هغه لاس چې دې بکس په نیولی و، په ډېر عجب ډول ټکان وخوړ او ناڅاپه د دې بار دروند شو.

«مـا پخوا دی بل ځای لیدلی دی!»- مور فکر وکړ او په دې فکر سره یې سر تـه یو حیران او نـامطبوع حس ورغلی، کوم چې د دې پـه زړهٔ کښـې پیـدا کیـدهٔ. دې نـه شـوای کولای، چې دغه حس تشـخیص کړي، کوم چې بې له مقـاومـت څخه د دې زړهٔ منجمد کاوهٔ. دغې بدګمانۍ وار په وار وده کوله او د دې سـتونی یې له ډېر ترخهٔ خوند نه ډک کړ. دې مقاومت نه شوای کولای، نو ځکه بیا را وګرځېدله او دهٔ ته یې وکتل. دغه سـړی هلته په هغه ځای کښې ولاړ و او په احتیاط سره به کله پر یوه پښـه او کله هم پر بله پښـه ودرېد او داسـې معلومېده، لکه دی چې د کوم شي په تمه وي. د دهٔ کیڼ لاس په جیب کښې او ښـی لاس یې د کوټ د غوټو په منځ کښـې منډل و، نو ځکه یې ښـی اوږه تر کیڼې لوړه معلومېده.

دا بې لـه تلواره څوکۍ تـه ورغله او په ډېر احتياط او کرارۍ سره داســې کښېنستله، لکه په خپل بدن کښې چې د کوم شي د ماتېدلو وېره ولري. دې پس له ډېر فکره وکړای شول، چې د دغه سړي دوه واره ملاقات ور په زړهٔ کړي- يو وار په هغه کرونده کښــې د ربين له تېښــتې نه وروسته؛ دوهم ځل د محاکمې په سالون کښې. په محاکمه کښې دی د هغه منصبدار په څنګ کښې ولاړ وو، کوم چې دې پر غلطه لار لېږلی و. اوس دې ته څرګنده شــوه، چې دا هم تر تعقيب لاندې ده او په دې کښې هېڅ شک نه شته.

دې له خپل ځان څخه وپوښتل: «يعنې بالاخره په بند کښې کښېوتـم؟»

لږ ولړزېده او له ځان سره يې وويل:

«شايد تر اوسه نه...»

مګر دا پلا يې ځـان مجبور کړ، چې پر حقيقـت اعتراف وکړي، نو پـه ټينګار سره يې وويل:

«بلې، کښېوتـم!»

دې شاوخوا وکتل، مګر هېڅ شکمن څوک يې و نه ليدل. نوي افکار يې د اور د لمبو په څېر په ماغزو کښې بلېدل او خاموشه کېدل.

«آيا بکس همدلته پرېږدم او ولاړه شم؟»

خو ډېر ژر دا فکر په يوه بله روښانه پلوشه سره بدل شو:

«څه شی؟ آيا زه د خپل زوی وينا پرېږدم؟ هغه و داســې چټلو لاسونو ته په لاس ور کړم...»

له دې فکر وروسته يې پر بکس حمله کړه او هغه يې په سينه پورې ونيو.

«آيا زه له دې بکس سره ولاړه شم؟.. وتښتم..»

دا ډول افکار د دې لپاره بېګانه معلومېدل او داسې فکر يې کاوۀ، لکه له خارج څخه چې ور باندې تحميل کيږي. دې ډول افکارو د دې په ماغزو کښې ګرځېدل او د دې زړۀ يې د اور پـه تـارو تړئ. دې افکـارو چې د مور د ډېرې خوابدئ او درد لامل کېدل، له مور څخه خپل ځان، پاول او هغه نور شيان، چې د مور په زړۀ کښــې يې جرړې غځولي وې، جلا کول. دې حس کړه، چې کوم خصــمانه ځواک د دې پر اوږو، زړۀ او بدن باندې زور اچاوي او داســې يې د مرګ و خوا ته کشــوي. د دې د ماغزو د شريانونو درزا چټکه شــول او د خپلو وېښتانو لاندې يې ډېر سخت حرارت حس کړ.

پـه نـاڅـاپي او فوق العـاده هڅې سره دې دغـه ټول افکار له ځان څخه لېرې کړل او خپل ځان ته يې په امرانه ډول وويل:

«وشرمېږه!»

دا يو ځـل بيـا خپـل عادي حالت ته راغله او بېرته له عزم او غيرت څخه ډکه شوه:

«خپل زوی مه شرموه!»

د دې سترګې د کوم چا له غمجن او ډارن نظر سره مخامخ شوې. وروسته د دې په ماغزو کښــې د ربين بڼه ور ياد شــوه. څو دقيقې وروسته لږ شانتې ډاډه شوه او زړۀ يې په عادي حالت سره رپېدۀ.

مور چې شـــاوخوا تــه يې کتل له ځان سره فکر کاوۀ: «اوس به څه پېښ شي؟»

جاسوس د ستېشن و يوه پهره دار ته ږغ وکړ، کله چې هغه راغی، په غوږ کښې يې څه ورته وويل او د مور و خوا ته يې اشاره وکړه. پهره دار و دۀ ته وکتل

او بیرته و شـا ته ولاړ. په دې وخت کښــې یو بل پهره دار راغی، دهٔ ته یې غوږ ونیو، وروسته یې تندی تریو کړ. دغه پهره دار زوړ سړی و، د دنگې ونې خاوند و، سـپین وېښتان یې درلودل او ږیره یې رسېدلې وه. دا دی اوس یې خپل سر و جاسـوس ته وښـوراوهٔ او وروسـته د مور و خوا ته ور رهي شو. جاسوس په بېړه یوې خوا ته ولاړ او ورک شو.

پهره دار چې تندی یې تریو و، بې له تلوار څخه و مور ته را نژدې شـــو. مور په څوکۍ کښې شا ته شوه.

«خدای دې وکړي چې و مې نه وهي».

پهره دار د دې و مخ تـه ودرېـد او د لږ وخـت لپـاره یې څـه و نـه ویـل. وروسته یې له مور څخه په سرکښۍ سره وپوښتل:

- څه شي ته گورئ؟

- هېڅ.

- رښتیا؟ ته غله یې! زړه شوې یې، خو بیا هم دا کار کوې.

دې کلماتو لکه مور چې په مخ وهلې وي، د دهٔ لهجه داسې دردناکه وه، لکه د دې باړخوگان چې پرې کړي یا یې سترگې ځنې وکاږي...

مور په داســې لوړ آواز سره نارې کړې، چې هر شی یې ولړزول:- زه؟ زه غله نه یم! ته درواغ وایې!- دې بکس ته ټېله ور کړه او هغه خلاص شو.

- وگوره! ټول وگورئ!- دا له خپل ځایه پورته شـــوه، یو بنډل پاڼې یې له ځـان سره پورتـه کړې او په لوړ آواز یې نارې کړې. دې ولیدل چې ټول خلک له هر لوري په ډېرو ولولو سره را روان دي او نارې وهي:

- څه پېښه وشوه؟

- دلته یو جاسوس و...

- وایي چې دغه غله ده...

- آه، آه! دا څومره محترمه ښځه ده!

- زه غله نه یم!- مور په لوړ آواز سره وویل او لږه آرامه شوه، کله چې یې ولیدل ټول خلک د دې گردچاپېره را ټول شــول او په دقت سره یې دې ته غوږ ونیو، نو په خبرو یې پیل وکړ:

- پرون یې یو شمېر سیاسي بندیان محاکمه کړل. زما زوی پاول ولاسوف هم په دې ډله کښــې شــامل و. زما زوی هلته یوه وینا وکړه، په دغو پاڼو کښې د دهٔ وینـا چـاپ شــوې ده. زه دغه وینا په خلکو باندې وېشـــم، تر څو دوی یې ووایي او په حقیقت باندې پوه شي...

یوه سـړي په ډېر احتیاط سره یوه پاڼه د دې له لاس څخه واخیستله. مور هم ټولې پاڼې هوا ته خوشي کړې او د خلکو په سرونو یې وپاشلې.

یو ویروونکی ږغ واورېدل شو:- دوی به تا د دې کار په بدل کښې بندي کړي.

مور ولیدل چې خلک په بېړه پاڼې اخلي، په جیبونو او گریوانونو کښـــې یې پټوي. دغه کار و دې نوی ځواک ور کړ. د خوښۍ او غرور حس پکښې بیا را ژوندی شو. کله چې دې خبرې کولې، نو له بکس څخه به یې پاڼې را ایستلې او ښـي او کیڼې خوا ته به یې پر هغو لاسـونو ور غورځولې، چې په ډېره لېوالتیا سره د دې و خوا ته اوږدهٔ شوي وو.

- آیـا تاســې پوهېږئ، چې ولې دوی زما زوی او د هغه ملگري محاکمه کړل؟ زه به تاســو ته ووایم، زما په خبرو چې د یوې مور له زړهٔ را پورته کیږي،

باور وکړئ! دوی زما زوی او د هغهٔ ملګري د یوه ســاده علت له مخې محاکمه کړل؛ هغه علت دا و چې دوی و خلکو ته حقیقت وایهٔ! پرون دغه ټکی ما حس کړ، چې هېچا د دوی له وینا څخه انکار نه شوای کولای، هېچا!

خلک وار په وار ډېرېدل او د مور پر شاوخوا باندې یې په خاموشۍ یوه حلقه جوړوله.

- فقر، لوږه او رنځ هغه شیان دي، چې موږ یې د خپل کار په بدله کښې اخلو. ټول شــیان زموږ پر ضـــد دي. هره ورځ زموږ د ژوند یوه برخه په یوه بې ګټې او چټل کار باندې ضـــایع کیږي، مګر نور زموږ له کار څخه ګټه او خوند اخلي، موږ د جهالت په حال کښــې ساتي او د سپیو په شان د غلامۍ ځنځیر را په غاړه کوي. موږ په هېڅ شي نه پوهېږو، موږ یې په وېره کښې اچولي یو. له هر شي څخه وېرېږو. زموږ ټول ژوند یوې اوږدې او تورې شپې ته ورته دی!

یو ځواب واورېدل شو:- بالکل حقیقت دی.

- د دې خوله وتړئ!

مور د خلګو شا ته جاسوس او دوه تنه ژاندارم ولیدل، نو ځکه مور تلوار وکړ چې پاتې پاتې هم د خلکو په منځ کښې وویشي، مګر کله چې د دې لاس بکس ته ورسېد، دې د بل سړي لاس حس کړ.

- واخلئ، واخلئ!- په داســې حال کښــې چې مور بکس ته ور ټیټه شوه، نارې یې کړې.

ژاندارمو خلک پورې وهل او نارې یې کړې:- تیت شئ!

خلک زړهٔ نازړهٔ په ټېلو سره پاشل کېدل، په خپل ډېروالي سره یې ژاندارم په خپلو منځ کښــې سره پورې وهل او په غیرارادي ډول یې د هغوی د تللو لاره

بندوله. سپینو وېښتانو لرونکي ښځې چې غټې شرافتمندې سترګې او مهربانه څېره یې درلوده، د خلکو توجه ځان ته را خپلوله. دغه خلک په ژوند کښې سره جلا او یو له بل څخه شړل شوي وو، مګر اوس دوی دلته د مور د وینا په اوریدلو سره یو ځای کېدل. ښايي ډېر زړونه چې د ژوندانه په بې انصافۍ ناراضه او خوابدي وو، له پخوا د دې اور په لمبه کښې وو. هغه څوک چې مور ته نژدې ولاړ و، دوې سترګې یې و دې ته نیولې وې او په ډېر دقت سره یې د دې خبرو ته غوږ ایښی و.

- اې، بوډۍ، ورکه شه!

- اوس به دې ونیسي!..

- اخ، دا څومره زړه وره ده!

- خواره شئ! خپلو ځایونو ته ولاړ شئ!- د ژاندارمو له غضب نه ډک ږغونه د خلکو له ږغونو سره یو ځای کېدل.

مور ته داسې ښکاره شوه، چې ټول خلک تیار دي، تر څو د دې په خبرو وپوهیږي او باور پرې وکړي، نو ځکه یې تلوار وکړ، چې خپل ټول افکار، هغه چې دې تر اوسه تجربه کړي وو، بیان کړي. دا افکار په آسانۍ د دې له زړهٔ څخه را غورځېدل او یوه ښکلې سندره یې جوړوله. مګر مور حس کړه، چې دا سندره نه شي ویلای. د دې آواز مات او کمزوری شوی و.

- زما د زوی وینا، د دې ملت د یو پاک بچي وینا ده! یو رښتونی او زحمتکښه بچی! رښتوني اشخاص د دوی له مېړانې وپېژنئ! دوی له شجاعت څخه ډک وي او د اړتیا پر وخت خپل ځان له حقیقت ځاروي.

ځوانانو په ډېر شور، ولولو او وېرې دې ته کتل.

په دې وخت کښې کوم کس مور په ځیگر کښې ووهله او دا پر ځوکې باندې ولوېدله. د ژاندارمو لاسونه د خلکو له سرونو دپاسه خوځېدل، خلک به یې له گرېوانونو او اوږو نیول او شا ته به یې ټیله کړل. له دوی څخه به یې خولې حمله کولې او لیرې و بل کونج ته به یې غورځولې. هر څه د مور په مخ کښې ښورېدل، مگر دا پر خپله ستومانۍ مسلطه شوه او په خپل ټول پاتې ځواک سره یې نارې کړې:

- اې خلکو، ټول خپل خپل ځواک سره ټول کړئ او یو واحد ځواک ترې جوړ کړئ!

- چوپ شه! د مور سر له دېوال سره ولگېد، د څو ثانیو لپاره ووېرېده، مگر له لږ ځنډ وروسته یې بیا غیرت را ژوندی شو.

ژاندارم وویل:- ځه، حرکت وکړه!

- اې خلکو، له هېڅ شي مه ډارېږئ! په نړۍ کښې ستاسې تر ژوند بله سختي نه شته...

- تا ته وایم، خوله دې بنده کړه!- ژاندارم دا تر اوږو ونیوه او مخې ته یې ټیله کړه. بل ژاندارم هم دا تر بازو ونیوله او بو یې تله.

- هېڅ درد، له هغه درده چې انسان هره ورځ خوري او روح یې سولوي، تریخ نه دی...

جاسوس دې ته ور منډه کړه، سوک یې ورته پورته کړ او چیغې یې کړې:

- اې، زړې سپۍ، خوله دې وتړه!

د نیلوفنا سترگې را ووتې، شونډې یې په غورځنگ شوې. په داسې حال کښې چې د غولي په ښوینده ډبره یې تکیه کوله، نارې کړې:

- را ژوندی شوی انقلابي روح نه وژل کيږي!

- اې سپی، غلې شه!

جاسوس مور پر مخ ووهله.

- وهئ يې، وهئ يې! له کرکې ډک رږغ واورېدل شو.

په دې وخت کښې مور د يوه تور او سرۀ شي په واسطه ړنده شوه او خوله يې له تودو او تروو وينو ډکه شوه.

لوړو او تېزو آوازونو يو ځل بيا مور په هوښ را وسته.

- تاسو حق نه لرئ، چې دا ووهئ!

- ملګرو!

- تاسې شرير او رذيل خلک ياست!

- دغه جاسوس ووهئ!

- حق په وينو کښې نه شي ډوبېدلای!

دوی دا له شاوخوا څخه ټېله کوله، پر اوږو او سر باندې يې وهله. هر څه د چيغو او نارو په تور طوفان کښې څرخېدل. د دې غوږونه کاڼۀ شول، ساه يې بنده شوه، پښې يې مړاوې شوې. ټول وجود يې درد کاوۀ، بدن يې دروند شو او بې وسه يوې او بلې خوا ته خوځېده، مګر سره له دې هم د مور د سترګو اور نه مړ کېدی او شاوخوا يې ډېرې نورې سترګې هم ليدلې، چې دا اور پکښې بليدۀ.

دې خپل لاس کش کړ او د دروازې درشل يې ټينګ ونيو.

- که د وينو دريابونه هم وبهوئ، حقيقت به محوه نه کړئ!

په لاس يې يو ګوذار وخوړ.

- اې جلادانو، يوازې او غضب را ټولوئ! او د خلکو دغه و غضب به تاسو يوه ورځ ډوب کړي!

یوه ژاندارم دا تر ستوني ونیوله او هڅه یې وکړه چې آواز یې خپ شي.
مور په په خپ خپ بږغ وویل:
- اې! بدبختو...
یوه بږغ په اوږدهٔ فریاد سره د دې ځواب ور کړ.

# پای

## اختتام

د «مور» په نامه د ماکسیم گورکي د رومان له قهرمانانو سره مور د هغوی په ډېر ســخت وخت کې خدای په امانی کوو. په زرگونو کیلومتره لېرې ســره سایبریا، د تل لپاره پاول ولاسوف ته د ځای ورکولو په تمه ده؛ د هغه مور نیلوفنا د هغه بکس سره چې له انقلابي موادو-هغه تبلیغاتي پاڼې چې د پاول وینا پکې چاپ شوې وه- ډک و، د ژاندارم په لاس ورغله. پولیس دا سپکوي، وهي یې، خو دا په بېړه راټولو شویو خلکو ته د ژوند د حقیقت په هکله خبرې کوي.. دا د خپلو جلادانو په مخ کې نارې وهي: «که د وینو دریابونه هم وبهوئ، حقیقت به محوه نه کړئ!... اې جلادانو، یوازې کرکه او غضب راټولوئ!»

د دې داستان د اصلي قهرمانانو وروستی برخلیک څنگه شو؟ یعنې د هغو قهرمانانو برخلیک کوم چې گورکي په خپل داستان کې د پاول ولاسوف او د هغه د مور پلاگېیا نیلوفنا په څېره کې تمثیل کړی دی. دا کسان (اصلي قهرمانان) پیتر زالوموف او د دهٔ مور آنا کیریلوفنا دي.

پیتر زالوموف ډېر وخت ژوند وکړ او د پوره بوډاتوب په وخت کې کله چې د دهٔ عمر ۷۸ کاله و، په ۱۹۵۵ ع کال مړ شو. همدرانگه د هغه مور آنا کیریلوفنا زالوموفا ډېر وخت ژوندۍ وه، د هغې په باره کې گورکي لیکي: ...«نیلوفنا د پیتر زالوموف د مور عکس دی، کوم چې په ۱۹۰۲ ع کال په سورموفو کې د مۍ د لومړۍ نېټې په مظاهره کې د گډون په سبب محکوم شوی و. د دهٔ مور په سازمان کې فعالیت کاوهٔ، د مسافرې ښځې جامې به یې اغوستلې او انقلابي مواد به یې له یوه ځایه بل ځای ته وړل...»

آنا کیریلوفنا په ۱۸٤۹ ع کال د یوه موچي په کورنۍ کې زیږېدلې ده، ژوند یې ډېر سخت و. خصوصاً د مېړۀ تر مرګ وروسته یې د ژوند وضع نوره هم خرابه شوه، ځکه چې اوه تنه اولادونه یې یتیمان پاته شول... دوی د یوه زاړۀ تعمیر په زیرزمینۍ کې کوم چې د کونډو او یتمیانو لپاره ځانګړی شــوی و، په یوه تاریکه او سړه کوټه کې ژوند کاوۀ. یوازې د مور مقاومت او زیار ایستنې د کورنۍ ژوند وساتۀ. ماشومان کرار کرار لویېدل، مشرانو په کار کولو پیل وکړ او کشرانو یې لوست کاوۀ. پیتر زالوموف انقلابي حلقې ته ور دننه شو، وروسته ډېر ژر د زالوموف ټوله کورنۍ په انقلابي جریان کې برخه واخیسته.

د اکټوبر تر انقلاب وروســـته، به آنا کیریلوفنا د خپلو اولادونو سره یا په لنینګراډ کې د کشرې لور کره او یا په سورموفو کې د زامنو کره ژوند کاوۀ.

دا یوه ســپین سرې ښځه وه چې ټیټه ونه، حیرانونکي ژوندۍ سترګې او دوستانه موسکا یې درلوده؛ دې به تل د پخواني زاړۀ موډ تور جال ډوله دستمال پر خپلو ســـپینو ویښــتانو اچولی و. د اوریځکي په نامه د لنینګراډ د فابریکې کارکوونکو ښځو، د نیژني نووګوروډ د ښوونځیو شاګردانو، د سورموفو کارګرانو او ټولو نورو هغو کســـانو چې دا یې لیدلې او د دې خبرې یې اوریدلي وې او هغو کسانو، کومو ته چې دې د خپل پخواني انقلابي فعالیت او د خپل زوی په هکله ریښتیني کیسې کړې وې، دا یې په همدې ډول راپیادوله. آنا کیریلوفنا په ۱۹۳۸ ع کال کې مړه شوه.

اوس به د پیتر زالوموف برخلیک ته راوګرځو... دی د تزاري محکمې په حکم سایبریا ته په تبعید محکوم شو او په ۱۹۰۳ ع کال کې هغه ځای ته پیاده ورسول شو. یو کال وروسته د اینیســـي د رود غاړې ته راورسید او هلته یې د

مـاكلاكوكا په نامه په يوه كوچني كلي كې اســتوگنه غوره كړه، چې د ولايت د مركز (كراســنويـارســك) د ښــار څخـه يې ۳۰۰ كيلومتره واټن درلود... پيتر زالوموف د هغه وخت خاطرې داســې رايادوي: «په تبعيد كې مې دوه كاله تېر كړل، د هماغـه ځـاى د بزگرانو پـه منځ كې مې تبليغـات مخ تـه بيول، د ادارې كاتب او د هغه دوه مرسـتيالان مې افشـاء كړل. كوټوال هره مياشـت له ما نه اته روبله غلا كوله، كوم چې الكســـي ماكسيموويچ گوركي راته لېږل، ما ډېره لوږه گـالله او بيا د اســقرابوط [يو ډول ناروغي ده، چي د ويټامين سي د كموالي له امله را منځته كيږي. ل.ل] په ناروغۍ باندې مبتلا شوم...»

د ۱۹۰۴ع كـال د مـارچ د مياشــتې لومړنی ســهار د پيتر په ژوند كې د روښــانـه ورځو څخه د يوې ورځې پيل و. دهٔ په خپله وړوكي كوټه كې د كاج سـكې جوړولې. «زړه مې په آرامۍ سره رپيدهٔ، ناڅاپه ور خلاص شـو. ژوزيفينا ايدواردوفنا چه زاړه پوســتينچه يې اغوســتي وه او له يخ نه سره گرځيدلې وه، د زرگونو كيلومترو واټن په وهلو سره ماته راغله».

د دوو مخفي مسـلكي انقلابيونو د ژوند رومان ډېر سـخت و. د مسكو د يوې ځوانې ښـوونكې سره چې په مليت فرانسوی وه او ژوزيفينا گاشير نوميده، په ۱۹۰۱ع كال كې آشـنا شو. دوی د كارگرانو په غونډو، اجتماعاتو او د نيژني نووگورود په كوڅو كې سره ليدل، خو يو بل ته يې د خپلې مينې په هكله څه نه ويل او يوازې هغه وخت چې پيتر زالوموف بندي او د مســكو د بوتيرسـكايا په زندان كې يې خپل قيد تېراوهٔ، ژوزيفينا گاشــير يې و ملاقات ته د دهٔ د مور آنا كيريلوفنا سره يو ځاى د ناوې په توگه ورغله...

د گورکي پـه مرســته د تبعيد څخه د زالوموف د تېښــتې ترتيبات ونيول شول. زالوموف په پيټربورګ کې د بلشويکانو په مخفي سازمان کې کار پيل کړ او وروســتـه يې د ۱۹۰۵ ع کال د انقلاب په وخت کې د مســکو د کارګرانو د جنګي تشکيلاتو په ترتيبولو کې برخه واخيستله.

پيټر زالوموف د الکســـي ماکيسمووېچ ګورکي سره لومړی ځل د ۱۹۰۵ ع کال په دوبي کې پيټربورګ ته نژدې په کووکالي د ګورکي په دوبني کور کې کتنه وکړه. د راتلونکي داستان ليکوال او د پاول ولاسوف نمونوي څېرې د څو کالونو راپدېخوا په غياب کې يو بل پېژندل. حتی په سورموفو کې د مې د جشن د پېښې نمـانځانې نه پخوا ګورکي د زالوموف سره د کتنې په لټه کې و. مګر پيټر ويريدۀ، چې په خپل ملاقات سره ماکســيم ګورکي ته تاوان ونه رســوي، ځکه چې دی لا د پوليســانو تر څار لاندې و او په دې ډول ژاندارمو کولای شــول د انقلابي ليکوال پـه هکلـه د يو مـاجراجويـانه عمل لپاره بهانه پيدا کړي. د مې د لومړۍ نېټې تر مظـاهرو او د هغو د رهبرانو تر بنـدي کېدو وروســـته، ګورکي د زالوموف او د هغه د ملګرو ټينګه پاملرنه او ساتنه کوله. د پيټر د مور آنا زالوموفا د لارې ګورکي و خپلو وطنوالو تـه د خپـل ملاتړ وعـده ورکړه. ګورکي بـه هره مياشـــت د زالوموف لپاره و ســـايبريا ته يوه اندازه پيســـې د هغه د ګذارې لپاره ليږلې او هغه وخت چې د وادۀ د چارو نه يې خبر شـــو، د هغو پيســـو اندازه يې دوه برابره کړه او بالاخره درې سوه روبله يې د تېښتې د لارې چارې په خاطر ور وليږلې.

او دا دی د تبعيد څخه راتښـــتيدلی، پيټربورګ ته راورســـيد او د لومړنيو ملاقاتونو نه يې يو د ګورکي سره و. په دې خاطر چې مخبران په ځان شـــکمن

نکړي، پيتر و تم ځای ته د رسيدو نه مخکې د اورگاډي څخه وځي او په ځنگله ننوځي، هر کله چې د کور دروازې ته ورسيد، په انگړ کې يې جگ ډنگر سړی چې د عکس له مخې ډېر ور ته آشنا و، وليد. پيتر هغه ته ور نارې کړې:

- الکسي ماکسيمووېچ!..- او وروسته يې خپل نوم ور ياد کړ.

گورکي د ميلمه خوا ته د مهربانۍ له موسـکا سره حرکت وکړ، يو بل يې په غېږ کې ټينگ ونيول. د کور خاوند په خوښـۍ سره زالوموف ته کښـته پورته وکتل:

- دا دی تاسې مې هم وليدلاست!

پس لـه دې پر څوکيو ارام کېناسـتل او د ټولو موضـوعاتو په هکله يې جدي خبرې پيل کړې. گورکي په ماهرانه ډول د پيتر د شـخصي ژوند، د هغه د مور او پلار، د دۀ د انقلابي فعاليت او د سـورموفو د مظاهرو په باره کې ورځنې پوښـتنې وکړې. کـارگري مبلغ، د حقـايقو لـه مخې موثق او مـدلـل معلومـات ورکوي، د خلکو د طبيعـت پـه هکلـه لږې خبرې کوي او د خيـالونو او هيلو په باره کې هيڅ نه وايي. دوی په خورا دوسـتانه ډول يو د بل څخه بېل کيږي او د راتلونکو ليدنو په اړه ژمني سره کوي. په هماغو ورځو کې گورکي د پيتر په باره کې خپل يوه دوسـت ته داسې ليکي: «زما کره کله کله د سورموفو اوسيدونکي راځي- دا يو يې حيرانوونکی ځوان دی!»

پيتر يو په بل پسـې يو لړ له مسـؤليت نه ډکې گوندي سـپارښـتنې سرته رسـوي: «په مسـکو کې د کارگرانو د جنگي گروپونو د تشـکيلوونکي په توگه وټـاکـل شـوم.... د پاڅون په وخت کې مې د محاصرې په جنگونو کې گډون

درلود. د ۱۹۰۶ع کال د دوبي په نیمایي کې د وینې د ضایع کېدو او د ډېر ضعیفوالي نه مجبور شوم چې ځان علني کړم».

کله یې چې علني وضعیت غوره کړ، نو زالوموف د پلازمیني څخه سفر کوي. په دې ډول د کورسک د ولایت د کوچني ښار سوجي په کوڅو کې د نیژني نووګورود کارګر پیتر زالوموف د خپلي کورنۍ سره یو ځای ورمعلوم شو. په حقیقت کې د سوجي ژوند د پیتر لپاره دوهم تبعید وګرځید ځکه چې د هغه ځای نه یې د خارجیدو حق نه درلود او په هر ځای کې د کار کولو څخه محروم و. پولیسان یې د هر قدم په تعقیب کې وو. د زالوموف روغتیا چې د لوږې د اعتصابونو، زندان او تبعید په واسطه ضعیفه شوې وه، په دې کلونو کې نوره هم خرابه شوه. کورنۍ ژوند یې د دهٔ د میرمنې ژوزیفینا ایدواردوفنا د معاش له لارې چې د سوجي په ژمنازیا کې ښوونکې وه ، وړاندې تلهٔ. پخپله زالوموف د هغه وخت خاطرې وروسته داسې رایادوي: «د ۱۹۱۷ع کال د فبرورۍ تر انقلاب پورې د جاسوسانو او ژاندارمو تر شدید څار لاندې وم او کولای مې شول چې یوازې په ځانګړي ډول د بزګرانو په منځ کې تبلیغاتي کار وکړم».

د ۱۹۱۷ع کال د فبرورۍ او په هغه پسې د اکتوبر انقلاب بریالۍ شو. د سورموفو تکړه بیرغ وړونکي او نه ستړي کیدونکي مبارز بیا د واقعاتو په منځ کې ځای ونیو. په لومړني پراخ میتینګ کې دهٔ د راتلو شویو بزګرانو او کسبګرانو په مخ کې یوه الهام بخښونکي وینا وکړه او هغوی ته یې په پیتربورګ کې د پیښ شویو حادثاتو ماهیت څرګند کړ.

خپل ورور الکساندر ته په یوه لیک کې پیتر زالوموف د انقلاب او داخلي جنګ په وخت کې د خپل ژوند په هکله داسې لیکلي دي: «...په ۱۹۱۷

ع کال ما د شـوروي حکومت په منځ ته راتلو او ټینګیدو کې په خپله سیمه کې ګډون درلود... ډېر ژر د کار د کمیسـار په توګه انتخاب شـوم. سـپینو ګارډانو د سـوجي د اشغالولو نه وروسته څو ځله قصد وکړ چې ما اعدام کړي، مګر درې ځله مې وکولای شول چې له مرګ نه وتښتم. وروستی ځل د جنرال دینیکین د عسـکرو لخوا بندي او د جنګي-سـاحوي محکمې لخوا محاکمه شـوم. د جیل بنـدیـانو ملنـډې رابـانـدې وهلې او تقریبـاً هره ورځ یې د دار او فیر په واسـطه ګواښـلم... او دوی بـه طبیعي ده چې خپله پریکړه عملي کړې وای، که چېرې سور پوځ نه وای را رسیدلی».

سور پوځ زالوموف له مرګ نه خلاص کړ، مګر بیا هم ډېر ضعیف شوی و: جدي تداوي یې پکار وه. زالوموف مسـکو ته ځي او ډېر وخت په روغتون کې تېروي. روغتیـا یې لږ سـمون مومي، پخوانۍ دوسـتـانـه اړیکې یو ځل بیا ټینګیږي (د تکړه لنیني- انقلابي ګلیـب کرژیژانوفسـکي د کورنۍ سره)، او د ګورکي د قهرمان ژوند خپل نوي دوران ته داخلیږي.

د یوه مسـلکي مبلغ پـه توګه، پیتر زالوموف د بزګرانو په منځ کې سـتر فعـالیـت مخ ته بیوۀ: د اخبارونو قرائت یې ترتیباوۀ، په کلیو کې یې د شـوروي حکومـت د سـیـاسـت په هکله یې په پوره وضـاحت سره خلکو ته پوهاوی ورکاوۀ، د حکومت نوي فرمانونه او هدیات یې تشریح کول.

کله چې کلخوزي غورځنګ منځ ته راغی، پیتر د (سور اکتوبر) په نامۀ د سوجي د بزګرانو کلخوز جوړ کړ. څو کاله یې د کلخوز د رئیس او وروسته یې بیا د کلخوز د ادارې د غړي په صفت دندې ترسره کړې.

لـه ســختې ځورونکي نـاورغۍ او د ډاکټرانو د ممانعـت سره -سره پيتر زالوموف و خپل کار ته ادامه ورکوي. دی د خپلې انقلابي ځوانۍ او د گورکي سره د ليدنو کتنو په هکله خاطرې ليکي او همدارنگه د «مور» پنامۀ د گورکي د داستان د لوستونکو سره د ليکونو په واسطه اړيکې ساتي. خپلو دوستانو، د کرژيژانوفسکي د کورنۍ غړو ته دی په يوه ليک کې د ژوند په هکله خپل نظر داسې څرگندوي: «زما په نظر هغه مريي، کوم چې د خپل شرمونکي ژوند د محروميدو څخه نه ويريږي او د خپلې آزادۍ په خاطر لستوڼي رانغاړي؛ په يوه آزاد انسان بدليږي،که څه هم تراوسه پورې يې لا د ځنځيرونو کړۍ پر لاسونو وي. زه غواړم چې مريـان لـه منځه لاړ شي، له مريانو مې بد راځي، له جنگياليو سره مينه لرم، هغه کسان مې خوښيږي چې د آزاد انسان میړانه پکې ژوندۍ وي».

پيتر زالوموف د انقلاب يو سپاهي و، چا چې د خپل انقلابي خصلت او اخلاقي پاکوالي په واسطه په خپل وخت کې گورکي او بيا موږ تر خپلې اغېزې لاندې راوستو. په دۀ، د دۀ په ژوند، د دۀ په برخليک کې، د شلمې پېړۍ د يو روسي شعوري انقلابي-کارگر ډېر ښه صفتونه راټول شوي دي.